# سرې

# لښکرې په افغانستان کې

په افغانستان کې د روسي پوځ عمومي قوماندان

ب: ګروموف ليکنه

# سرې لښکرې په افغانستان کې

ب : گروموف



ژباړه : پردیس مسافر

د کتاب نوم : سرې لښکرې په افغانستان کې

ليکوال : ب - گروموف

ژباړه : پرديس مسافر

مهتمم او گرافيکس : عبدالحی سحر

چاپ ځای : پېښور دانش کتابخانه.

دچاپ نېټه : ۱۳۷۵ / هـ ش ۱۹۹۷ میلادي





# څو خبرې

دغه کتاب چې ژباړه يې ستاسو مخ ته پرته ده، پر افغانستان د شوروي پوځي تيري د عواملو او پايلو په هکله د يوه روس جنرال د قضاوت ښکارندويي کوي. دی د تيري له هماغه پيله تر وروستۍ شېبې نه يوازې د پېښو شاهد، آن چې ګډون کوونکی او هستوونکی و او دوه کاله وړاندې يې د خپلو يادداښتونو پر بنسټ دغه رساله کښلې ده. په هغې کې د ټولو شويو دليلونو او خبرو سموالی يا کږوالی ته په خپله کره کړه او له مانه مه غواړه چې در ته ووايم رښتيا يې ليکلي او که نه زه در ته بل څه ويل غواړم.

د جنرال ګروموف د اليکنه د افغانستان په هکله، د هغه د ولس په هکله، د هيواد د نړېوال اعتبار او وزن په هکله او پر کابل د هغه وخت د حاکم روس پلوه رژيم د اصلي ماهيت په هکله د روسي قضاوت يو بشپړ انځور جوړوي، که ليکوال په لوی لاس د خپل پروني ملګري هيواد ولس ته سپکاوی کوي ته مه خوابدی کېږه، که هغه مجاهدينو ته پر خپلو خلقي او پرچمي دوستانو ترجيح ورکوي ته يې دا د بيطرفه قضاوت نښه مه بوله، که هغه په افغاني خاوره کې د خپل سر تيري يو

ځيني حقايق نيم کاري او ځيې بيخي پټوي ته سينه مه تنگوه ځکه چې هغه دير غلگری په روحيه او دماتي له عقدو سره له افغانستانه وتلي او په همدغه چاپيريال کې قضاوت کوي .بده به هله واي چې ده افغان ستايلي ، دافغاني شملې په وړاندې يې خپله خولۍ له سره کوزولی او دانن يې هم دربښتوني انسان په دود خپل پروني انډيوال ته دوست ويلی .

دلته نوحق ستا په خواکيږي که په ذهن کې دي ددې کتاب دژباړې په اړتيا کرښه باسې. خوواييي هرکتاب په يوځل لوستلوارزي، نه، زه په دې خبرې دباورله مخی داژباړ نه توجيه کوم. له دې کارنه زما مقصد دانه دی چې تاته که نورنه وي ديووار لوست له پاره څه ډالی کړم. زه غواړم افغانان په هغه څه چې ددوی په هکله ليکل شوي اويا ويل کيږي خبرشي. له بدو نه يې خبري دهغو زيان نه کموي. چې څومره ترې ژراو ژور خبرشو هومره يې دعواقبودورکاوي او دتکرار دمخنيوي تدبيربه نيول کيدلی شي .

ددې ژباړې بل دليل دخپلو او پردو تاريخ ليکونکوله پاره دموادو برابرول دي. هيڅوک داوس نه لري داويا يمې لسيزی له دوهمې نيمايي وروسته دراماتيک او غم لړلی پړاو دافغانستان له تاريخ نه حذف کړي. دا دوره لامحتاطی اوژورې څيړنې ته اړه لري اوباورلرم چې په دې کتاب کې راټول شوي اسناد به له څيړونکواوپوهانوسره دهغې په ښه څيړنه کې زياته مرسته وکړي .

دکتاب دمتن په هکله هم ډيرې خبرې خوندنه کوي. هغه په خپله ستاسي

ووایم.

گروموف خپل کتاب ته «محدود پوځي ټولګي» نوم ورکړی دی. دهغه له نظره ښايي یو د کوچني هیواد کی ترغاښو وسله واله څه د پاسه سل زره کسیزه ډله «محدوده قطعه» وبریښي خو زموږ له پاره دا یو خونړی ښورتیری و. له همدی امله دهغه دپښتو ژباړی له پاره «سری لښکرې په افغانستان کې» نوم غوره وبلل شو.

ژباړه دمتن دامانت دساتلو ترڅنګ آزاده بڼه لري. دروسی متن د (۲۰۶) مخ له څوجملو پرته چې دقلم پاکي په کې نه وه ساتل شوې، نورټول کتاب په پوره امانت پښتو شوی دی. هلته چې دځینو روسی یا اروپايي مفهومونو دروښانتیا له پاره په پښتوکې انډول نه دی موندل شوی، نوله اوږدو توضیحاتونه کار اخیستل شوی دی.

هغه اضافي توضیحات چې لیکوال ورکړي په خپله یې د «ب. ګ» (باریس ګروموف) په نښې ښودلي او کومې څرګندوني چې په ژباړونکي پورې اړه لري مخې ته یې «د. ج» (داود جنبش) کښل شوي دی.

زماله نظره لږتر لږه ددې کتاب په دوو برخوکې دلوستونکي تنده پوره نه ما تی او پوښتې یې بې ځوابه پاتې کیږي. یوهلته چې پرافغانستان د سرولښکرو ـ مسلی تیری خبره راځي. دلته لیکوال له یوې څلورمیاشتنی دوری نه ټوپ اچوي او نوستونکی په خلاکی پریږدي. بل هغه وخت چې دخپلو پوځي استخباراتو په

لیکونکی دځینو ټکودویلوله لارې هڅه کوي دځینو مهموخبرودبرسیره کیدومخه ونیسي.

لوستونکی حق لري دپلټنې او پوهیدنې خپل حس ارضا کړي. نوځکه بیځایه به نه وي کـه دلتـه دنورو سرچینو په حواله دکتاب دغـه نیمگړتیاوي پوره او دلوستونکی تنده ماته کړم؛ هیله من یم چې گران لوستونکی به دکتاب ترلوستلو وروسته دسریزې دې برخې ته یوځل بیا مراجعه وکړي.

هیڅوک شک نه لري چې د ۱۹۷۸ کال له اپریل وروسته په کابل واکمن شوی رژیم روس پلوه او ترډیرې اندازې پوازې ددوی په مرستـه ژوندی و. خـوروسانو درژیم په لومړي یونیم کال کې په افغانستان کې دپام وړ پوځي حضورنه درلود نوځکه دادعوه به سمه نه دي چې گنی خلقي واکمني روسي عسکرو په اوږوولاړه وه. په همدې اندازه به ددې خبرې کول هم له انصافه لیرې وي چې ترد کی او امین روسانوته دعسکرو دورلیږلو وړاندیز نه دی کړی. په دې کتاب کې را ټول شوي اسناد په دې اړوند ټول شکونه له منځه وړي خواصلي پوښتنه داده چې ولې مسکو خپلو خلقي انډیوالانوته دیوه هلیکوپټر یایوه زغره وال گاړي دورکړې په سردومره چنې وهلې او هغوی یې تحقیر کړي دي. دهغو دغوښتنې خلاف یې افغانستان ته دخپلو عسکرو لیږل دنړیوالو نورمونومغایر عمل اودیوه خپلواک هیواد په کورنیو چاروکې لاس وهنه بللې دد. خود ۱۹۷۹ کال په پای کې چې واک ته

گروموف ددې خبرې اصلي دليل نه شي روښانولی او يا يې په لوی لاس له ښودلو نه ډډه کوي . هغه دا پوښتنه هم يې ځوابه پرېږدي چې پر افغانستان د پوځي تيري پلان په دقيقه توگه کله او څنگه عملي شو.

وروستنۍ پوښتنې ته تريوه ځايه په «الفا – د ک. گ. ب پټ پوځي ټولگی» نومي کتاب کې ځواب موندلی شو. دهغه ليکونکی د ک . گ . ب افسر ميخائيل بالتونوف ليکي چې د ۱۳۵۸ کال دجدي له شپږمې نه دوه اووه نۍ وړاندې د تيري پيل په پام کې و. دهمدې مقصد له پاره دببر ک کارمل په مشرۍ يوه څلور کسيزه ډله په پټه بگرام ته رسول شوې وه خو دځينو دلايلو په وجه دغه پلان شاته وغورځول شو. دلته د يادشوي کتاب ځينی په زړه پورې برخې راوړم:

«... سلگونو بهرنيو او شوروي خبريالانو او څېړونکو زيار ايستلی هغې پوښتنې ته ځواب ومومي چې نړۍ وال يې لا تراوسه په حقيقت نه دي خبر او هغه داچې :

څنگه ببر ک کارمل له چکوسلواکيې نه کابل ته ورسيده ؟... له يوه هيواد نه بل ته ددغه افغان مشر تگ ، راتگ لا تراوسه پټ راز پاتې شوی دی.

خوخپله ببر ک په دې هکله څه وايي ؟... يوه ورځ ده له يوه خبريال سره مركه درلوده:

«ببر ک: په هره لاره چې هيواد ته ستون شوم ، دازما دولس غوښتنه وه. . .

ببرک: بیشکه چې مانه شوکولی د پاکستان یا ایران له لارې ولاړشم. یوازې یوه لارپاتې وه: د مسکو او تاشکند لار! خو دا چې څنګه او په څه شي کې لاړو، دا هغه جزئیات دي چې څرګندول یې لازم نه بولم.»

«پخواني افغان مشر رښتیا ویل: د هغه ستنیدل یوازې د مسکو او تاشکند له لارې شوني و. خو ترکومه چې د جزئیاتو خبره ده غواړم لوستونکوته یې ښه په تفصیل روښانه کړم:

...د ۱۹۷۹ کال د دسمبر میاشت په مسکوکې ډیره غنمجنه او واورینه وه. د همدغې میاشتې په یوه سهار د والنتین شرګین په مشرۍ د الفاد ډلې اته غړي په بیړه راوچت او په یوه سرویس موټرکې د ک. ګ. ب د لومړي ریاست ودانۍ ته ورسیدل.

عزتوف په حیرانتیا وویل: اوهو! وګورئ څه پړقمین هرکلی! تولوله کړکیو نه بهر وکتل. په انګړکې درې تورې «والګاوې» ولاړې وې. له هغو نه دوه تنه چې مسلکي کالي یې په غاړه و، راووتل او د سرویس په لورروان شول. شرګین د موټرله ورده ورکوز شو او د خپل راتګ خبرې ورکړ.

امروشو: په موټروکې ځای پرځای شئ...

والګاوې په چټکۍ له انګړنه ووتې. د مسکو په آشنا کوڅوکې څراغونو هماغسې سترګکونه وهل. د موټرو خاوندانو چې په مخکې سیټونوکې ناست و، هیڅ خبرې نه کولې او هغو منظروته ځیرو چې د موټرو له کړکۍ بهر په منډه

... موټرې نیم ساعت وروسته دیوې دروازې مخې ته ورسېدې. له دیوالو دننه ښائیسته ښکلې مانۍ اوپاک پریولي سرکونه ترسترګوشول.

میلمانه دننه وبلل شول. په یوې خونې کې یوپنډ سرې دمېزشاته ناست او په پوره زور له چایو نه غړپ کوي. یوبل ته یې ځانونه سره وپیژندل: دپنډ سړي نوم باریس چیچرین و. . هیڅوک نه پوهېده چې څه له دغه ځای ته راوستل شوي دي.

خو دانتظار شیبه لنډه وه؛ دلومړي ریاست استازی راغی ، له روغبړ وروسته یې په څوټکوکې دهرچا دندې روښانه کړې: دهغوکسانو پوره ساتنه به کوئ چې اوس درسپارل کیږي. . . دغفلت په صورت کې موسرونه غوڅیدلی شي!

اوله یوې لنډې وقفې وروسته یې زیاته کړه: «داسترخلک دی چې نړۍ ترې لانه ده خبره اوباید خبره هم نه شي!»

نړۍ رښتیا هم نه پوهېده چې دامین له قهره تښتیدلی وطنج ار ، اناهیتا او نوراحمد نور چیرته دي. دافغانستان له پولوبهر دببرک کارمل نوم هم چادومرد نه واوریدلی.

د «الفا» دډلې غړو هم دلومړي ځل له پاره دوی لیدل. درې ناریـنه او یوه ښځه خونې ته ننه وتل او ودریدل. دتورې اوهغه دچاخبره سوځېدلی څېرې، کږې پزې اوتورو سترګوخاوند سړی له نورونه نیم ګام وړاندې ولاړو. . .ښه اروپایي دریشي یې په ځان کې وه.

بارئیس چیچرین میلمه راوپیژانده:

دازموږ له پاره څه نا آشنا نوم و. عزتوف بيا بيا له ځان سره تکرار کړه‌سي نه چې خدای مکړه ترې هېرشي.

چيچرين بيا دببر ک شاته ولاړ ددنګې ونې اوپک سرخاوند نسبتاً ځوان سړی راوپيژانده:

– دانوراحمد نوردي! هغه دلته زده کړې کړي اوپه روسي ژبه پوهيږي.

... چيچرين دلاس په يوه نازک حرکت دتورې کوڅې خاوندې ښځې ته چې غنم رنګه څېره يې درلوده اشاره وکړه ويې ويل : داناهيتا ده...

باريس وروسته يادونه کړې وه چې اناهيتا دشته منې کورنۍ غړې وه، ښې زده کړې لرې اوتل دببر ک په څنګ کې وي.

داناهيتا خواته بل اوچت او دنوروخلاف دروښانې څېرې خاوند سړی ولاړ و.. دهغه څېرې ته ګنهو ويښتو او ګورو بريتو افغاني بڼه ورکړې وه... همدا وطنجارو.

دقوماندانۍ استازي له دې پيژندنو وروسته وويل: زما خبرې همدومره وې .اوس نوپريکړه وکړی چې څوک به دچا ساتنه کوي. اوضاع ښه وخيږئی او دامر انتظارباسی.

ددې له پاره چې خبرې اترې آساني شي اودغه راز داسرارودپټولوپه غرض په دغو څلورو تنو روسي نومونه کېښنودل شول.

کوم چاوویل:

«ساشاد »به غوره وي

– ښه ده راځئ چې په دده ساشا نوم کښیږدو ».

لیکونکی دلته دڅلورکسیزی ډلې دنورو غړو روسی نومونه نه یادوي. خوما اوریدلي چې همدلته د ببرک له پاره د «بوریا » اوداناهیتا له پاره «آنیا » نومونه غوره شول.

کتاب وړاندې تاشکند ته دببرک کارمل او ملگرو دلیږدیدونکل کوي او لیکی چې څنگه دوی دازبکستان دمشر شرف رشیدوف په ځانگړي میلمستون کې له مادي نعمتونه خوند اخیسته. وایي همدلته ببرک کارمل دروسانو په سلادامین درژیم دنسکوریدو په هکله وینا ثبتوي. تهینگار کوم دادجدي له شپږمې نه نږدې شپاړلس ورځې مخکې خبرده، همدغه وینا له پولې نه دروسي ځواکونوله تیریدوسره جوخت دتاشکند راډیو په لنډو اومنځنیو څپو دکابل راډیو په فریکو نیسوخپره کړه او داله نړیوالو قاعدونه دروسانو بله سرغړونه وه. په دې کتاب کې وړاندې لولو:

«دسفرنوی لار دافغانستان دپولې له پاسه دهندوکش دغرونو پرسر تېره اوپه بگرام کې ختمه شوې وه... ځوپه بگرام کې ډیر پاتې نه شو. (هلته له رسیدو دوه ورځې وروسته ) یعنی ددسمبر په څوارلسمه مودمابنام دوډی په ځای پریښودو اوپه یوې بی نښې الوتکې کې دببرک کارمل، نور، وطنجار او اناهیتا اودهغو

د دسمبر له ۱۲ – ۱٤ په کابل کې څه پېښ شول؟ ولې ببرک کارمل او د هغه ملګري وزيران په بيړه له بګرام نه وليږ دول شول؟ دلته بيل ، بيل نظرونه ويل کيږي خو دا دوه فرضيې ډيرې د منلو وړ بريښي: لومړی دا چې امين ته د ببرک او د هغه د ملګرو د راتګ پته لګيدلې وه او ځکه شوروي يانو يې په بيړه د بيرته وړلو بريکړه وکړه. دوهم دا چې ټاکل شوي پوځي عمليات پوره نه وو سنجول شوي او د هغو سم تطبيق يو څه نور وخت ته اړتيا درلوده . . . ».

شوروي پوځي ماشين ته نورې دوه اوونۍ په کار وې چې د کودتا او مداخلې نقشه له سره جوړه او د دسمبر تر ۲۷ پخه او بيا پلې کړي. ګروموف په خپل کتاب کې د عسکرو له ورتګ وروسته د ځينو حالاتو انځور دلته وړاندې کوي.

د حاضر کتاب بله تشه هلته ترسترګو کيږي چې ګروموف د روسې له پوځي استخباراتو سره د جهادي قومانداانو د اړيکې خبره کوي. ليکوال د دې ادعا په کولو هڅه کوي« وچ او لانده برابر په اور کې وسوځي ». له همدې امله په دې اړوند د هرډول ابهام د ليرې کولو له پاره د « ماشکوفسکي کمسموليځ » په نامه د مسکو د يوې ډيرې معتبرې ورځپاڼې د يوه مطلب ژباړه راوړم. د غې ورځپاڼې د ۱۹۹٤ کال د اپريل د ۱۳ نېټې په ګڼې کې د روسيې د پوځي استخباراتو د يوه مشر مامور معرکه خپره کړې چې درې کاله په افغانستان کې دده په وينا د افغانانو په جلبولو بوخت و . مرکه د پوښتنو او ځوابونو په بڼه ترتيب شوې ده:

– ځواب هره ورځ موږ یار ایسته چې د سر دزیان اندازه تر ډیره کمه کړو. دا نه یوازې ستونزمن چې له ځاني خطره ډک کار و اوځکه په دې لړکې د «کوم ستربري» په گوته کول آسان نه بریښي... ښه به وي که بری یا ماته په هر ډ ځانگړې پیښه کې په جلا توگه ولټول شي.

خبریال: خوله دې ټولو سره سره..

– ځواب : زموږ د اداري کارکوونکي کله نا کله په دې بریالي کېدل چې له احمد شاه مسعود سره مخامخ تماس ونیسي.

خبریال: لږ صبر وکړئ، لږ صبر وکړئ! ستاسې مقصد دا دی چې گنی احمدشاه مسعود د شوروي پوځي استخباراتو جاسوس و ؟

– ځواب: نه، خو که ټیک خبره رانه غواړې نو هغه زیاته موده په موږ پورې تړلی او زموږ د نفوذ عامل و. نږدې یو کال زموږ مامورنیوله ده سره لیده کاته کول، بیلې بیلې موضوعگانې یې ورسره څیړلې او گډې پریکړې موسره کولې او هغه به زیات وخت هغه څه کول چې موږ ورته ویل .

خبریال: احمد شاته موږ د غسې یوه خدمت په بدل کې څه ورکول ؟

– ځواب : عملاً هیڅ! موږ د جاسوسی د خپلې سترې شبکې د مادي تأمین له پاره پوره امکانات هم نه درلودل.

خبریال: که تاسې کولی شول د احمد شاه مسعود په څېرۀ گړی ځان ته متمایل

وساتي له هماغه پيله ناشوني اوشنيده وه. که مور ان دافغانستان دپولوپه پوره ترلولاس موندلی هم وای، که مودغه هیواد له ایرانه او پاکستانه بشپړ تجرید کړی هم وای او که هلته دیوه ځواکمن حکومت په جوړولو بریالي شوي هم وای، بیاهم زموږ د تلپاتې او غوڅ بری امکان نه و».

گومان کوم چې دا اضافي څرگندونې به له لوستونکي سره ددغې لس کلنې ویرنی په سمه څېړنه کې لاس وکړي او تر ډېره به يې هغو پوښتنوته چې روسی جنرال په لوی لاس نالیدلي پريښي، ځواب ووايي.

بی انصافي به وي که په دې برخې کې دخپل ښه دوست، لیکوال زرین انځور هڅونی، لارښوونې او مشورې يادې نه کړم. دژباړې په ټول بهیر کې مې دده ملاتړ دلارې مل و. هیله من یم چې گران لوستونکي به پښتو ژبې او افغان ملت ته زموږ دچوپړ داکوچنی هڅه لږ ترلږه منظور ه کړي.

چې غلیم يې په کینه شونډې په غاښ چیچي تراوسه

زه دهاغه غیرتی وطن پردیسه افسانه یم.

په مینه

پردیس مسافرد - ۱۹۹۵ - دسپتامبر څلورمه

# دليکوال له خوا

ستره هېوادنۍ جګړه څلورکاله روانه وه، خوددې لپاره چې دهغې بشپړ، په تېره بيا رېښتينې تاريخ وليکل شي، نيمه پېړۍ هم دڅېړونکو لپاره بس نه شوه. ښايي همدومره وخت په کاروي چې دافغانستان په خاوره کې دڅلوېښتم لښکر جګړه ييز فعاليتونه وڅېړل شي.

لومړی ځل د ۱۹۸۹ کال دفبرورۍ په ۱۵ دافغانستان له خاورې نه دشوروی محدودوپوځي ټولګيو له وتلووروسته سمدلاسه ماته ددې کتاب دليکلو وړانديز وشو. وروسته له مانه بيا بيا ورته غوښتنې وشوې. ښکاره دده چې دکلونو په تېريدو وسره دافغانستان دجګړې په وړاندې علاقمندي نه کمېږي.

زه دڅلوېښتم لښکر په هکله ټولې ليکنې په غور سره څېړم او ډېرځله داسې راته برېښي چې دغه ليکنې د صلاحيت لرونکو خلکونه، بلکه دمغرضانو کار دی. بيشکه دافغانستان دجګړې او دشوروي سرتيري د ميړانې په هکله رښتيا، له هغه چاپرته بل څوک نه شي ويلی چې مخامخ يې په دې جګړه کې ګډون درلود. همدې اصل اړکړم چې دهغو پېښو انځور جوړ کړم چې مامخامخ ګډون په کې درلود.

زه له پوځي ژورناليست سرګی باګدانف نه له دې امله چې دکتاب په ليکلو کې زما مرستندوی و، مننه کوم.

# له جګړې نه ډېر مخکې




باوروله چې داولګاد (مورنی سیند)

تاته دډېرې مودې لپاره څواک ورکړی دی.

زه چې دسترې هېوادنۍ جګړې په هماغه تودو لمبو کې دستر روسي سیند په څنډو کې دنیا ته راغلم، د دغې جګړې په هکله یوازې د کتابو او کیسو له مخې معلومات لرم، خو د تقدیر لوبه داوه چې زه باید په بلې، همدومره سختې او غم لرلې، دافغانستان په جګړې کې ګډون وکړم.

زما پوځي ژوند له دولس کلنۍ نه پیل شو. په ۱۹۵۵ کال کې د سوروف په نامه دساراتف په حربي پوهنتون کې شامل شوم. زما مشرورور الکسي هم په ۱۹۵۳ کال کې دغه پوهنتون بشپړ کړی و. تر اوسه مې په یاد دی چې په څه حسد او شوق مې دهغه ښکلي پوځي یو یونیفورم ته کتل.

دساراتف په حربي پوهنتون کې مې ښې زده کړې وکړې. موږ ډېر تجربه لرونکي استادان لرل چې هڅه یې کوله نه یوازې په خپلو مضامینو کې مو ورسوي، بلکه له موږ نه ریښتیني افسران جوړ کړي.

دريدل، ننبه ويشتل او په ستديوم کي لوبې، ډير خوښول .

په اوونۍ کې يو ورځ د حربي پوهنتون ټولو کارکونکو په انګريزي خبرې کولې .داکار به له خوبه دراويښيدلو نه نيولې ، بياتر بېرته ويده کيدو روان و . ټول د پوهنتون له قوماندانه ، دلومړي ټولګي ترزده کوونکي مجبور وو ، دغه خبره په پام کې ونيسي. په دې ترڅ کې دخنداوړځينې پيښې هم خامخا رامنځته کېدلې .زياتره استادان په انګريزۍ نه پوهېدل ، نوځکه ډيرو ، په تيره بيا سپين ږيرو قاموسونه په لاس کې ګرځول. په لومړي سرکې موږ هم په سختۍ په انګريزۍ غږېدو ، خو دخند احساس په دې برخه کې له موږ سره تل مرسته کوله.

تراوسه ماته ذاحقيقت روښانه نه شوچې ولې په ۱۹۶۰ کال کې دسارا تف په ګډون ديو شمير حربي پوهنتونو دړنګولو په واقعيت کې دهغو پاشلو پريکړه وشوه. تردې وروسته په ټول هيواد کې دسوورف به نامه يه شېږ حربي پوهنتونه پاتې شول.زموږ ټولګی کالنين ته ولیږدول شو . ده د وروستي کلونه موهمدلته درس ولوسته.

زه په داسې يو کورنۍ کې لوی شوی يم چې مشرېې زموږ نيکه ديمتري فيودروويچ ليبديف و . هغه په تيره پېړۍ کې زيږېدلی او پوره اتيا کاله يې ژوند وکړ. ده دمسکو پوهنتون دحقوقو پوهنځی لوستی و .هغه وخت د پوهنتون په زړه ودانۍ کې چې د « مانيژ » ډګر ته څېرمه پرته ده، درس ويل کيده دزده کړې په پای

دد ته وس ورکاوه چې خپله دژوند بېرې پرمخ بوځي . همدلته ده زما له نيا اليزابت اناتوليفنې سره واده وکړ. هغې هم په کوزنيځک کې مسلکي ښوونځی پای ته رسولی و. د دواړو فرانسوي ژبه ښه زده وه. هغه وخت په روسيه کې ډيروخلکوپه دغه ژبه خبرې کولای شوې.

تر هغو چې انقلاب کېده، دوی يوه زوی اويو لور پيداکړل. همدازما موروه. ما ته اوس پوره نه ده معلومه چې ولې، خو دديرشمو کلونو په پای کې موږ له کورنی ساراتف ته ولېږدېده. په ۱۹۳۵ کال کې زما مشر ورور الکسی او په ۱۹٤۰ کال کې مې منځنی ورور سرګی په ساراتف کې نړۍ ته راغلل.

نيکه مې له هغه حالت نه بيخي ځورېده چې له انقلاب وروسته ورسره مخامخ شو، او دازيات له دې امله چې له يوې لنډې مودې پرته، نوريې تل له خپل مسلک نه غير کارونه کول. خود له خپل مسلک سره ډېره مينه لرله، آن کله چې به خبره دراتلونکو لمسيانو په هکله راغله، دده به تل ټينګار کاوه چې موږ بايد دحقوقو زده کړې وکړو، په تېره بيا چې په ساراتف کې دځانګړو (حقوقي) زده کړو پوره امکانات موجود وو. ترکومه چې مې په ياد راځي هغه خپله داولګادسيمې داوسپنې دپټليو دڅانګې دسر تحلويلدار په توګه کار کاوه. له جګړې وروسته زما نيکه ته هم دااوسپنې پټليو دنورو کارکوونکو په څېر ددريم بريد من رتبه ورکړل شوه او تل به په پوځي يونيفورم کې ګرځېده.

ترکومه چې مې رايا دېږي، هغه په ځوانۍ کې دنګه ونه درلوده او سر له دې

ځېره لرله.

نيکه اونيا مې دواړه د تياتر سخت شوقيان وو. ماهم له تياتر سره مينه له همدوی نه په ارث اخيستې ده. سره له دې چې ساراتف يو اطرافي ښار ګڼل کېده، خوځلور، تياتره يې لرل: اوپرا، بالت، ډرام او د ځوانانو، هرکال له نورو ښارونو څخه هم د تياتر هنرمندان ساراتف ته راتلل حتی (دااوس مې) هغه ننداري راياد ې شوې چې د سورد لفسک د اوپرا تياتر هنرمندانو ښودلې وې. سربېره پردې ساراتف خپل سرکس او د موسيقۍ ښوونځی هم درلود.

له تياتر سره پيدا شوې مينې د عادی ژوند د پرمخ بيولو لاره پرمور نه بندوله. ريښتيا خوداده چې زما ورځنی ژوند د منځني ورور ترسختې څارنې لاندې تېرېده، چې يوګام به يې هم له ځانه ليرې نه پرېښودم.

سرګی، سره له دې چې ايله درې کاله له مانه مشرو، خوتل يې خپلواکي په برخه وه او ديو غټ سړي په توګه به يې زما څارنه کوله. نږدې دوه کاله چې زه ورکتون ته تلم نوهمده به بوولم. دا يو ډول کورنۍ ځان تېرېدنه وه، ځکه چې هغه وخت ميندو او پلرونو خپل. بچيان ان ښوونځيوته يوازې نه لېږل.

مور داولګا پرځنډه ستر شوو. هر دوبی مو پيچلی شان جالی جوړولی. سرګی پرله پسې هڅه کوله چې په دې برخه کې مې ورسوي. آن هغه شيان يې هم راته ښودل چې خپله پرې پوره نه پوهيده. مثلاً راښودل يې چې څنګه څټک په لاس کې

غوسه شوم چې ما به ورسره مرسته کوله، دلرګو تختې به مې ورته راوړلې، خو« لامبو »ته به له ما پرته ته سربېره پردې به يې راته امرهم کاوه: « له ساحله يو ګام هم مخې ته وانخلې ».

کله چې به مې د وروړ ددومره بنديزونو زغم نورنه درلود ، نوترې تښتېدم به دغه وخت نوماهم ځان لپاره دملګرو يود کوچنو تې ډله پيدا کړې وه. موږ له جګړې نه دراوروسته دورې عادي ماشومان وو. موږ به لمباته تلو. قوتيال به موکاوه او هرهغه څه چې په ذهن کې به موګرځيدل، لاس به موورته اچاوه، خو يود بوختتيا موله تولوڅخه ډېره خوښه وه. ددوبي هرد وزګاره شيبه به موږ دسيند پرغاړه تېروله. تقريباً هرد ورځ به زموږ « بندر » څنګ ته کوچنی باروړونکې بېړۍ رارسېدلې. په هغوکې به د آستراخان او کاميش نه راوړل شوي سترختکي باروواودومره به درنې وې چې ترموږګوپه اوبوکې ډوبې وې. هلکانو به لکه دمرغيو پردې ختکو يرغل کاوه. موږ به له مقابل ساحله دبېړۍ خواته ورتلو ،يوله بل سره به مومرسته کوله او هغې ته به ورجګيدو.

په هرد بېړۍ کې ټوپک په لاس ساتونکی و نه پوهېږم چې کارتوس يې له څه شي ډک و ، خودوډځلې يې پرموږ هوا يې ډزې وکړې. ډاروونکې صحنه وه، خوپه بله ورځ به بيا هم موږ بېړۍ ته ورختلو او ختکي به موغلاکول. دکوچنيتوب له حرصه به موډېر زيات ختکي په اولګا کې وغورځول ، خوله اوبونه به موډېر کم ببرته رانيولي شول. موږ به خپله نور دلامبووس نه درلود اوپه کارود چې ختکي

ايستل. کور ته مو نه وړل، ځکه چې په کار وه دې پوښتنې ته ځواب ووايو: له کومه موکړل؟ هر يوه په انګړ کې د ځان لپاره پټنځای لاره چې پرته له بلنې هلته ننوتل غټه ګناه ګڼل کېده. همدلته به موختيکي تر پوټکي پورې شپېلول.

په اوونۍ کې درې ځله به مو پر بامونو يرغل کاوه، اولګاته په کوزه شوې شپېله کې کورونه يو بل ته ډېر نږدې پراته وو. موږ په اسانۍ د لومړني کور بام ته ورختلو. چې څوک به لږ زړور و او له ونو نه به يې ګټه اخيستله، نو کولای يې شول چې د ټول کلي پر بامونو ورګرځي. کله کله په کار وه چې له يوه بامه بل ته ټوپ ووهل شي، څو څو مرده چې سرې اولګاته نږدې کيږي، هر مرد د بامونو لوړوالی زياتېږي. که رېښتيا ووايم کله کله دغه ټوپونه دومره ډاروونکي وو چې د سړي زړه له ډاره درېده. په موږ ټولو کې زړور والود ياګوسيف و چې وروسته پوځي پيلوټ شو او د دګروالۍ رتبې ته ورسېده. هغه به له موږ نه مخکې له يوې ارتفاع نه بلې ته ټوپ واهه او موږ به ورپسې روان وو. د شپې به د ټوپ وهلو غږ بې اندازې لوړ و. څو څو ځلې هڅې وشوې چې موږ ونيسي خو هر ځل به له لومې نه تښتېدو. کله کله به موږ توګونه څيري شول او بس، خو د اولګاځېر داو د ماجرا غوښتنې تلوسه په دغو څوريد نو ارزېده.

له ارتفاعاتو سره مينه، نږدې وه چې زما لپاره بدعاقبت منځ ته راوړي. ما او والود ياګوسيف يوه ورځ غوښتل د لرګيو له يوه نوي ديوال نه چې پايې يې سمې نه وې ښخې شوې، تېر شو خو ناڅاپه هغه ټول زموږ پر سر راونړېده. ما د تېښتې وخت

زماله سره اوچت کړ ،هغوی هک پک پاتې شول ،ځکه چې نه مې کوم ځای ټکبدلی اونه زخمي شوی وم. له هغه راوروسته مې ورور دغه پيښه دويمه زوکړه بولي. دخبرو په لړکی باید یادونه وکړم چی په افغانستان کی راباندی دغسی پېښې ډيرې راغلی دی.

په کوچنيوالی کې موله مرغيوسره هيڅ توپير نه درلود . زموږ کورنی يودود لاره : په مني کی نیاخامخا سائره اخيستله. ټول ژمی به مودد غې مرغی پالنه کوله اودانه به موور کوله اوپه پسرلي کې چې کرکی خلاصبدلې نوسائره به موبڼ ته خوشې کړه. خوزموږ ډېر نږدې ملگري سپي وو. له سپيو سره مو دزړه له کومې مينه لرله. موږ هم په هغه وخت کې دسپو دکوکريو غوندې وواوبې له کلمو يو دبل په خبرو پوهيدو .

له سپيو سره زما په زړه کې مينه ، تردغه اوسه هم پاتې ده .ان په افغانستان کې زماد دوو دورو خدمت په ترڅ کې زموږ کورنی ته گرانه سپی « ليکا » راسره وه.

دسوورف په پوځي پوهنتون کې ترشامليدو مخکې مې څلور کاله په ښوونځي درس ويلی و ،زه چې پوهيدم ، مشر ورورمې څنگه درس وايي اونيا اونيکه څنگه دهغه د لوستو نوڅارنه کوي ، دخپل لومړني درسی کال په درشل کې مې نوی بکس هسی پټ کړ ، چې چاهڅو پيدا کولای نه شو ، خوپه پای کې بکس پيدا شو

له نږدې پيژندل .

د تصادف له مخې په همدغه وخت کې زه په مرکزي مطبوعاتو کې راڅرګند شوم . خبره داسې وه چې په ساراتف کې د يوه نوي ښوونځي د پرانستلو له پاره ليکوال ليف کاسيل چې هغه وخت يې د اګانيوک (په مجله) کې کارکاوه راغلى و . په کاروه چې عکس واخيستل شي . خبريالانو زه ټولګي ته ورو بللم او زموږ ښوونکې ايلينا واسيلفناوويل: «داسې وښيه چې ګواکې ته او تامارا نه غواړئ څنګ په څنګ کښيئ». ماله نجلى نه مخ واړاوه ، هغې له مانه . په دې توګه نو په مجله کې زموږ عکس چاپ شو چې لاندې ترې ليکل شوي وو: «ب» په دوهم ټولګي کې يوه پېښه منځ ته راغلې ده. بوريا ګروموف چې له تامارا ګارانيسې سره په يوه ميز برابر شوى چيغې وهي: زه نه غواړم چې له نجلۍ سره څنګ په څنګ کښينم!

په ښوونځي کې مې سپورت ته ګلکې مټې ونغښتلې زموږ د يوه ملګري بورى ايپيفانف خور د لامبو د ښوونکې ده لرله. همدې موږ ته د لامبو تقريباً ټول ډولونه را زده کول. موږ سهار وختي په شپږو بجو له خوبه پاڅيدو او سمدلاسه د لمبا لپاره د ډنډ لورې ته تلو . وروسته بيا ښوونځي ته تلو . د دريم ټولګي په پاى کې مې داکرووباتستانو په ډله کې خپل نوم وليکه. د نهم ټولګي زده کوونکو به زه ديوازيني ماشوم په توګه د کومې څېرې يا مجسمې سرته ښه ور پورته کړ ، او بيا به

وای لوی شوي لکه اوس. د نیکه تر ټولو غټ خدمت دا وچې که مور غوښتل او که نه، هغه به تل مور ته د ښه چال چلند دودرازده کاوه. هغه مور ته رازده کول چې په کورکې باید څنګه چلند وشي. دکورنۍ د مشر په توګه د نیکه نیا مور او نورو ښځو څنګه د رناوي په کاردي؟ ډیر ځله نیکه هغه کسان چې فکر یې کاوه پوره پاکی او عقل نه لري، په بدو الفاظو یادول.

نیکه هیڅکله مور نه وهلو، خو د نارینه د خبرې اغېزه تل پر مور پرته وه. له یوې خوا مې هغه ته د رناوي کاوه، خو له بله پلوه ترې سخت ډاریدم.

په ساراتف کې مور داولګا په څنډه په پراته یو دوه پوړیز لوی بلاک کې یو اپارتمان په کرایه نیولی و. په یو نسبتاً لویې او دوه ډیرو کوچنیو کوټو کې نیکه، نیا، مور او مور دوو ورونو ژوند کاوه. په اپارتمان کې دځان مینځلو او د حاجت درفع کولو تشنابونه نه وو او دا ټول شیان د باندې په کوڅه کې جوړ شوي وو. خپله مولر ګي چلول، بخارۍ موتود وله او او به مور اوړې. دځان مینځلو لپاره موله یو کوچني لګن نه ګنیه اخیسته چې په پخلنځي کې ځای پر ځای شوی و. په همدې ځای کې دوه کوچني میزونه هم وو چې پر یو د به یې پریموس او پر بل به یې لوښي ایښي وو. لږ وروسته مور ګازي داش پیدا کړ چې هغه وخت تر ټولو لویه نیمکرغي ګڼل کیده.

په لوه کوټه کې میز ایښی وچې شا ته یې د کورنۍ ټول غړي، بې له دې چې یو له بله کوه خاص شرم ولري، راټولیدل. مور مو په سیمه ییزه شورا (د ښاروالۍ په

دږوږی پرسرا تولیدو . هرځل به د ماښام دږوږی د نیکه په نصیحتونو پیل کیده:
کاچوغه یا پنجه باید څنګه ونیول شي ، دوږی باید څنګه وخوړل شي ، د دوږی
پرسر باید کومې خبرې وشي . . . ؟

که چیرې به سینما ته لاړو ، دبېرته راتګ په وخت کې نیکه خامخا اړکولو چې
دفلم کیسه ورته ووایو . وروسته زه پوه شوم چې د نیکه مقصد له دې کاره ، په کیسې
پوهېدل نه وو ، بلکه غوښتل یې په دې توګه زموږ حافظه وازمایي او هم راته د سمو
خبرو اترو لارې چارې وښیي .

نیکه د پر یفرانس (د قطعه دلوبې کوم ډول دی) لوبه ډېره خوښوله ان تر دی چې
د قطعي نوری لوبی به یې اصلاً لوبی نه ګڼلی هغه وارپه وار دیوی یا بلی لوبغاړی
ډلي غړی کېده . لومړی ډلې دوه ، درې یا څلور ورځې لوبې کولې او چې کله به
لوبغاړي یوله بله مات شول ، نیکه به سمدلاسه په نوې ډله کې په لوبو پیل
کاوه . دلته به یې هم دوه ، درې یا څلور ورځي لوبې کولې چې ټولې مخکنی عقدې
یې حل شي . وروسته بیا همدالړی له سره تکرارېده .

معمولاً داسې لوبې په پخلنځي کې کېدې ، ځکه چې د یونالیکل شوي قانون
له مخې ټول لوبغاړي مجبور وو ، سګرټ وڅکوي . داسې ګڼل کېده چې پریفرانس
بې له څکولو هیڅ معنی نه لري . ماښام چې به له کاره راغلل نو په لوبې به بوخت
شول او د سهار تر څلورو پنځو بجو به لوبه همداسې روانه ود . په تېر د بیا هغه وخت
چې نیکه تقاعدو کړ نو د الوبه به یې ډېره کوله . ماهم د دې لوبې لارې چارې له نیکه

له نیکه نه مې د سگرټ څکولو عادت هم په ارث اخیستی دی. دا یو ځانګړی دودو. هغه به دغرمې ډوډۍ له کورته راته او له رارسېدو سره سم به یې راډیو روښانه کړه، بیا به کښیناست او خپل سګرټ به یې ولګاوه. له هغه وروسته به یې د سګرټو پاتې برخه په یوه ایرنۍ کې، چې په هره کوټه کې موجوده وه، وغورځوله او لاسونه به یې ومینځل. په بله کوټه کې به یې بیا خپل بې فلتره سګرټ د څکولو په ځانګړې وسیله کې کېښود او وبه یې لګاوه. هره ورځ په بیلو بیلو کوټو کې د نیکه خوښې فلتره سګرټونه لګېدل او لوګی یې پورته کېدل ما به په مینه مینه له سګرټ نه پورته شوي لوګي ته چې لومړی نیغ او وروسته په کږه وږه لیکه پورته کېده، کتل.

کله کله به نیا له دې امله چې نیکه د ماشوما نو په شته والي کې سګرټ څکوي، پر هغه نیوکې کولې، خو دې خبر و هیڅ اغیزه نه لرله. له بلې خوا مور هم نور له سګر تو روږدي شوي وو. بیا به له دې امله تل په فرانسوي ژبه پر نیکه نیوه کي کولې، ښایي دا ځکه چې مور پرې پوه نه شو.

لومړی ځل مې په نه کلنۍ کې د سګرټ خوند وڅکه. بیا مې غوښتل که نه خبره پسې اوږده شوه. په هغه ورځ نیکه په کوټه کې اونیا په پخلنځي کې وه، زه هم په بله کوټه کې د ډوډۍ د میز شا او خواته څرخیدم هره ورځ مې په سر کې د سګرټ څکولو شوق و او ومې پتېبله چې خوند یې وګورم په تیره بیا چې د نیکه لګېدلی

رایادیږي ،نویونه انځوریدونکی کثافت په نظر راغی ، توخي وینولم او په داسې حال کې چې خوله مې له لوگي ډکه وه ،خوامې وگرځېده او سرمې هم په گرځېدو شو.
سره له دې چې نیکه هره ورځ دسگرت څکولو مخصوصه وسیله پاکوله خوسرېې یې له ځان سره انځورولی شي چې هغه څه ډول شی و ؟داسې وه زمالومړنی تجربه دایوازینی ناوړه څیز دی چې ماله نیکه نه په ارث وړی دی.
موږ نیکه ته په خپل ټول ژوند کې دومره ژور درناوی درلود چې وروورهمدا اوس هم په ساراتف کې دهغه ټول شیان خوندي ساتلي دي. ددغو شیانو په منځ کې هغه څوکۍ هم شته چې نیکه به پرې دمیز شاته کښیناسته دغرمې له ډوډۍ وروسته نیکه ورځپانه رااخیسته حلاصوله یې په لوستلوېې پیل کاوه او معمولاً دپنځو دقیقو وروسته به په هغې کې نغښتي خوب وړی و.
نیا موږ ډېره مواظبه ښځه وه، او چې خبره به دروزنې راغله نو بیا به یې نرمي نه پیژندله. تل به یې له موږ نه دلوستو پوښتنه کوله او دهلکانو لپاره له دې نه بله سختنه بلانه شته. نیامو زموږ د ورځني کارمهالویش په غور تعقیباوه او تل به یې موږ دخپل کار ، په وخت اجراته هڅولو. تل به یې موږ ته کتابونه لوستل. په تېره بیاهغه وخت چې موږ ډېر کوچنیان وو. دهغې له برکته موله ښوونځي نه ډېر پخوا لیک لوست زده کړی و. نیامو ۹۳ کاله عمرو کړ. دژوند وروستي اته کاله یې په بستر کې تېر کړل. دهغې څنگ ته دژوند تروروستۍ شیبې ،منځنی ورور سرگي ناست و.

لړه نیکمرغي ولیده. میړه یې په ځوانۍ کې له لاسه ورکړ: زموږ پلار زما دزیږیدو په کال(۱۹٤۳) په جګړه کې وژل شوی و. نوځکه دکورنۍ ټولې ستونزې - تنخوا کورته راوړل، دخوړو اوکالیو اخیستل دهغې پراوږد وې .مورمې د پیسو دګټلو لپاره دنارینه وپه څیر کارکاوه.له موراونیکه پرته چې په هغه وخت کې یې ځومحدودې ټېنګې تنخوا درلوده (او وروسته یې تقاعد وکړ) زموږ کورنۍ کوم بل ګټېندوی (روزی رسان) نه لاره.مورمې په خپل ټول ژوند کې دخپلو بچو اوکار په هکله فکرکاوه.

ترهغه ځایه چې مې مورراياديږي، هغې تل ان درخصتیو په ورځوکې کارکاوه، په کوچنیوالي کې مې د هغې په وړاندې دحسد احساس کاوه . ماته داسې بریښیده چې هغه خپله ټوله پاملرنه پردوخلکوته ګرځوي.

کله چې مې موررا یاده شي نوپه مرۍ کې مې غوټه جوړیږي. طبیعت ځومره په زړه پورې شیان هغې ته ورکړي وو. خوله ژوندانه،نیکمرغۍ او بچونه دخوند اخیستلو فرصت یې بېخي نه و ورښلی .مورمې تل دروسي ښځینه ښکلا اوروح دیوه تصویر په توګه زما په وجود کې ژوندۍ ده.

په وروستیو وختوکې ټولو خلکوستونزې لرلې اوژوند یې تریخ و.. خوبیا هم داسې ډېره کمه رخصتي به وه چې موږ به تیا ترته په کې نه تلو. مور به موتل تیاترته پرلاره دښودونکي ډرام کیسه راته کوله، نو ځکه به موږ له لومړي سره په

هیلې په ځېربرېښېده . د وروړ په ځیرمې له الکسي سره داوسیدونیمکرغې په برخه نه شوه. زه چې درې کلن شوم ،هغه حربي ښوونځي ته لاړ. یوازې داوونی په دوو وروستیو ورځوکې به کورته راته. ما به دهغه دښکلي یو نیفورم ننداره کوله اوبیا به مې غلي دخپل شلیدلي پرتوګ درزونه دهغه له نظره پټ کړل. شااوخوا بیکسی او غریبي وه هغه هیڅکله کورته یوازې نه راته تل به ملګری ور سره وو یورالاسف چې وروسته دراندہ اتلتیک کې دنړۍ اتل شو ،څوځو ځله زموږ کورته راغلی دی. نیا به همیشه دهغوی دراتګ په ورځ دهغه وخت له امکاناتو سره سم ښه شتمن دسترخوان جوړ کړ.

وروړمې اوملګري یې تل په شورماشور اوله خندا وهیلو ډکوخولوکورته راننوتل اوسمدلاسه به ددسترخوان چارچار پېره را تاول شول. کله کله به یې ما اوبل وروړته هم دکښیناستلو بلنه راکوله، خوډیر ځله به مې ترې اوریدل: « ځه له دې ځایه، ته لاسترشوی نه یې ! » داخبره یې ماته کوله.له سرګی سره به یې دخپل ښوونځي دچاروپه هکله خبرې اترې کولې. په ګډه به یې وروستي خبرونه تحلیلول. ذاستادانو په هکله به غږیدل.ښایې دنجونو په هکله به یې هم خبرې کولې ، نه پوهیږم. وروسته به لاړل چکرته .غالباً به ښرته ښوونځي ته دنڅالپاره تلل .کله کله به زه او سرګي هم هلته تللو. حربي ښوونځي دښار په مرکز کې و ، او ددوهم پوړ له کړ کیونه چې لرغوني ښه یې درلوده ، دموسیقۍ آوازغوږته رارسیده. دلوی

وربنوېدو.

د حربي ښوونځي ترپای ته رسولو وروسته الکسي دريازان پلي پوهنځي ته ورو پيژندل شو. هغه يې د بريد من په رتبه لومړی نارا - فومينسک او وروسته هنګري ته ولېږه، هلته چې همدا څو روزځې مخکې د هغه وخت دليکنو له مخې «ضد انقلابي اغتشاش» پای ته رسېدلی و. کورته يې ډېر کم ليکونه رالېږل خو بيا هم د هغو له مخې پوهېدو چې دنده يې بده نه ده. په کورنۍ کې چا د هغه د بر خليک په هکله انديښنه نه درلوده، ټولو په هغه وياړ کاوه.

په ۱۹۶۳ کال کې چې مالا د پتربورګ په حربي ښوونځي کې لوست وايه، الکسي يې ناڅاپه د طبيب په ملګرتيا له بودا پسته راوړ. د لمفاوي غدود سارکوم په ناروغۍ اخته شوی و. لکه چې مور ته يې وويل، هغه مسموم شوی و. څرګنده شوه چې پخوايې ورته په هنګري کې دوه عمليا ته کړي وو، خو ده په يوه ليک کې هم مور ته په دې هکله نه وو ليکلي. هغه مرګونی ناروغ و. ددې لپاره يې سارا تف ته راوړ چې دژوند وروستۍ شپې ورځې په خپله کورنۍ کې تېرې کړي.

لومړۍ ورځې يې په کورکې تېرې کړې، وروسته پوځي روغتون ته ولېږ دول شو. شپږ مياشتې وروسته چې زه له ښوونځي نه رخصت شوم نو له سرګي سره به مو وار په وار د ورور د بستر خوا ته کړې ورځ او شپه نوکري کوله.

زما رخصتي پای ته ورسېده او بايد تللی وای. دوه ورځې زمور تر ښوونځي لاره وه، چې راورسيدم، تلګرام يې راته وسپاره: الکسي مړ شوی دی.

او ښـايي نه به وي زه نه يـوازې له هغـه نـه مـشـوره غـواړم ،بلکه دخپلو کـارونو دسموالي په هکله نظرهم ترې پوښتم. دهغه ژوند ترما زيات تريخ و. هغه چې په ساراتف کې اوسېږي، دکورنۍ دټولو غمونو پيتي يې په اوږو پروت دی. لومړي مشر ورور مړشو او پوره يو کال وروسته مورد هغه له غمه له دنيا نه سترگې پټې کړې. وروسته نيکه مړ شوچې سرگي ورسره ځانگړې مينه لرله. دوه کاله وروسته مرگي دنيا ستونی هم ونيوه .

دوخت په تيرېدو سره سرگي واده هم وکړ. ښه زوی خدای ورکړ: ميشا : ميخايل سرگيويچ پوځي جراح دی. اوس يوه لمسۍ هم لري.

ورورمې هيڅکله «لوړو پوړيو » ته د پورته کيدو هڅه نه ده کړې. له ديرشو کلوزيات يې دتيلو اوگاز په څيړنيز انستيتوت کې کار وکړ. څوځله مې ورته وړانديز وکړ چې دکارلپاره به ورته دبل ځای په پيدا کولو کې مرسته وکړم. خوهرځل مې دردځواب اوريده: نه،زما زړه په دې انستيتوت پورې تړلی دی.

سرگي مې تل دژوند تکيه او ملاتړ و. د ۱۹۸۰ کال دجنورۍ په يوه نيمه شپه کې مې له تاشکند څخه همده ته تيلفون وکړ. د تيلفون لين بيخي خراب و، ايله مو پنځه دقيقې خبرې وکړې. دهرڅه په هکله وغږېدو اوگواکې هيڅ مو ونه ويل. يوبل موښه سره پېژندلې وو. هغه هڅه کوله، لږ مې ارام کړي: انديښنه مه کوه هرڅه به سم شي. ماهم ورته وويل: هرڅه به ښه شي ،انديښنه مه کوه ورته ويلي مې وو: تاشکند ښه ښاردی. ورته ويلي مې ووچې دلته ډېره واوره ده. ورته ويلي مې

# « ځانګړې دوسيه »

دځلويښتم لښکر وروستي ټولګي د ۱۹۸۹ کال دفبرورۍ په نيمايي کې له افغانستان نه ووتل. له دغې پېښې راوروسته څو تېر کلونه بس ووچې په تيره بيا دافغانستان په جګړه کې دشوروی اتحاد ګډون له سياسي زاويې وتلل شي.

خوتراوسه لاهغه ټول دلايل پوره روښانه نه دي چې دځلويښتم لښکر داستولو موجب شول. دا خبره له دې امله هم حيرانوونکي بريښي چې د ۱۹۷۹ کال په وروستيو ورځو کې ،افغانستان ته دجنګي قطعو استول له « دويمې نړيوالې جګړې وروسته دخارجي سياست په برخه کې دشوروي اتحاد تر ټولو ستراقدام ګڼل کيږي.

ددغو پريکړو دعاملينو خولې دادی تړې شوي چې ووايي دشوروی اتحاد دکمونيست ګوند دمرکزي کميټې په سياسي بيروکې چې دافغانستان حالات څېړل کېدل، په کوموموضوعګانو بحث وشو ؟ دسياسي بيورو غړيوڅه شی دخپل عمل ملاک ټاکلی و ؟ دافغانستان حالات دکومو معيارونو له مخې څېړل کيدل ؟ دزرګونو هغو شوروی پوځيانو دوژل کيدو اصلي ګناهکار څوک دی چې له خپلې ارادې پرته يې په پردۍ خاوره کې ګام کيښود اوپه جنګونو ورګډ شول. په جنوب

اتحاد د دریځونو د کمزورتیا پړه د چا پر اوږو پرته ده؟

ښکاره ده چې د شوروي اتحاد سیاسي مشرتابه د افغانستان د حالاتو د ښه کولو پریکړه د هغو اطلاعاتو پر بنسټ کړې وه چې په بیلابیلو وسیلو او په لومړي گام کې د بهرنیو چارو وزارت له لارې (مسکو ته) رسیدل. د کمونیست گوند مرکزي کمیټې ته په افغانستان کې د میشتو گوندي او پوځي سلاکارانو او د شوروي اتحاد د امنیت د دولتي کمیټې (ک. گ. ب) د افسرانو د رپوټونو سیلاب را روان و. نه یوازې خبر رسوونکو بلکه (د دغو خبرونو) څیړونکو او تحلیلوونکو موسسو هم ډیرې خولې تویولې.

آیا د هغوی معلوماتو، نتیجه اخیستنو او لارښوونو په افغانستان، کې د دغه هیواد د خلکو په دیموکراتیک گوند او وسله وال پوځ کې له ریښتینو حالاتو سره ځومره سمون درلود؟ د شوروي اتحاد د سیاسي مشرتابه د دغو یا هغو پریکړو، په تېره بیا افغانستان ته د پوځونو د لېږلو د عواقبو اټکل ځومره د مسلکي وړتیا او هوښیارۍ له مخې شوي و؟

زموږ هېواد خپل دودونه لري. یو هم دادی چې د دغه یا هغه سړي، د دې یا هغې سیاسي څېرې ریښتیني ارزښت، یوازې د هغه له مرگ وروسته معلومیږي، او کله کله داهم په ډیر ځنډ سره. خلک د خپلو پټو رازونو په څرگندولو کې چندان بیړه نه کوي. له دې امله زه گومان کوم چې په نږدې راتلونکي کې افغانستان ته د شوروي اتحاد د محدودو پوځي ټولگیو د استولو د ریښتیني کیسې څرگند بدل

هیله من یم چې دخبرونکو په زیارژریا وروسته دډیرو پوښتنو ځواب وموندل شي. زما په نظر همدااوس یوبل ټکی ډیر ارزښت لري: موږ ته په کار ده چې له تیرو لوستونو نه پند واخلو، په تیروتنوځان پوه کړو او هڅه وکړو په راتلونکي کې یې تکرار ته لاره خلاصه نه شي.

فکرنه کوم، دشوروی اتحاد دکمونیست گوند دمرکزي کمیټې دسیاسی بیرود پخواني ارشیف هغه اسناد چې دلومړي ځل له پاره په دې کتاب کې راوړل کیږي، هر اړخیزو تبصروته اړتیا ولري. دسیاسي بیرود غونډ ولیکل شوی لنډیز، دخبرو اترو ثبت شوې بنه اونور اسناد چې اوږده کلونه ډېر پټ ساتل کیدل، پخپله دلږ وړاندې پېښو یو رنگین انځوردی.

## دغرونو هېواد

افغانستان دمنځنی ختیځ په ښه غوټه زمکه کې پروت دی. پوره پلنوالی یې له ٦٤٧ زروکیلومترو مربع نه اوړي. دافغانستان ټولو گاونډیو، چین، هند، ایران پاکستان اوپخواني شوروی اتحاد ددغه هیواد په کورني سیاسي ژوندانه خپله خپله اغیزه ښندلې ده. دپاملرنې وړ ده چې افغانستان دروسیې په مرسته چې ددغه هېواد خپلواکي یې د ۱۹۱۹ کال دمارچ په ۲۷ ترټولو مخکې په رسمیت پېژندلې وه، د ۱۹۱۹ کال په اگست کې له انگریزانو سره دسولې تړون لاسلیک کړ. په نتیجه کې هېواد دپردیو له جغ نه خلاص شو اوپه نړیوال ډگر کې

ختمیدونکې لړۍ ګڼل کیدای شي. دافغانستان وروستی لس کلن تاریخ هم له دغې قاعدې نه بهرنه دی. دسلطنتي کورنۍ واکمني چې څوپېړۍ چلېدله اوان له انګریزانو سره ددریو خونړیو جګړو له توفان نه هم روغه راووتله، دهمدغې کورنۍ دغړیو په لاس رنګه شوه. د ۱۹۷۳ کال په دوبي کې چې ظاهرشاه دپاریس په کتنه بوخت و، دخپل سفرپه دربیمه ورځ خبر شوچې له تخته غورځول شوی دی. دکودتا لاربښوونه دپاچادتره زوی اوددہ په یوه حکومت کې (پخوانی) صدراعظم سردارمحمد داود په غاړه درلوده.

سپینه کودتا چې دسلطنتي ضد افسرانو په ملاتړ وشوه، دوخت له دیموکراتیکو غوښتنو سره یې سمون درلود. د ۱۹۶۵ کال له پیله په دغه هېواد کې دخلکو دیموکراتیک ګوند فعالیت درلود. دګوند دبنسټ تیږه هغو کسانو کیښوده چې یوه نیمه لسیزه وروسته تقدیر له موږ سره دهغوی نږدې اشناکیدل ممکن کړل. خولکه چې په ختیځ کې وایي« الله تعالی هرڅه ویني » هغه واکمني چې دتګی اوظلم په لاس جوړه شوې وي بقا نه لري. د داود دواکمنۍ په دوران کې مخالفتونو قوت وموندہ چې اصلي علت یې اقتصادي ستونزې وې. په دغه وخت کې دخلکو ژوند له اقتصادي پلوه'(دپخواپه انډول) په کمه موده کې دوه ځله خراب شو. دځواونیو په اوږدو کې دجمهوري نظام دړنګولوپاره درې ځله هڅې وشوې، خوهر واربې نتیجې وې. یوازې د ۱۹۷۸ کال په اپریل کې دخلکو دیموکراتیک ګوند مشران بریالي شول، دځو پوځي قطعو په مرسته چې له مخکې

قبضه وکړي.

خو دخلکو دیموکراتیک گوند واک ته له رسیدو وروسته دکورنیو سختو شخړو له امله دخپلې توټې کېدو مخه و نه نیولی شوه. دخلق او پرچم ډلې چې دخلکو دیموکراتیک گوند له جوړېدوا یله دوه کاله وروسته په هغې کې دننه راجوړې شوی اوږده کلونه یودبل په رسوا کولو اخته وې. دد غوډلو کورني اختلافونه دومره ژور وو چې ان شوروی گوندي سلاکاران دهغو په لیرې کولو بریالي نه شول.

## حتمي بری

د۱۹۷۸ کال داپریل له هماغې اووه ویشتمې نه دافغاني انقلاب لرلیدونه ځلانده ښکارېدل. د خلکو دیموکراتیک گوند مرکزي کمیټې عمومي منشي نورمحمد تره کی او دهغه پلویانو کولی شول دادولري ، شوروی اتحاد به سمدلاسه ،بې له کومې پلمې مرسته ورسره کوي. په نوي جوړشوي حکومت کې دنظریو له اختلاف،او له کورنیو گوندي شخړو سره سره دکابل نوي رژیم ، دځو دلیلونو له امله حق نه درلود واکمني له لاسه ورکړي.

ترهغو چې شوروي اتحاد ژوندی و په هیڅ هیواد کې انقلاب له ستونی نیول کیدای نه شو ،او دې خبرې په لومړي سر کې په هغو هېوادو پورې اړه لرله چې دشوروی اتحاد دپولې ترځنگ پراته وو.

دتر دکې دې تلوسې چې وروسته باتې افغانستان کولی شي په یو دتوپ



دشوروي مشرانو په زړ ونو کې له نوې زيرېدونکې دموکراسی سره د اخلاص نيت
هراړخيزو مرستو يوشوق راپارولی و. دافغانستان د پيښوو دې بايد يوځل بيا
ښودلی وای چې دلويدځ له ادعاوو سره سره کمونيستي نظريوخپل بالقوه ځواک
نه دی بايللی.

دکابل له حکومت سره دمرستې له لارې،شوروي مشرتابه غوښتل يو شمير
نورهدفونه هم ترلاسه کړي. دامريکې متحدو ايالتونوچې په ايران کې ماتې
خوړلې وه، هڅه کوله، داسيا په دې سيمه کې ورته بل پلوي ومومي. که چيرې
حالاتوسم بهيرموندلی وای، نوافغانستان دغسې يوهېواد کيدلی شو. د محمد
داود يو شمېرهڅې ددې ښکارندويي کوي چې په منځني ختيځ کې دامريکې
پلانونه دبري په درشل کې وو ،خو داپريل پيښو دغه منسوبه شنډه اوحالات يې
دشوروی په گټه واړول. زموږ دهېواد او افغانستان ترمنځ دوديز دوستانه اړيکي
د ۱۹۷۸ کال له اپريل وروسته په سيمه کې دشوروی اتحاد دستراتيژيک بري په
توگه گڼل کيدای شول. په افغانستان کې ديوشوروی پلوه رژيم شته والی ،داسې
يوروښانه دليل هم گڼل کېدای شو چې لويديز ته يې په ډانگ پيلې توگه
ښودله: « ددريمې نړۍ په هېواد وکې » دلويديځو هيوادو دپرانتيا غوښتنې هڅې
په جدي توگه تنگېدلی شي.

سرله دې چې دامريکې په انډول، شوروي په ايران کې پياوړی دريځ موندلی

په جمهوريتونو کې ډير پلويان موندلي شول. انقلابي افغانستان د دغسې ايديالوژۍ د خوربدو په لار کې په لوی خنډبدل شو.

تر ۱۹۷۸ کال پورې شوروي اتحاد د سوسيالستي کمپ د ننه دخپلو پلويانو د ننګې په برخه کې ښه پوره تجربه راټوله کړې وه. مورږ دغو هېوادو ته نه يوازې ناپايه اقتصادي مرستې ورکولې ،بلکه له پوځي ځواک نه کار اخيستل موهم له ياده نه وو ايستلي. په هنګري او چکوسلواکيا کې د شوروي مشر تابه لاس وهنو ، په هېواد کې د ننه د مخالفت د غورځنګ له يوځه پياوړتيا پرته ،نورې کومې ستونزې راونه زېږولې. له چکوسلواکيا او هنګري پرته کيوبا ،ويتنام او يو شمېر نورو هېوادونه هم وو چې شوروی اتحاد ورسره مخامخ ياد پرديې تر شا پوځي مرسته کوله. په دې توګه شوروی مشران بايد هغه عمل تکرار کړي چې بيا بيا يې (په نورو ملکونو کې) تکرار کړی دی. يوازينی توپير دا وچې داځل ټوله پاملرنه يوه اسيايي هېواد ته ګرځول شوې وه.

## د کورنۍ جګړې په جبهو کې

دافغانستان سياسي مشران له ډېرو اړخونو يوبل ته سره ورته دي. زيات يې په شتمنو کورنيو کې زيږيدلي او په يو اشرافي چاپيريال او ناز او نعمت کې يې خپل ژوند پيل کړی دی. ډېرويې ورته ليسې او پوهنتونونه لوستي او له همدې امله يوله بل سره هغه دچا خبره« د خوسي دلوبوله وخته » پېژني ،هغه وخت يو د بل په وړاندې ودرېدل او يو د بل په نه پخلاکېدونکو غليمانو بدل شول چې دوا ک د تر لاسه کولو

خبرو پرته، باید پریوږ ډلي د بلې ډلې دبري په توگه وگڼو.

د تره کي خلقي ډله چې واک لاس ته ورغلی و، اړ شود، په دوو جبهوکې مبارزه وکړي. له یوې خوا باید دشاله خواد خلکوپه دیموکراتیک گوند دخپلو پخوانیو اندېوالانو دگوزار مخه نیول شوې وای او له بلې خوا باید دزرغونېدونکي مخالف غورځنگ دفشار له امله دانقلابي حکومت د پرزیدلو لار د بنده شوې وای.

د ۱۹۷۹ کال په پسرلي کې نوره دلمرپه شان روښانه وه چې افغانستان د کورنۍ جگړې په لمبو کې گیر شوی دی.

دمارچ په ۱۵ په هرات کې حکومتي ضد پاڅون پیل شو. په دغه پاڅون کې ستره ونډه دپښتنو قبیلو استازو درلوده. د توپچي غونډ او دهوایي مدافع لوا پوځیانو چې دهرات په گارنیزیون کې ځای پرځای وو، دیاغیانو ملاتړ وکړ. له دې سره چوخت ایران دیوشمېر کډوالوپه بېړه ستنول پیل کړل چې دغه پاڅون نورهم تود کړی. بغاوت ایله دمارچ په شلمه وځپل شو. یوه ورځ وروسته دجلال آباد په گارنیزیون کې دیوې دسیسي ستیه راوسپړل شوه. له ۲۳۰ سرتېرو او افسرانو نه زیات دحکومتي ضد فعالیتونو په تورونیول شول. دغو پېښو په کابل کې دانقلابي رژیم شته والی عملاً له خطر سره مخامخ کړ. دغې لانجې ته دمسکو دواک په ډېرولوړو پوړیو کې هم پاملرنه وگرځول شوه.

## «موږ افغانستان له لاسه نه شو ورکولی»

دمارچ په ۱۷ دسیاسي بیروغړي دمقرر وخت خلاف دمرکزي کمیټې ودانۍ ته

پورې اړونده مسأله وړاندې کړه. بریژنف له خپل استراحت ځایه په تیلفون کې (دسیاسي دفترغړي) کیریلینکو ته وویل: په دې خبره کې هیڅ څندپه کارنه دی. زه سباځان دررسوم.

«ارشد محرم.

یونقل.»

گرومیکو: دهغو وروستیو رپوټوله مخې چې دشفري تلگرامونو په بڼه اویاله پوځي سرمشاور ملگري گاریلف اوشارژدافیر ملگري الکسي یف سره دتلفوني خبروله لارې لاس ته راغلي، دافغانستان حالات په بیړه خرابیږي. اوس اوس دهرات ښار دپاڅون په مرکز بدل شوی دی. له مخکینیو تلگراموڅخه ښکاري چې دغلته دافغاني اردو اوولسمه فرقه ځای پرځای ده چې دنظم په راوستلو کې بریالی شوه، خونوي معلومات داښیي چې دغه فرقه نوره بیخي خوره وره شوې ده. ددې فرقې یو توپچي او یو پیاده غنډ دیاغیانو خواته وراوښتي دي. له پاکستان نه راغلو ورانکارو اوتروریستي ډلو چې نه یوازې دپاکستاني واکمنو بلکه دچین اودغه راز امریکې اوایران په لاس روزل شوي اوپه وسلو سنبال شوي دي. په هرات کې ناتارپیل کړی دی. کورني انقلاب ضد عناصر هم له ایران او پاکستان نه هرات ته له راغلیو باغیانو سره یوځای شول. په دې ډله کې دروحانیونو ونډه ستره ده. دارتجاعي ډلو ډیر مشران مذهبي عالمان دي. داچې

دپاملرنې ور ده یادونه وکړم چې مادبهرنیو چارو له وزیراودتره کي له مرستیال امین سره دسهار په یوولسو بجو تیلفوني خبرې وکړې. هغه په افغانستان کې دحالاتو په باب هیڅ اندیښنه ونه ښودله اوپه خوراسړه سینه یې وویل چې حالات دومره کړکیچن نه دي اوداچې پوځ په حالاتو بشپړ کنترول لري او داسې نور. لنډه داچې دهغه له خبرو داسې بریښېده چې ددغه ملک حالات آرام دي.

کیریلینکو: دامین له خبروکه داسې لنډه نتیجه واخلو،دافغانستان مشران ددغو حالاتو له امله هیڅ وارخطایي له ځانه نه ښیي.

گرومیکو: دښبې منځ دې وویشته. امین ان وویل چې په افغانستان کې بیخي کراري ده. هغه وویل چې دکوم والي دسرغړونې علامې نه دي لیدل شوي. یعنې داچې ټول والیان دقانونې حکومت په لیکه کې ولاړدي، خوپه واقعیت کې، هغسې چې زموږ دملگرو له رپوټونو نه بریښي، دهرات اویو شمېر نورو سیمو حالات کړکیچن دي. په دغو ځایو کې یاغیان واک چلوي.

ترکومه ځایه چې دکابل خبره ده، نوپه دغه ښار کې اوضاع اساساً عادي ده. له پاکستان اوایران سره دافغانستان اوایران پولې تړلې اوکه دقیقه ووایم نیمې تړلې دي. ډیر افغانان چې پخوایې په ایران کې کارکاوه، له دغه ملکه شړل شوي اوبې شکه هغوی له دې حالت نه سخت خوابدي دي. ددوی زیاته برخه هم له یاغیانو سره یوځای شوې ده.

داچې موږ غواړو له افغانستان سره څه مرسته وکړو له هغو ورانديزونو نه په

نورلس ملیونه روبله دبهرنیو اسعارو په بڼه افغانستان ته بیلې کړي چې خپلې پولې پرې ټینګې کړي.

څرنګه چې پاکستان ،افغانستان ته دسرې وژونکو داستولو اصلي سرچینه ده ،فکرکوم ښه به داواي چې د افغانستان مشرتابه پا کستان ته کوم احتجاجیه لیک سپارلی وای اویایې په دې باب کومه وینا خپره کړې وای. لنډه داچې کوم سند یې باید خپور کړی وای. خوافغاني مشرتابه به داکارونه کړ .البته دایو عجیبه کاربریښي.

ماله امین نه وپوښتل : تاسې له موږ نه دڅه شي د ترسره کولو هیله لرئ ؟ماهغه ته دهغې مرستې اندازه او ډول وروښودل چې موږ یې د کولو وس لرو .هغه بله هیڅ غوښتنه له موږ نه ونه کړه. یوازې دومره یې وویل چې هغه دافغانستان حالات ډېر ښه ګڼي .ویې ویل چې ستاسې مرسته ډیره پرځای لګیږي .ویې ویل چې ټول ولایتونه دقانوني واکمنو په لاس کې دي. ماترې وپوښتل: ایا دګاونډیو هېوادو ،کورني انقلاب ضد ، مذهبیانو اونوروله خوادکومې ناوړې پیښې دکیدواحتمال نهویني ؟ امین په کلکو ټکو کې وویل چې نه . رژیم له هیڅ خطرسره مخامخ نه دی. دخبرو په پای کې دسیاسي بیورو غړو اوشخصاً بریژنف ته سلامونه وویل. داوې له امین سره زما دنن سهار خبرې.

څه وخت وروسته ،تقریباً د دوو ،دریوساعتو په ترڅ کې موږ له خپلو ملګرونه په هرات کې دګډوډیو دپیل خبر ترلاسه کړ. یوغنډ ،لکه مخکې مې چې

خواته ورواوښته . په دي توګه له حکومت سره يوازې داووسلمې فرقې يوه برخه
پاتې ده چې دهرات ساتنه کوي. زموږ ملګري داهم وايي چې نن سباپه پاکستان او
ايران کې دروزل شويو ياغيانو نوې ډلي دافغانستان خاورې ته ننوتونکي
دي. تقريباً نيم ساعت وروسته موله خپلو ملګرونه خبر ترلاسه کړچې زموږ پوځي
لوی سلاکارملګری ګاريلف اودسفارت شارژدافيرملګری الکسی يف ملګري تره
کي خپل ځان ته وربللي دي. له تره کي سره په څه موضوعګانو خبرې وشوې؟هغه
له هرڅه مخکې شوروی اتحادته دپوځي تخنيک، جبه خانې اوخوراکي موادو
دمرستې لپاره لاس اوږدکړ. په دغه هکله موږ مخکې اسناد برابر کړي او
دمنظورۍ لپاره موسياسی بيوروته وړاندې کړې دي. کله چې خبره دپوځي
مرستې راغله، نوتره کي داسې ضمني غوندې اشاره وکړه چې ښايي دهوايي
اوزمکنۍ مرستې اړتيا پيدا شي. له دې خبرې نه بايد داسې مطلب واخيستل شي
ښايي افغانستان ته زموږ دزمکنيو اوهوايي لښکرو داستولوخبره راوچته شي.

زما په فکر بايد افغانستان ته دمرستې په وخت کې يوعمده ټکی په پام کې
ونيسواو هغه داچې: موږ په هيڅ ډول نه شو کولی افغانستان له لاسه ورکړو.
دادی شپيته کاله موږ يوله بل سره په سوله او ښه ګاونډ يتوب کې ژوند کوو. که
اوس افغانستان له لاسه ووځي او دشوروي اتحاد له څنګه ليرې شي، نودابه زموږ
په سياست لوی ګوزار وي. له حکومت نه دپوځ دملاتړپه وخت کې فوق العاده
امکانات کارول يو دخبرداؤ له قانوني حکومت نه دپوځ دملاتړ په حالت ک

ډله کې زموږ پوځ هم مخالفت وکړي، نو حالات به بیخي نازک شي.
دملګروګاریلف اوالکسي یف داطلاعاتو له مخې، د (افغانستان) دمشرانو او په دې ډله کې خپله دملګري تره کي طبیعت چندان ښه نه ښکاري.

**اوستینوف:** پرشارژدافیرملګري الکسي یف سربیره تره کي ته زموږلوی پوځي سلاکار ګارلیف هم ورغلی و له ملګري ګارلیف سره ما په تلفون خبرې ورکړې او هغه راته وویل چې دافغانستان مشران له روانو حالاتو نه سخته اندیښنه لري. په تیره بیا دهرات او پکتیا حالات بوږنوونکي دي. بده خبره داده چې دهرات ساتونکې فرقه دومره غښتلې نه وه. دفرقې قوماندان په هوایي ډګرکې دی او که دقیق ووایم دغه ځای ته راتښتیدلی دی او روښانه ده چې دحکومت پلوي قطعي دهیڅ فعالیت لارښوونه نه شي کولای. ددې خبرومانا داده چې سباسهار (دمارچ په ۱۸) هرات ته اوپراتیفي ډلې استول کیږي.

موږ ملګري تره کي ته مشوره ورکړه چې څه لښکرې دې هغو ځایو ته ولیږي چې بغاوت په کې راپورته شوی وه. هغه په خپل واروویل چې داکارګران دی ځکه چې په نورو سیمو کې هم حالات خوځبدلي دي. لنډه داچې هغوی دشوروي اتحاد دهوایي اوزمکنیو ځواکونو ورګډېدوته سترګې په لاره دي.

**اندروپوف:** هغوی هیله لري چې موږ دې په یاغیانو ګوزارونه وکړو.

**کیریلینکو:** پوښتنه داده چې زموږ پوځیان که هلته ولیږل شي، له چاسره به

چې ترزیاتې اندازې داولس خلاف وسله پورته کړو.

**کاسیگین:** افغانستان څه ډول پوځ لري، په هغه کې څومره فرقې دي؟

اوستینوف: دافغانستان پوځ لس فرقې لري چې ټول شمېر یې سلوزروتنو ته رسیږي.

**اندروپوف:** تاوده رارسیدلي رپوټونه وایي چې نږدې درې زره یاغیان له پاکستان نه دافغانستان لورته استول کیږي. ددوی ډېر شمېر ړانده متعصب مذهبي خلک دي.

**کیریلینکو:** که ټول اولس راپاڅي نوله ایران او پاکستان نه په راغلو ډلو سربیره چې زیات یې تروریستان اوباغیان ګڼل کیږي، زموږ پوځ به اړشي چې دافغانستان له عادي وګړوسره جګړه وکړي. دغه عادي خلک داسلام د دین عاشقان دي.

**ګرومیکو:** تراوسه دحکومت دپولیانو اویاغیانو انډول پوره روښانه نه دی. داسې ښکاري چې دهرات بټهې ښه سمه ایشیږي، ځکه چې تراوسه دغلته له زرو زیات کسان وژل شوي دي، خوحالات لادغلته اوس هم پوره روښانه نه دي.

**اندروپوف:** ښکاره ده چې افغانستان ته ورننوتي باغیان ترهرڅه لومړی دشورش اوربلوي اوبیا دافغانستان خلک خپل لوري ته راماتوي.

**کاسیگین:** زه خو داګڼم چې دپریکړې طرحه چې غونډې ته وړاندې شوه، باید ښه ډیره اصلاح کړی شي ترهر څه لومړی دې دوسلو لیږل نورنه ځنډول

داشوه لومړۍ خبره.

دویمه داچې له روحیاتي پلوه دې دافغانستان مشران ډاډه کړی شي، اوماوړاندیز کړی چې دغه کارونه دې وشي: تره کی ته دې خبرورکړل شي چې موږ دهروزرو مکعب مترو غازبیه له ۱۵. نه ۲۵ روبلو ته لوړوو. دابه ترهرڅه لومړی هغوی ته دوسلو اونورو شیانو دبیو دپرې کولو لپاره پیسې برابرې کړي زه خوډایم داوسله دې افغانستان ته وړیاورکړل شی اوپه سلوکې د ۲۵ خبری یادول بیخي په کار نه دي.

ټول په یو آواز: سمه ده.

**کاسیګین:** دریم داچې موږ پریکړه کړې هغوی ته ۷۵ زره ټنه غنم هم ورکړو. زما په فکر په دې خبره کې دې نوی نظروشي اوپه کارده چې افغانستان ته سل زره ټنه غنم ورکړل شي. زما په عقیده دپریکړه لیک په طرحه کې دې دغو اقداماتو ته ځای ورکړل شي. په دې توګه کولی شو، افغاني مشران له رواني پلوه ډاډه کړو. په کار خوداده چې دافغانستان په سرمبارزه وکړو. آخردادی شپیته کاله یودبل څنګ ته اوسیږو. شک نه شته چې د ایرانیانو، پاکستانیانواو چینایانو خلاف مبارزه زوراخلي، خوایران له افغانستان سره مرسته کوي او ددې خبرې لپاره کافي دلایل هم لري. په تیره بیا چې ددواړو ملکونودین هم یو دی. داخبره ټنیګه په پام کې لرل په کار دي پاکستان هم ورته اقدام کولی شي. دچینایانو په هکله دویلو څه نه شته

له خوا) د پوځ د بېرته ورکړې خبره اصلاً د لته ځای نه لري، په تېره بیا د خارجي اسعارو په بڼه چې دلته لیکل شوي دي. هغوی بهرني اسعار له کومه کړل، موږ له هغوی څخه هیڅ شی لاس ته نه شو راوړلی.

**اوستینوف:** هغه څه چې په پریکړه لیک کې افغانستان ته د وسلو د سپارلو په برخه کې راغلي دي، دادی عملي کیږي. موټرې ډکې شوې او (هغې خواته) ورځي دي. خو له بده مرغه زه نه پوهېږم چې تر اپریله به دې کار بشپړ وای ممکن وي او که نه؟ ما ته خو ګرانه ښکاري. که زمانی د وسلو د سپارلو په هکله هماغه خبره ښه ده چې مخکې (په پریکړه لیک کې) راغلې ده... د وسلو د بېې او پیسو په موضوع کې زه هم داوایم چې ډاټکی دې بیخي (له پریکړه لیک نه) وایستل شي.

**کاسیګین:** ټول شیان سمدلاسه بارکوئ له همدې سبا ورځې نه شروع دد.

**اوستینوف:** ډېر ښه، دا کار به وکړو، او څارنه به یې هم کوو چې همدا سبا بارول پیل شي.

**کیریلینکو:** راځئ چې ملګري کاسیګین ته دنده وسپارو، د هغو وړاندیزونو او یادونو په پام کې نیولو سره چې موږ خبرې پرې وکړې، د شوروي اتحاد د وزیرانو شورا د پریکړه لیک په مسوده کې دې لازم بدلونونه اولي. سبا به دی د دغه سند سمه او بشپړه شوې مسوده موږ ته وړاندې کړي.

**کاسیګین:** خامخا زه سبا راځم او ټول شیان سموم.

**کیریلینکو:** موږ ته په کار ده چې ...

**کاسیګین**: دملګري اوستینوف په قول که چېرې په مارچ کې دټولو شیانو دبارولو امکان نه وي، نوبیا کیدای شي ځیني کم ارزښته شیان اپریل ته پریښودل شي، خوچې اندازه یې زیاته نه وي.

دغه راز زه غواړم ددې خبرې یادونه هم وکړم: هرڅه چې وي هم تره کی او هم امین له موږ نه دحالاتو ریښتیني څېره پټول غواړي. موږ تراوسه پورې له جزئیاتو سرد نه یو خبره چې په افغانستان کې څه تیرېږي. ددې حالاتو په هکله دهغوی نظر څه دی؟ دوی خوبیخي له خوښۍ ډک انځور وړاندې کوي، مګر موږ اوتاسې خو وینو چې په حقیقت کې هلته څه تېرېږي. دوی به ښه خلک وي، خوډېر شیان زموږ له سترګو پټول غواړي. داچې ددې خبرې دلیل څه دی، پوهېدل پرې ګران دي.

اندری اندرییویچ (ګرومیکو): زما په فکر باید ډېر ژر دسفیر موضوع غوڅه شي. عملاً داسفیر له اعتباره لویدلی یو سړی دی او هغه څه نه شي تر سره کولی چې غوښتنه ترې کیږي.

سربیره پر دې زه خوداګنم چې نورښه مسلکي پوځي سلاکاران دې هم ولېږل شي چې موږ ته په تفصیل سره دهغو پیښو رپوټ راکړي چې په پوځ کې تېرېږي.

همدارنګه زما په نظر په کارده (په دې باب) یوه هراړخیزه سیاسي پریکړه وشي. بدبه نه وای که ددغسې پریکړې مسوده دبهرنیو چارو او دفاع دوزارتونو، ک. ګ. ب او (دکمونیست ګوند دمرکزي کمیټې) دنړیوالو

دافغانستان خلاف دریدلي او په هر ممکنه وسیله به (د دغه هیواد) قانوني دولت
ته خنډونه پیدا کوي او دهغه کړنې به بې اعتباره کوي. له همدې کبله له ترکي او
دهغه له حکومت نه زموږ سیاسي ملاتړ ته اړتیا لیدل کیږي. البته کارتر به هم
دافغانستان دمشرتابه خلاف ودریږي.

دپوځونو داستولو په صورت کې به آیا موږ له چاسره مقابل شو او څوک به
دافغانستان داوسني مشرتابه خلاف آواز جګ کړي؟ هغوی ټول دمحمد (ص)
پیروان دي. دیوې عقیدې لرونکي دي او دهغوی عقیده او مذهبي تعصب دومره
خوټیږي چې هغوی ټول کولی شي، په همدې بنسټ لاس سره یو کړي. زما په نظر
په کار دد ترکي او امین ته مخامخ هغه خطاوې وربه ګوته کړو چې دوی کړې دي
. تر اوسه په دغه هیواد کې دناراضیانو اعدامول روان دي. دپرچم دګوند نه یواځې
غټ غټ مشران، بلکه ان دمنځني پوړې لارښوونکي یې بیخي له منځه یووړل
شک نشته چې سمدلاسه موږ ته دسیاسي سند دچمتو کولو امکان نه شته او لکه
چې ومې ویل، په دې هکله باید ملګرو ته درې ورځې وخت ورکړل شي.

**اوستینوف:** داټولې خبرې دکاني کرښې وې او لکه چې الکسي نیکلا یوویچ
(کاسیګین) وویل، څومره چې ژر کیدای شي باید ترسره شي.

**ګرومیکو:** داسناد و په چمتو کولو دې بیړه وشي.

**کاسیګین:** زما په عقیده. باید افغاني مشران دې ته اړنه کړو چې له موږ نه
دپوځونو دورلیږلو غوښتنه وکړي. هغوی دې دځان لپاره داسې ځانګړي پوځي

سیموته واستوي.

**اوستینوف**: زما خو دانظر دی چې که پوځونه مودغه هېواد ته ولیږل، نونه
بنا یي خپلې پوځي قطعې له افغاني قطعوسره ګډې کړو.

کاسیګین: موږ ته په کار ده چې خپلې پوځي قطعې چمتو کړو، دهغوی لپاره
ځانګړې نظامنامه تصویب کړو اوله ځانګړې قوماندې سره یې واستوو.

**اوستینوف**: موږ د (احتمالي) پوځي عملیاتو لپاره دوه جلا لارې سنجولې
دي. لومړۍ لارداده چې موږ په څلرویشتو ساعتوکې ۱۰۵ لمبرهوایي فرقه
افغانستان ته استوو اویو پیاده موټریزه غنډ په کابل کې پلی کوو. ۶۸۰
لمبرموټرریزه فرقه به دپولې خواته په حرکت راوستل کېږي، په داسې حال کې چې
پنځم لمبر موټریزه فرقه له مخکې نه پولې ته څېرمه ځای پرځای شوې ده. په دې
توګه موږ به د ۷۲ ساعتو په ترڅ کې افغانستان ته دپوځونو داستولو لپاره تیار
شوي یو، خولکه چې دلته ورته ګوته ونیول شوه، موږ باید (لومړۍ) سیاسي
پریکړه وکړو.

**کیریلینکو**: دملګري اوستینوف خبرې بیخي سمې دي. موږ باید
دباغیانوخلاف ودرېږو. زموږ په سیاسي سند کې دې هم پردې موضوع دقیقه او
پوره رڼا واچول شي.

ددې ترڅنګ موږ باید پرترد کي هم نفوذ پیدا کړو او ترکومه ځایه چې د پوځونو

کي سر هم په دې موضوع خلاص وي او په کار ده چې ملګري کاسيګين له ترد کي سره په خبرو کې دا خبره همداسې په زغرده وکړي. دغه رازدې تره کي ته وويل شي چې تاکتيک بدلول په کار دي. له ډليزو وژنو، ځورونو او نورونه کار اخيستل نه دي په کار. دمذهب په وړاندې، دمذهبي کړيو او شخصيتونو په وړاندې دچال چلند خبره، ددوی لپاره ځانګړې ارزښت لري. دادسترو سياستونويوه موضوع ده او همدلته ده چې ترد کي ته ښايي په ټينګه په دې اړه هرډول خپل سري غير مجاز اعلان کړي.

له همدغې سباورځې دې داسنادو دچمتو کولو لپاره متن راونغښتل شي. سبا ته به له ليونيد ايليچ (بريژنف) سره هم په دې هکله سلا مشوره وکړو چې څنګه کولی شو دغه چاره په ښه توګه سرته ورسوو.

**اوستينوف:** موږ (دعملياتو) دويمه لارهم سنجولې اوکره کړې ده. کولی شو، افغانستان ته (يوازې) دوه فرقې واستوو.

**اندروپوف:** موږ بايد دهغو نظريو او اصلاحاتو په پام کې نيولو سره چې ملګرو وړاندې کړ دخپل پريکړه ليک مسوده تصويب کړو دسياسي حل خبره دې هم چټکه کړی شي، ځکه چې له پاکستان او ايران نه دباندېونو بهير راروان دی.

**پوناماريف:** موږ ته په کار ده چې دکارپوهانو او سلاکارانو په توګه (۵۰۰) تنه افغانستان ته ولېږو. دا ملګري بايد وپوهول شي چې کوم کوم کارونه ترسره کړي.

ترد کی سره خبرې لازمی دي، خوزما په خیال ښه به داوي چې داکارملگری کاسیگین وکړي.

تړول: سمه ده، سمه ده. همداښه ده چې ملگری کاسیگین خبرې ورسره وکړي.

**اندروپوف**: سیاسی پریکړه دې چمتوشي، خوددې ټکي له پامه وتل نه دي په کار چې زموږ پرتندي دبلو سگر تاپه خامخا لگېدونکې ده، اوله دې سره سره موږ باید افغانستان په هیڅ ډول له لاسه ورنه کړو.

**پوناماریف**: له بده مرغه موږ دافغانستان په هکله په ډېرو خبرو نه پوهیږو. زما په نظر باید له ترد کي سره دخبرو په وخت کې تړولې مسألې مطرح شي او پۀ تېره بیا په پوځ اوتړول هېواد کې دحالاتو په هکله دې له هغه نه توضیحات وغوښتل شي. هغوی خوخپله سل زره کسیزه پوځ لري اوزموږ دسلاکارانو په مرسته کولی شي ډېر کارونه سرته ورسوي، خوهلته کومه شل زره کسیزه یاغي ډله راپاڅېږي اوپردوی بری مومي. په لومړي سرکې دې هڅه وشی چې هرڅه افغاني پوځ خپله سرته ورسوي اوکه چیرې ریښیني اړتیا پیداکیږي، نوبیا دې زموږ لښکرې واستول شي.

**کاسیگین**: دوسلو دلیرلو په خبره کې خو زه هم موافق یم، خوموږ باید لومړی په دې باوري شو چې هغه دیاغیانو لاس ته نه ورځي، که دهغوی پوځ تس نس شي، ورسرد جوخت دغه وسله هم دیاغیانولاس ته ورځي. وروسته بیا داپوښتنه

راټول او هرڅه دې بشپړ روښانه کړی شي راځی یو ملګري افغانستان ته ولېږو چې ځای پر ځای د حالاتو پوره جاج واخلي . ښايي ملګری او ستینوف یا ملګری اګارکوف ولېږو .

**اوستینوف**: د افغانستان حالات مخ په خرابېدو دي. زه خولا وايم چې لا اوس هم له سياسي لاروچارو نه د کار اخيستلو فرصت پاتې دی، په تيره بيا چې له ټولو دولونونه يې ګټه نه ده اخيستل شوې . له بلې خوا بايد د افغانستان له پوځ نه بشپړ داستفاده وشي. زه خو وايم چې افغانستان ته زما د تللو خبره هسې بې ګټې ده . راځئ چې د حکومت کوم غړي ته دغه دنده وسپارو .

**کاسيګين**: ديميتري فيودوروويچ (اوستينوف) تاسې د تګ لپاره ډېر مناسب ياست. خبره داده چې موږ افغانستان ته ډېره وسله لېږلې او بايد هغه دانقلابي پرګنو په لاس کې پاتې شي. موږ په افغانستان کې نږدې (٥٥٠) سلاکاران لرو او له هغوی سره بايد د حالاتو سمه څېړنه موجوده وي.

**اوستينوف**: که له موږ څخه څوک افغانستان ته لاړ هم شي، نوشک دی چې د ګوتو په شمېر څوورځو کې دې په ټولو خبرو ځان پوه کړي.

**ګروميکو**: زما په فکر، له ترد کي سره دې يا الکسي نيکلاپوويچ کاسيګين او يا ديميتري فيودوروويچ اوستينوف خبرې وکړي. خو د ملګري کاسيګين خبرې به غوره وي.

او بیا به له ترهٔ کي سره خبرې وکړم.

**اندروپوف:** په کار ده چې زموږ له ننني وپریکړو نه هم لیوېند ایلیچ په مفصله توګه خبر کړی شي.

**ګرومیکو:** موږ باید دا خبره وڅېړو چې دحالاتو د نورې خرابۍ په صورت کې موږ ته څه کول په کار دي د افغانستان حالات تراوسه زموږ (د پروملګرو) لپاره پوره روښانه نه دي. یوازې یوه خبره څرګنده ده: افغانستان غلیم ته نه شوو ورکولی، خو چې د اکار څنګه ترسره کیدای شي، باید لارې چارې ورته وسنجوو. ښايي موږ ته د پوځونو دلېږلو اړتیا نه وي.

**کاسیګین:** موږ ټول په یوه نظر یو: افغانستان باید له لاسه ونه وځي. دهمدې اصل پربنسټ دي سیاسي سند تیار کړی شي. له ټولو سیاسي لارو چارو نه په استفادې سره دې دافغاني مشرتابه لنګه او ملاتړ وسي. هغه مرستې دې ترسره شي چې همدغه اوس موخبرې پرې وکړې او دیوورو ستي ګام په توګه دې له پوځونو نه دکاراخیستلو اصل په پام کې وساتل شي.

**ګرومیکو:** زه غواړم په دې خبره ټینګار وکړم چې موږ ته په کار ده، په دې ټکي هراړخیز غور وکړو چې دحالاتو د لا خرابۍ په صورت کې دڅه عکس العمل ښودل په کار دي. تره کي وارخطايي ښيي، خوامین لا تراوسه د حالاتو په ښه کېدو ډاډه ښکاري. لنډه دا چې، لکه تاسې چې وینئ، افغاني مشران دخپل پوځ او ټول هېواد حالات په ناسمه توګه ارزوي.

خواسمه لاربنوونه ورته وشي، کولی شي، دهېواد له دريغ نه په دفاع کې ودرېږي او همدا اوس هم ولاړ دی.

**کيريلينکو:** خبره داده چې دېرپوځي قوماندان يابنديان، يا اعدام شوي دي او دې خبرې پرپوځ ناوړه اغيزه ښندلې ده.

**گروميکو:** يوه مهمه خبره دپوځ پياوړتيا ده او دا اساسي کړی بلل کېږي، خوبيا هم وايم چې افغاني مشران دېرخه له موږ نه پټوي، ښکاري نه غواړي په صداقت له موږ سره وغږېږي. دادېر دردوونکی حقيقت دی.

**اندروپوف:** زما په نظرپه کار ده چې دخپلو دې تدبيرونو په اړوند سوسياليستي هېوادونه خبر کړو.

**کيريلنيکو:** ملگرو موږ ډيرې خبرې وکړې. نظرونه پوره ښکاره شول. راځئ چې اوس نتيجه واخلو:

۱- ملگري کاسيگين ته بايد دنده ورکړو چې وړاندې شوې طرحه سمه کړي او هلته دې دسلو زروټنو غنمو دلېږلو، له ۱۵ نه ۲۵ روبلو ته دگاز بيې دلوړولو، دبيحې او پوره بيرته غوښتلو خبرې دله منځه وړلو ټکي ځای کړي.

۲- ملگري کاسيگين دې له ملگري تره کي سره په دې هکله وغږېږي چې هغوی دخپل هېواد حالات څنگه څېړي او له موږ نه دځه شي دغوښتلو تمه کوي ملگري کاسيگين ته په کار ده چې له تره کي سره په خبرو کې دې په ...

اندروپوف، اوستینوف اوپوناماریف ته دنده سپارل کیږي چې دافغانستان په هکله زموږ ددریځ په اړه دې دننني غونډې دبهیر په پام کې نیولوسره یوسیاسي سند جوړ کړي.

٤ - دبهرنیو چارو دوزارت له لارې دې دپاکستان غوږ ته ورسول شي چې ددغه هېواد حکومت دې دافغانستان په کورنیو چاروکې له لاس وهنې ځان وژغوري.

٥ - فکرکوو باید دملګري اوستینوف له دې وړاندیز سره موافقه وشي چې زموږ دوسله والو ټولګیو په مرسته دې له افغاني پوځ سره دهغو ستونزوپه هوارۍ کې لاس وشي چې ورسره مخامخ شوي دي.

٦ - دافغانستان په پوځ او ټول دغه هېواد کې دحالاتو دروښانتیا لپاره دې هم ددفاع وزارت او هم د ک. ګ. ب له لارې ښه پوځي سلاکاران واستول شي.

٧ - زموږ دپریکړه لیک په مسوده کې دې داټکی هم ځای کړی شي چې دافغانستان په کورنیو چاروکې دپاکستان ، ایران ، دامریکا دمتحد وایالاتو او چین دلاس وهنو په هکله د مطالبو تیارول او ددریمو هېواد له لارې یې خپرول ضروري دي .

ژژژو پوناماریف اوزامیاتین ته دنده سپارل ٨٢٧٢٧٢٧٢٧٢٧ - ملګر کیږي چې دافغانستان خلاف دپاکستان ، ایران چین ، امریکا اونورو هیوادو

دشوروي اتحاد دتورن کولو په وخت کې باید دغو تورو نو ته ځنګه ځواب وویل شي.

۱۰ – ددفاع وزارت ته دې دشوروي ، افغان په ګډه پوله کې د دووفرقو دځای پرځای کولو اجازه ورکړی شي ، اوبالاخره لکه چې دلته وویل شول ، په کارده سوسیالیستي هیوادو ته دننني غونډې دپریکړو په باب خبرورکړل شي. ملګري بل کوم نظرلري ؟

تره کی : تاسې ټول شیان په پام کې نیولي دي.

کیریلینکو : ډېرښه ، زه همدا اوس هڅه کوم ، له ملګري چرننکو سره خبرې وکړم او خپل وړاندیزونه هغه ته ووایم

تره کی : سمه ده.

کریلینکو :

ماهمدااوس دملګری چرنینکوسره خبری وکړی هغه وویل چې خبری موسمی جوړی کړی او هغه هڅه کوی چې په دې هکله لیونیدایلچ ته معلومات ورکړی.

## « زغره وال ګاډي په الوتکو کې راولېږي »

دانقلابونو غټیه ځانګړ تیاهغه ببرحمي ده چې دهغې په ملګر تیا ټولنیز بدلونونه سرته رسیږي اونوی نظم دروړل کیږي . دافغانستان داپریل انقلاب په دې قاعده کې استثنی نه و . عجبیه داده چې له زوره نه کاراخیستل . دټولنیز علومو

په تلفوني خبروکې چې متن يې له لنډيززپرته دلته راوړل کيږي ، په دې عقيده دی چې منځ ته راغلې ستونزې ،کيدای شي او بايد دشوروي وسلو په مرسته غوځې شي.

« اشد محرم.

ځانګړې دوسيه »

كاسيګين : ملګري ترکي ته وواياست چې دليونيد ايليچ اود سياسي بيرو دټولو غړو سلامونه ورته ورسوم.

**تره کی:** ډېر د مننه.

**کاسيګين:** دملګري ترکي روغتيا څنګه ده. ډير خوبه ستړی شوی نه دي ؟

**تره کی:** نه ، ستړی کيږم نه . نن دانقلابي شوراغونډه وه .

**کاسيګين:** ډيرښه . له ملګري تره کي نه وغواړئ (داخبرې دژباړونکي په مرسته سرته رسيدلي ب. ګ ) دافغانستان دحالاتو يوتصوير راکړي.

**تره کی:** حالات ښه نه دي ، مخ په خرابېدو روان دي . دوروستی يوې نيمې مياشتې په اوږدوکې ايراني لوري خپل څلور زرد پوځيان په ملکي کالوکې زموږ خاورې ته رالېږلي چې دهرات ښار اوپوځي چوني ته يې نفوذ وکړ . اوس ټوله اوولسمه پلې فرقه ديود توپچي غونډاو دهغوايي مدافعې ديوې لواء په ګډون دهغوی په لاس کې دي اوپرله پسې زموږ په سرتېرو ډزې کوي . په ښارکې اخ وډب روان دي ،

**تره کی:** شمېر يې تر پنځو زرو تنو رسيږي . ټول مهمات او جبه خانه د هغوی په لاس کې دی. خپلو ملګرو ته چې له هغوی سره په جګړه اخته دي ، له کندهاره په الوتکه کې حواله او مهمات لېږدوو .

**کاسيګين:** هلته ستاسې د پلويانو شمېر څو دی؟

**تره کی:** ۵۰۰ تنه . هغوی د فرقې د قوماندان په مشرۍ په هوايي ډګر کې ځای پر ځای دي. د هغوی مرستې ته مو له کابله په الوتکو کې او پراتيفي ډلې ورواستولې . تن سهار هغوی هوايي ډګر ته ورو سبدلي دي.

**کاسيګين:** ايا د فرقې افسرانو هم خيانت کړی؟ که کومه برخه يې د فرقې له قوماندان سره په هوايي ډګر کې دي ؟

**تره کی:** يوه وړه ډله له موږ سره ده خو نور ټول غليم ته ورا وښتي دي.

**کاسيګين:** ايا د هرات د کارګرو ،ښاري کسب ګرو او مامورينو په منځ کې ملګري لرئ؟ ايا کوم څوک لاستاسې ملاتړ کوي که نه؟

**تره کی:** خلک زموږ فعال ملاتړ نه کوي. هغوی تقريباً ټول د شيعه ګانو د مذهبي شعارونو تر اغېزې لاندې راغلي دي. د هغوی تبليغات پردې بنسټ بنادي چې: « په ملحدانو باور مه کوئ، په موږ پسې راځئ ».

**کاسيګين:** هرات څومره نفوس لري ؟

**تره کی:** له ۲۰۰ نه تر ۲۵۰ زرو تنو پورې هغوی د وخت د تقاضا له مخې عمل

**کاسیګین:** او کارګران هلته ډېر دي که نه؟

**تره کی:** ډېر لږ دي، ټول ټال یو یا دوه زره تنه.

**کاسیګین:** ستاسی په عقیده د هرات د پیښو لرلیدڅه دی؟

**تره کی:** زموږ په عقیده ټن مازیګر یا سبا سهار به هرات سقوط وکړي او بشپړ په دغلیم لاس ته ورسي.

**کاسیګین:** وړاندې به څه کیږي؟

**تره کی:** شک نه شته چې غلیم به نورې پوځي ټولګي جوړ وي او مخ په وړاندې به یرغل پیل کوي

**کاسیګین:** دهغوی د ماتولو لپاره کافي ځواک نه لرئ؟

**تره کی:** که چیرې مو درلودلی...

**کاسیګین** : په دې موضوع کې ستاسې وړاندیزونه څه دي؟

**تره کی:** موږ غواړو چې تاسې له موږ سره د سرو اووسلوله لارې عملي او تخنیکي مرسته وکړئ.

**کاسیګین:** دا ډېر د ستونزمنه لانجه دد.

**تره کی:** له دې پرته به غلیم د کندهار او ورپسې د کابل خواته راوړاندې شي هغوی به نیم ایران د هرات د فرقې تربیرغ لاندې په ځان پسې را روان کړي. پاکستان ته تښتیدلي افغانان به هم راستانه شي. ایران او پاکستان زموږ خلاف په ګډه منسره کار کوي. له همدې امله که تاسې په هرات یو رښتینی ګوزار وکړئ،

**کاسیگین:** له دې خبرې نه سمدستي ټوله نړۍ خبرېږي. یاغیان د بیسیم دستګاوې لري او سمدلاسه به خبرورکړي.

**تره کی:** هیله کوم چې له موږ سره مرسته وکړئ.

**کاسیگین:** موږ مجبور یوپه دې اړوند (په خپل منځ کې) سلامشوره وکړو.

**تره کی:** ترهغې چې تاسې مشورې کوئ، هرات به یې نیولی وي او هله به نوهم دشوروي اتحاد اوهم دافغانستان لپاره نورې سترې ستونزې رامنځته شي.

**کاسیگین:** اوس نود پاکستان اوپه جلاتوګه دایران په هکله خپل ورانديزونه راته ووایاست. آیا تاسې د ایران له مترقی عناصرو سره اړیکي نه لرئ. آیا نه شی کولی هغوی ته ووایئ چې ستاسې ګډغلیم امریکاده. ایرانیان امریکایانو ته سخت په غوسه دي اوله دې خبرې نه تبلیغاتي ګټه اخیستل کیدای شي.

**تره کی:** موږ همدانن دایران پرحکومت ،دهرات په چاروکې دلاس وهنو له امله اعتراض وکړاو دراډیوله لارې موخپورکړ.

**کاسیگین:** ایا نه غواړئ پرپاکستان ورته اعتراض وکړئ؟

**تره کی:** سبا ،بل سبابه پرپاکستان هم ورته اعتراض وکړو.

**کاسیگین:** ایا تاسې پرخپل پوځ ډاډه یاست. دغه ډاډ څومره باوري دی،آیا په هرات باندې دګوزارکولو لپاره څواک نه شئ ټولولی؟

**تره کی:** زموږ په نظر پوځ ډاډمن دی، خوله نوروښارونو د پوځونو ایستل اوهرات ته لیږل یې ممکن نه دي، ځکه چې داکار په نوروښارونو کې زموږ دریځ

**کاسیګین:** که موږ په بیړه نوي الوتکې اووسله درکړو، تاسې، دنویو پوځي ټولګیو دجوړولو وس نه لرئ؟

**تره کی:** ددې کارلپاره دېر وخت په کار دی او هرات به سقوط وکړي.

**کاسیګین:** ستاسې په عقیده که هرات سقوط وکړي، نوپاکستان به هم په خپله ټوله پوله کې په ورته اقداماتو لاس پورې کړي؟

**تره کی:** ددې خبرې امکانات ډېرزیات دي. له دې پېښې وروسته به دپاکستانیانو جرأت زیات شي. امریکایان په دې برخه کې له هغوی سره مرسته کوي. دهرات له سقوط وروسته به پاکستانیان هم خپل عسکر په ملکي کالو کې راولیږي او دښارونو نیول به پیل شي او ایرانیان به هم خپلې لاس وهنې چټکې کړي. په هرات کې بری له مبارزې سره دترلو نورو ټولو لانجو کونجي ګڼل کیږي.

**کاسیګین:** دنړیوال سیاست په ډګر کې تاسو له موږ نه دکومو اقداماتو یا اعلامیو تمه لرئ؟ تاسې له تبلیغاتي پلوه په دې برخه کې کومه طرحه یا وړاندیز لرئ؟

**تره کی:** په کار ده چې تبلیغاتي او عملي مرسته یو دبل په څنګ کې ترسره شي. زما په نظر که تاسې په خپلو ټانکونو او الوتکو افغاني نښانونه ولګوئ، هیڅوک به پرې پوه نه شي. ستاسې لښکرې دکوشک او کابل له لارې کولی شي، پرمخ لاړې شي.

رالېږل کيدای شي. زمونږ په عقيده که تاسي کابل ته پوځ راولېږئ او هغوی بيا له کابله د هرات پرلور وخوځېږي ،هيڅوک به خبر نه شي ، فکر به کېږي چې د احکومتي عسکر دي.

**کاسيگين:** زه نه غواړم تاسې خوابدی کړم ، خو ددې خبرې پټول ممکن نه دي ، ټوله نړۍ به دوه ساعته وروسته ترې خبره وي.

چيغې به وهل کيږي چې شوروي اتحاد پر افغانستان يرغل پيل کړی دی.

ملگري تره کی! دا راته ووايا ست که مونږ په الوتکو کې کابل ته د ټانکونو په گډون وسله دروړو ، ايا تاسې به ټانکستان پيدا کړای شئ که نه ؟

**تره کی :** ډير کم شمېر.

**کاسيگين :** نوڅومره ؟

**تره کی:** شمېر يې راته پوره معلوم نه دی.

**کاسيگين:** که په الوتکو کې په بېړه سره ټانکونه ، اړتيا وړ مهمات او هاوانونه درولېږو ، د دغې وسلې د کارولو لپاره به فني پرسونل ومومئ که نه ؟

**تره کی:** دې پوښتنې ته زه ځواب نه شم ويلی ، دې ته شوروی پوځي سلاکاران ځواب ويلی شي.

**کاسيگين:** (ستاسې له خبرونه ) داسې نتيجه اخيستل کيدی شي چې په افغانستان کې ښه چمتو پوځي کادرونه نه شته او يا ډېر لږ دي په سلگونو افغاني افسرانو په شوروي اتحاد کې زده کړې کړي ، هغوی ټول په کومه سوړه ننوتي دي ؟

**تره کی:** دهغوی زيات شمېر مرتجع مسلمانان يا اخوانيان دي. مونږ پر هغوی تکيه نه شو کولای .باور نه پرې لرو.

**کاسيگين:** د کابل نفوس څومره دی ؟

**تره کی:** نږدې يو ميليون.

**کاسيگين:** که چيرې له هوايي لارې به په ...

خودهغوی روزنه ډیر وخت نیسي.

**کاسیگین:** او محصلین جلبیدای نه شي؟

**تره کی:** له محصلینو او دلیسو دیوو لسمو او دولسمو ټولگیو له زده کوونکو نه یوڅه جوړېدای شي.

**کاسیگین:** ایا د کارگرې طبقې له منځه څوک نه شئ غوره کولی.

**تره کی:** دافغانستان کارگره طبقه ډېر لږ شمېر لري.

**کاسیگین:** اونادار بزرگران څنگه؟

**تره کی:** دښوونځیو دپاسنیو ټولگیو په شاگردانو، محصلینو او یوکم شمیر کارگروحساب کیدای شي، خودهغوی روزل اوږده کیسه ده، خوکه اړشو نوبیا به هرڅه ته لاس اچوو.

**کاسیگین:** موږ پریکړه کړې چې پوځي مهمات به بیړه دروليږو، ستاسې هلکو پترې اوالوتکې به د ترمیم لپاره ومنو اوداټول په وړیا توگه. دغه راز مووپتییله سل زره ټنه غنم درولیږو اودهرو زرو مکعب متروگاز بیه له ۲۱ ډالرونه ۸۲ و ۳۷ ډالروته لوړه کړو.

**تره کی:** داخوښه خبره ده، خورائې دهرات په هکله وغږېږو.

**کاسیگین:** ښه ده ایا نه یوازې د کابل، بلکه دنورو ښارونو له مترقی عناصرو څخه چې تاسې پرې تکیه کولی شئ یوڅونوې فرقې نه شئ جوړولی. موږ به داړتیا وړوسله درکړې وای.

**تره کی:** افسران نه لرو. ایران خپل پوځیان په ملکي کالوکې رالیږي. پاکستان هم خپل افسران اوسړي په افغاني جاموکې رالیږي، شوروی اتحاد ولې نه شي کولی تاجکان، ازبکان او ترکمنان په ملکي کالوکې راولېږئ هیڅوک به هغوی

تره کی: غواړو چې تاسې د ټانکونو د چلولو لپاره ازبکان، ترکمنان او تاجکان راولیږئ. د غه ټول ملیتونه زموږ په خاوره کې هم شته. د افغانانو جامې دې واغوندي. افغاني نښانونه دې ووهي، هیڅوک به یې ونه پېژني زموږ په نظر دا یو ډېر اسان کار دی. د ایران او پاکستان تجربه ښیي چې دا کار په اسانۍ سره کیدلی شي. هغوی زموږ سرمشق دی.

کاسیگین: بې شکه تاسې دې ستونزې ته په ساده سترگه گورئ، دا یوه ستونزمنه نړیواله مسأله ده. خوله دې سره سره موږ به بیا سره جرگه شو او هله به تاسې ته ځواب درکړو. زما په عقیده تاسې باید د نویو قطعود جوړولو هڅې پیل کړي وای. له بله ځایه په راغلیو خلکو تکیه کول په کار نه دی. د ایران په انقلاب کې مو ولیدل چې خلکو څه ډول امریکاییان او ټول هغه کسان ایسته وغورځول چې ځانونه یې د ایران د مدافعانو په جامو کې نغښتي وو.

راځئ داسې پریکړه به وکړو: موږ مشوره کوو او بیا به تاسې ته ځواب ووایو، او تاسې په خپل وار له خپلو پوځیانو او زموږ له سلاکارانو سره جرگه شئ، په افغانستان کې داسې وگړي نشته چې له تاسې څخه ملاتړ وکړي او د سر په بیه ستاسو لپاره وجنگیږي. همدا ځوا کونه باید وسله وال کړای شي.

تره کی: زغره وال گاډي راته په الوتکه کې راولیږئ.

کاسیگن: تاسې یې د چلولو لپاره وگړي لرئ؟

.زمونږ چلوونکی خوپه ژبه نه پوهیږي.

تره کی: تاسې ګـاډي له هغـه چا سره راولیږی چې زمونږ په ژبه پوهیږی منظورمی ازبکان او تاجکان دی.

کاسیګین: ماله تاسې نه دهمدغسې یوه ځواب تمه درلوده. موږ سره ملګري یو. مبارزه موشریکه ده. یوله بله شرم کول نه دي په کار تولوشیانو ته باید له همدې زاویې وکتل شي.

موږ به بیا تلفون درته کوو. خپل نظربه درته وایو.

تره کی: زمونږ درناوی اودزړه له کومې هیلې ملګري بریژنیف او تولې سیاسي بیوروته ورسوئ.

کاسیګین: مننه. تاسې هم خپلو تولوملګروته زمونږ سلامونه ورسوئ، اوتاسې ته دستونزوپه غوځولو کې متین عزم، په ځان باور او هوسایي غواړم. په مخه موښه»

# «دپوځونو دلیږلو لپاره دلیل نه شته»

دیکشنبې په ورځ ا. ن کاسیګین له ن. م. تره کي سره دخپلو تلفونی خبرو اوله کابله نن سهار درارسیدونکو تلګرامونوپه هکله دسیاسي بیورو غړوته معلومات ورکړل. خبرواترو دوام وموند.

**«راشد محرم**

**بونقل»**

ترزنې ناست او یاد حکومت مخالفینو ته وراوښتي دي؟

کاسیگین: زموږ د معلوماتو له مخې تراوسه یوازې یوتو پچې او یو پیاده غونډ او هغه هم ټول نه، له مخالفینو سره یوځای شوی او پاتې یې د حکومت ننگه کوی.

اوستینوف: ترکومه ځایه چې د تاجکو خبره ده (باید ووایم) چې موږ له هغوی نه جوړې ځانگړې قطعې نه لرو، ان دا اوس گرانه ده ووایو چې د دوی څه شمېر د ټانگ په قطعو کې خدمت کوی.

کاسیگین: دهوایی مدافعې کنډک چې په هرات کې پروت و، هم له مخالفینو سره یو ځای شوی دی.

استینوف: له امین سره چې مې خبرې کولې، هغه هم هرات ته د پوځونود لېږلو او دغلیم دماتولو غوښتنه لرله.

کاسیگین: ملگری تره کی وایی چې دهرات فرقه سمه نیمه دغلیم ترڅنگ ولاړه ده او داسې ښکاری چې پاتې نیمه به هم د حکومت ملاتړ ونه کړی.

اوستینوف: امین ما ته وویل چې افغانی انقلاب له غتیو خنډونو سره مخ شوی او ژغورنه یې اوس یوازې دشوروی اتحاد په لاس کې ده.

خبره څه ده او ولې داسې پیښه شوی؟ اصل موضوع داده چې دافغانستان مشرانو داسلام دین نقش ته کم ارزښت ورکړی و. سرتیری چې غوڅ اکثریت یې دیوې کمې کتلې په استثنی، صادق مؤمنان دی، داسلام تر بیرغ لاندې دریدلی دی. له دې امله هغوی له موږ نه دهرات دیاغیانو د ....... په ماتولو کې د .......

ډاډه دی. ده هم لکه دملګری تره کی غونډې دمرستې لپاره لاس اوږد کړ.

کیریلینکو: یعنې دا چې هغوی پر خپل پوځ پوره ډاډ نه لری. هغوی په یوې پریکړې پورې زړه تړلی او هغه دا چې زموږ ټانکونه او زغره وال ګاډی ورشی.

کاسیګین: شک نشته چې موږ باید مرستې په هکله دپریکړې له کولو مخکې، ددې کار عواقب په جدی توګه وسنجوو. دا بیخی جلا خبره ده.

اندروپوف: ملګرو ما ددې ټولو مسألو ژور جاج واخیست او دې نتیجې ته ورسیدم چې موږ باید په ډیر سخت جدیت سره دا پوښتنه حل کړو چې دڅه په خاطر افغانستان ته عسکر لیږو؟ دلمړغونډې ښکاره ده چې اوس اوس افغانستان بیخی چمتونه دی چې موجودې لانجې په سوسیالیستی طریقه حل کړی. هلته دمذهب بشپړه واکمنې ده. کلیوال وګړی له سره تر پښو په بیسوادی کې ډوب دی. اقتصاد بیخی وروسته پاتې دی او داسې نور. موږ دانقلابی اوضاع په هکله دلینین په تیوری پوهیږو. په افغانستان کې دکومې اوضاع په باب خبرې کیږی، هلته اصلاً دغسې شرایط نه شته. له دې امله، زما په نظر دافغانستان دانقلاب یوازې زموږ دتورې په زور ساتل کیدای شی او دا کار زموږ لپاره اصلاً دمنلو وړ نه دی. موږ دا خطر نه شو زغملی.

کاسیګین: په دې کې څه وایئ که موږ خپل سفیر ملګری دینوګرادوف ته لارښوونه وکړو چې د ایران صدراعظم بازرګان ته ورشی او د افغانستان په کورنیو چارو کی دلاس وهنې له امله خبرداری ورکړی.

افغانستان ته د پوځونو دلیږلو خبره دې له سره وایستل شي. د هغوی خپل پوځ
ډاډمن نه دی. له دې امله زموږ لښکرې چې افغانستان ته ننوځي، له یرغلګرو
پرته به بل څه نه وي. هغوی به د چا خلاف جګړه کوي؟ ښکاره ده چې د افغان اولس
خلاف او په لومړي ګام کې باید په همدې اولس ډزې پیل شي. ملګري اندروپوف
بیخي پر ځای وویل چې د افغانستان حالات د انقلاب لپاره پاخه شوي نه دي او
هغه څه چې موږ په څو وروستیو کلو کې په دومره زیار تر لاسه کړي، یعنې د نړیوال
تشنج کموالی، د وسلو کمښت او داسې نور، له خاورو سره به برابر شي، او البته
په دې عمل سرد به مو چین ته هم ښه ډالۍ برابره کړې وي.

ټول نا پیلي هیوادونه به زموږ خلاف ودریږي. لنډه دا چې داسې یو اقدام به
ډیر جدي عواقب ولري. له کارتر سره د لیونید ایلیچ کتنه به لغوه او د مارچ په پای
کې د ژسکاردستن د راتګ موضوع به تر پوښتنې لاندې راشي. پوښتنه دا ده چې
زموږ ګټه به څه وي؟ افغانستان له خپل نننی حکومت سره، له خپل وروسته پاتې
اقتصاد سره او په نړیوال ډګر کې له خپل کم ارزښته نقش سره! له بلې خوا باید
دا هم له پامه ونه غورځول شي چې له حقوقي پلوه هم زموږ دا عمل د توجیه وړ نه
دی. د ملګرو ملتو د منشور له مخې یو هیواد هغه وخت کولی شي (له بل
هیوادنه) د مرستې غوښتنه وکړي او موږ هم هله کولای شوای، خپل عسکر
ورولیږو. چې له بهرنه پرې یرغل شوی وي. افغانستان له هیڅ بهرنی تیري سره
مخامخ نه دی. دا د هغوی کورنۍ لانجه ده. د انقلابی ډلو ترمنځ اخ وډب، د خلکو

رسمي توگه له موږ نه د پوځونو د ورلیږلو غوښتنه نه کوي.

لنډه دا چې موږ له داسې یوې پیښې سره مخامخ یو: د هیواد مشر توب د خپلو جدي خطا وو له امله سپک شوی او د خپل اولس ملاتړ یې له لاسه ورکړی دی.

کیریلینکو : پرون په افغانستان کې یو ډول حالات وو او موږ غوره گڼله، کیدای شي د یو شمېر پوځونو له لیږلو سره موافقه وشي. نن شرایط بدل شوی او زموږ خبرو ، چې بیخي پرځای هم دي ، بله بڼه غوره کړه او هغه دا چې: موږ ټول په دې نظر یو چې د پوځونو دلیږلو لپاره هیڅ دلیل وجود نه لري.

اندروپوف: پرون چې مو دا لانجه څېړله، لا افغانانو د عسکرو د ورلیږلو خبره نه کوله. نن هلته شرایط بدل شوی دی. په هرات کې یو څنډنه، بلکه ټوله فرقه مخالفینو ته وراوښتې ده. دامین له نننیو خبرو ښکاري چې خلک د تره کي دحکومت ملاتړ نه کوي. په داسې یوه حالت کې آیا زموږ عسکر مرسته کولی شي؟ چې خبره دې ځای ته ورسیږي نو بیا ټانکونه او زغره وال گاډي هم څوک نه شي ژغورلی. زما په نظر تره کی ته باید مخامخ ووایو چې موږ د هغه د ټولو اقداماتو ملاتړ کوو ، هغه مرستې به ورکړو چې پرون او نن مو موافقه پرې وکړه ، خو نه شو کولی د پوځونو د ورلیږلو وړاندیز ومنو.

کاسیگین : په دې کې څه وایاست که هغه راوغواړو او ورته ووایو چې خپلې مرستې زیاتوو او پوځونه ځکه نه شو درلیږلی چې هغوی به مجبور شي ستاسو

کړي، او په دې کار کې زموږ هیڅ ګټه نه شته.

اندروپوف: ملګري تره کي ته باید مـخـامخ وویل شي چې مـوږ په هره بله وسیله، دعسکرو له درلیږلو پرته ستاسې ملاتړ کوو.

کاسیګین: باید هغه ځان ته راوبلو او ورته ووایو چې په هر ډول ستاسې ملاتړ کوو، خو عسکر نه شو درلیږلی.

کیریلینکو: دافغانستان مشرانو دحالاتو دښه کولو لپاره هیڅ ونه کړل. هغوی سل زره کسیز پوځ لري. دغه مشر تابه څه کړي دي؟ عملاً هیڅ. او موږ خو ملګري یو، افغانستان ته موټینګ لاس ورکړی دی.

تول: پرځای خبره مو وکړه.

کیریلینکو: موږ هغوی ته هرڅه ورکړل. نتیجه یې څه راوختـه! هیڅ ګټه یې ونه کـړه. همدوی وو چې د بیګناه خلکو چاغاري کـول یې پیل کړل او بیـا دځان دسپینولو لپـاره مـوږ ته وایي چې ګـواکـې دلنین په وخت کنې مـوږ هم خلک اعدامول. وګورئ، دغه دي مارکسیستان!

له پرونه راهیسې اوضاع بدله شوې ده. پرون مـو لکه چې وویل، دپوځي مرستې دورکولو په هکله ګډنظر درلود، خو وروستـه مـو دا مـوضوع په دقت وڅېړله، بیلابیلې خواوې مو سره پرتله کړې، له پوځي مرستې پرته مو نورې لارې چارې وموندلې. فکر کوم ښه به وی که لیونید ایلیچ ته زموږ ددې پریکړې خبر

پاکستان او ایران، خمیني او بازرگان ته ځانګړې لیکونه واستوو ؟

چرننکو: که موږ عسکر ورولیږو او پر افغان اولس لاس برې ومومو، خو خامخا به د تیرې کوونکي تور رابانديې ولګیږي. له دې خبرې نه تیښته نه شته.

اندروپوف: خامخا دې ملګرې تره کي راوغوښتل شي.

کاسیګین: زما په نظر باید له لیونید ایلیچ سره له سلا - مشورې وروسته، همدانن، همدا اوس دې کابل ته الوتکه ولیږل شي.

کیریلینکو: ملګرې کاسیګین دې له ملګرې تره کي سره خبرې وکړي. که چیرې هغه نه غواړي په تاشکند کې پاتې شي او مسکو ته راځي، نو بیا خو راځئ سلا-مشوره وکړو، کیدای شي لیونید ایلیچ یې حضور ته ومني.

ګرومیکو: زما په نظر غوره به وي که دسیاسي سندجوړول له ملګرې تره کي سره ترخبرو وروسته پیل شي.

اندروپوف: زه وایم سمدلاسه دې دباغیانو سره دپاکستان دملاتړپه هکله یوه مقاله ولیکل شي.

اوستینوف: زما په نظر یکارده مرستي په هماغه ډول ترسره شي چې پرون مو موافقه پرې وکړه.

تول: سمه ده.

اوستینوف: یوازې دعکسرو دلیږلو خبره دې ترې وایستل شي.

کاسیګین: لنډه دا چې دعکسرو له ورلیږلو پرته، افغانستان ته له

مسألو سره په مسؤولیت چلندوکړي، او که دهغوی پرځای موږ هرڅه تر سره کړو، انقلاب وساتو، نو دهغوی کار څه شی دی؟ هیڅ. موږ په هرات کې ۲٤ سلاکاران لرو، هغوی باید له هغه ځایه وایستل شي.

زامیاتین: ترکومه ځایه چې په دې هکله د تبلیغاتو خبره ده، موږ دافغانستان په هکله مقاله تیاره کړې ده. بله مقاله، پاکستان او افغاني یاغیانو ته دچین دمرستې په هکله ده. همدانن باید مقالې مطبوعاتو ته ولیږل شي.

ټول سمه خبره ده.

چرننکو: ملګرو راځئ چې مشخص یې کړو. ملګری تره کي دچاله خوا باید راوبلل شي؟

کیریلینکو: دا کار دې ملګری ا. ن. کاسیګین وکړي. هغه دې تره کي ته تلفون وکړي ورته دې ووایي چې بلل شوی یې. زړه دې مسکو ته راځې، که تاشکند ته.

«دغې جګړې ته ورګډېدل زموږ له شان سره برابر نه وو»

دمارچ په ۱۹ د دوشنبې په ورځ بریژنف مسکو ته څېرمه له خپل استراحت ځایه، دمرکزي کمیټې ودانۍ ته راورسید. له دوو ورځو غور او له کابل سره له پیچلو خبرو وروسته دسیاسي بیرو دغړیو نظر، دافغانستان دحالاتو په وړاندې داحتمالي عکس العمل په اړوند دوه ځله بدل شو. داسې بدل شو چې یو د ریځ دبل دریځ کټ مټ مخالف و. عمومي منشي د دې ټولو خبرو جاج واخیست.

«اشد محرم

یو نقل»

بریژنف : ملگرو ، په افغانستان کې د پیښو له هماغه پیله ، زه په جریان کې یم. د پرونۍ ورځې د پیښو په هکله له امین سره د ملگرو گرومیکو ا.ا. او اوستینوف د.ف. د خبرو په اړوند او په همدې ارتباط له ملگری تره کی سره د ملگری کاسیگین ا.ن. د مرکې په هکله معلومات راکړی شوی دی.

د ځانگړو وسایلو ، په تېره بیا پوځی مهماتو او وسلو د سپارلو او د غه راز د سیاسی او سازمان ورکوونکیو اقداماتو په گډون د یو شمیر هڅو اړوند اسناد مې لاسلیک کړل. په دې ډله کې ملگری کاسیگین ا.ن. ته د نده وسپارل شوه چې له ملگری تره کی سره خبرې وکړی. د افغانستان د پیښو په اړه دې زموږ مطبوعات او دډله ییز ارتباط وسایل په لازمه بڼه عیار کړای شی. لنډه دا چې د شوروی اتحاد د کمونیست گوند د مرکزی کمیټې د پریکړه لیک په مسوده کې ځای شوی ټکی چې د شنبې په ورځ وټاکل شول او ټول هغه اقدامات چې د شنبې او یکشنبې په ورځ نیول شوی ، زما په نظر بیخی سم بریښی. په افغانستان کې د موجودې لانجې په غوڅولو کې زموږ د عکسرو د گډون خبره هم را اوچته شوه. زما په نظر ، د سیاسی بیرو غړیو سمه پریکړه وکړه چې په دې جگړه کې گډون او س زموږ له شان سره سم

موږ له هغوی سره په هیواد کې د ټولو اقداماتو د بریالیتوب لپاره د خپل وس په اندازه مرستې کوو، خو افغانستان ته زموږ د عسکرو تلل به نه یوازې موږ، بلکه ترهر څه د مخه هغوی ته زیان ورسوي. له همدې امله موږ ته په کار ده، لومړی د ملګرو ګرومیکو ا.ا.، اوستینوف د.ف.، اندروپوف ی.و. او کاسیګین ا.ن. څرګندونې واورو او له همدې سره به د افغانستان د کړکیچ په هکله موږ د پریکړو پړاو پای ته ورسو.

ګرومیکو: موږ باید همدا نن د افغانستان د حالاتو په هکله جدي مسأله وڅیړو. موږ په دغه هیواد کې د حالاتو د پرمختګ بهیر په غور تعقیب کړی، د خپلو سفارتونو کارکوونکو ته مو په دې اړه لارښوونې کړې او داسې نور. موږ په ډیره منظمه او زما په عقیده په پرله پسې توګه، کره ورځ په افغانستان کې د خپلو استازیو له لارې بشپړ معلومات ترلاسه کړي دي.

نن ورځ زموږ په وړاندې څه پراته دي؟ د افغانستان په یو شمېر ولایتونو، په تیره بیا هرات کې یاغیانو پاڅون کړی دی. دوی له کومه را پیدا شول؟ هغوی د پاکستان او ایران له خاورې استول کیږي. دا ټول د ملګري ترډ کي د حکومت دښمن عناصر دي. د هغوی د پټولو لپاره یې هغوی ته افغاني کالي وراغوستي.

د سلګونو زرو په شمیر په هرات کې راټول شول، د ابغاوت یې پیل کړ او موږ ته ناڅاپه د هرات د پېښو په هکله د اطلاعاتو بهیر را پیل شو. د غلته یو د دولتي فرقه ځای پرځای وه چې دنده یې د عامه نظم ساتل وو، خو له دې کبله چې د دولتي

ورسیده، له زروزیات کسان ووژل شول. ما دافغانستان دحالاتو دټولو اړخونو په اړوند دصدراعظم له مرستیال او دبهرنیو چارو له وزیر امین سره خبرې وکړې. باید اعتراف وکړم چې دهغه خبرې تر ډېرې اندازې پرځان دویسا څرګندوې وې. مونږ دامین دهمدې خبرو تراغیزې لاندې وو، خو وروسته بیا دامین (ډاډمن) حالت هم ګډوډ شو او پخپله یې داوینا پیل کړه چې دهرات فرقه ټوله له یاغیانو سره یوځای شوې ده. دهرات دپیښو په هماغه اوج کې دیمیتری فیودرویچ (اوستینوف) له امین سره غږېدلی و. امین له ده نه غوښتي وو چې شوروی اتحاد دې خپلې لښکرې افغانستان ته راولیږی بیخي لکه په جنګي فلمونو کې. افغاني مشران څرمره جدی مسألې په څه ساده ګۍ مطرح کوي. له دې وروسته ملګری کاسیګین ا.ن. له ملګری تره کی سره وغږېد. هغه ورته ویلي وو چې دافغانستان اوضاع کړکیچن ده او هغه هم هرات ته دپوځ دلیږلو غوښتنه لرله. دافغانستان پوله له افغانستان او ایران سره خلاصه ده. زمونږ سلاکارانو په خپلو وخت کې یو شمیر وړاندیزونه کړي وو، خو دوی ورته غوږ ونه نیوه.

نن مو خبر ترلاسه کړ چې دهرات وضعه هومره نا آرامه نه ده: دوه غنډونه لا اوس هم دحکومت په څنګ کې ولاړ دي. دا چې حقیقت څېر ته دی، زه نه پوهیږم، خو داسې خبرونه مونږ ته رارسیدلي دي.

سړی کولی شي په پوره باور سره ووايي چې په افغانستان کې دننه او دهغه په

يوڅه هڅوونکی خبر ګوتی هم رارسيږی، لکه دا چې وايی پرون په کابل کې دحکومت په ملاتړ پراخه مظاهره وشوه، خوله دې سره سره دچارو واګې دحکومت له لاسه وتلې دی.

البته موږ نه شو کولای، دافغانستان په هکله دمسألو له حله ځان خلاص کړو، خو زما په فکر بايد خپله لار او خپل سياست ولرو او دټولو ځانګړنو په پام کې ساتلو سره، بايد پرخپله لار روان شو. که چيرې دعسکرو داستولو په څېر خطرناک ګام اوچت کړو، نو زيان به يې تر ګټو ډېر زيات وی. موږ تراوسه نه پوهيږو چې افغانی پوځ څه دريځ لری. خو که هغه زموږ دورتګ ملاتړ ونه کړی، يا بيطرفه پاتې شی، نو بيا خو داسې ښکاری لکه موږ چې افغانستان نيولی وی. په دې توګه به دنړيوال سياست په ډګر کې، له تصوره پورته ستونزې راتپه جوړې شی. زموږ دغه ګام به ټولې هغه برباوې له منځه يوسی، چې څومره په سختۍ موتر لاسه کړې دی، لکه: دځپ ځپاندۍ (تشنج) کمښت. دسالت-۲ تړون به له خاوروسره برابر شی او په دې هکله تړون به اصلاً له منځه لاړ شی. په داسې حال کې چې داتړون په اوسنی وخت کې زموږ تر ټولو سترسياسی اقدام ګڼل کيږی. دليونيد ايليچ کتنه به له کارتر سره تر سره نه شی او دڅښکاردستن دراتګ موضوع به هم شکمنه شی. له لويديځو هيوادو، په تيره بيا د المان له اتحادی جمهوريت سره به زموږ اړيکی خړپړې شی.

ولې د پاکستان دومره خيال ساتي، په داسې حال کې چې دغه هيواد دافغانستان خلاف ښکاره تيري پيل کړي دي. پرون (په دې هکله) دافغانستان د حکومت اعلاميه خپره شوه، خو دومره تُنده نه وه.

موږ افغانستان ته ډيرې مرستې ورکوو. داچې افغاني مشران به په راتلونکې کې څه دريځ ونيسي، اټکل يې ګران دی. هلته دحالاتو عادي کول هم چندان اسان نه بريښي، خو داهم بې اساسه ښکاري چې سړي ووايي، هلته هرڅه له لاسه ووتل. زما په فکر که افغاني مشران په ځان کې ځواک ومومي، خپل هڅې سره هماهنګې کړي، نو حالات ددوي په ګټه بدلون موندلي شي.

کاسيګين: پرون مجبور شوم له ملګري تره کي سره دوه ځله خبرې وکړم. هغه وايي چې هرڅه دنړيدو په حال کې دي او عسکر بايد ورولېږل شي، هرات چې هره بنه غوره کړي، هغسې حالت به په ټول افغانستان کې راشي. هغه وويل چې که هرات يې له لاسه ووځي، نور نو څه نه ورته پاتې کيږي. دهغه په وينا، پاکستان غتې ډلې چې افغاني کالي يې اغوستي دي، ورليږي. دهغوی په حساب، دغسې څلور زره کسان تر اوسه (هيوادته) ورننوتي دي. دهرات په هوايي ډګر کې ۵۰۰ تنه شته. ما ترې پوښتنه وکړه: په هرات کې څوک ستاسو پلوي شته که نه؟ ملګري تره کي په ځواب کې وايي چې نږدې ټول اوسيدونکي دمذهبيانو تر اغيزې لاندې دي. هغه وويل چې له ۲۰۰ - ۲۵۰ تنو پورې هلته ددغو پيښو لارښوونه په غاړه لري. ما پوښتنه وکړه: آيا هلته کارګران شته؟ هغه ځواب راکوي چې ټول ټال

لرلیدځه دی؟ هغه رتې ځواب راکوی چې هرات به سبا سقوط وکړی، خو لا تراوسه مقاومت کوی.

هغوی غواړی نوې قطعې جوړې او هرات ته یې واستوی. دملګری تره کی په عقیده، ټول تښتیدلی ناراضیان به سره یوشی دکابل په لوربه بریدپیل کړی اوهله به دده دحکومت وروستـــی ورځ واورســـیږی دهمـــدی له امله هغـــه دعـــسکرو دوراستولو غوښتنه کوی. ما ورته وویل: اوس درته ځواب نه شم ویلی. موږ به داموضوع په غور وڅیړو، فکر به پرې وکړو او بیا به ځواب درته ووای.

لکه چې وینئ له ملګری تره کی سره خبرو څه جوړوونکې پایله نه لرله. هغه دهرات دسقوط خبره کوله او دعسکرو دورلیږلو غوښتنه یې درلوده. ما ترې پوښتنه وکړه: ستاسې په نظر موږ باید څه وکړو چې سیاسی اقدام له پوځی هڅو سره پیوند شی؟ تره کی ما ته وایی: تاسو په خپلو الوتکو او ټانکونو افغانی نښانونه ووهئ او بیا یې له سرحدد پر هرات ورمخکې کړئ. ما ورته وویل دابه دافغانستان خلاف دشوروی اتحاد مخامخ یرغل وي ماتری وپوښتل ایا تاسوله افغانانوله مینځه سرتیری، په تېره بیا دټانکواو جنګی ګاډو چلوونکی موندلی شئ؟ هغه وویل: کولای شی خو په لږشمیر ما ورته دخپلو هراړخیزو مرستو، دنورو سلاکارانو او کارپوهانو داستولو په هکله خبرې وکړې.

البته موږ ته دیو متحد دولت په توګه دافغانستان ساتل په کار دی. په عین حال کی باید پاکستان هم له پامه ونه غورځوو او دافغانستان ...

زموږ پيغام بايد هم خميني او هم بازرگان ته واستول شي. موږ بايد ورته سند دايران په هکله هم خپور کړو. که له پاکستان او ايران سره پوله تړلې واى، نو دا به ښه و.

زما په نظر داسې يو اقدام تر سره کول، لکه افغانستان ته ديوه ښه سفير استول هم گټور دى. دملگرى تره کي له خبرو داسې برېښيده چې هغه حتى نه پوهيږي، حکومت يې پرچا پرېږدي ولگوى. هلته دستر سياسي کار تر سره کولو ته اړتيا ده، او بوازې په دې صورت کې کولى شو، افغانستان دخپل متحد په توگه وساتو.

بريژنف: پاکستان او ايران ته پيغامونه همدا نن بايد واستول شي.

اوستينوف: پرون سهار مې له امين سره خبرې کولې. له ليونيد ايليچ سره تر مخکيني مشورې وروسته مې هغه ته دهغو مرستو خبره وکړه چې موږ يې ورسره کوو او په راتلونکې کې به يې هم وکړو. امين وايي: شوروى اتحاد زموږ ښه او لومړنى دوست دى. وروسته هغه له پاکستان او ايران نه په گيلو خوله پرانيستله چې ددوى خاورې ته دير ورانکارى ورليږي او دغه ورانکارى دچينايي سلاکارانو له خوا دهغوى په خاوره کې روزل کيږي، په چينايي وسلو سمباليږي او بيا دپولې له لارې افغانستان ته ور ننوځي. په افغانستان کې دفيوډالانو له خوا سخت مخالفت موجود دى. وروسته هغه دهرات خبره راواوچته کړه او لکه دتره کي غوندې يې دټانکونو دوراستولو غوښتنه وکړه. ما ورته د وسلې دليږلو په توگه،

د عسکرو لیږل دی.

بریژنف: د هغوی خپل پوځ تس - نس کېدونکی دی او موږ باید څه د دوی پرځای د جګړې پېتې پر خپلو اوږدو واخلو!

اوستینوف: موږ د افغانستان په پوځ کې ګڼ شمېر سلاکاران لرو. ژباړونکی هم شته. ما امین ته وویل چې موږ نور ژباړونکی هم ورواستولی شو.

که ریښتیا خبره وشي نو په افغانستان کې اصلاً هیڅ اطلاع نه شته. کابل له هرات سره هیڅ مخابراتي اړیکی نه لري. په دغه ښار کې د برېښنا د تولید یوه کوچنۍ دستګاه فعاله ده، باغي او حکومت ته خاین پوځیان د غرونو لور ته په شاځي.

اوس د هرات حالات لږ څه ښه شول. ښار آرام دی. البته تخنیکي وسایل باید ورواستول شي. ډېر به ورولېږو. موږ به د ترکستان په پوځي حوزه کې دوه نورې فرقې او د منځنۍ آسیا په پوځي حوزه کې، یوه فرقه جوړه کړو. درې غونډه کولی شي، د دریو ساعتو په ترځ کې افغانستان ته ځان ورسوي. زه دا خبره ددې لپاره کوم چې خپل چمتووالی څرګند کړم. زه هم د نورو ملګرو په څېر افغانستان ته د پوځونو له لیږلو سره مخالف یم. له تاسي نه د افغانستان پوله نه څېرمه د غونډونو او فرقو په ګډون د تاکتیکي تمرینا تو د سرته رسولو اجازه غواړم. د باور وړده چې افغاني مشرتوب ډېرې مسألې خرابې حل کوي او له دې امله زموږ سلاکاران په دغسې شرایطو کې کارکول ګران بولي.

له دې حالات دومره هم له ناهیلۍ نه ډک نه دي. دافغانستان دحالاتو اصلي ستنه

چیرې ده؟ خبره په مشرتابه کې دہ. مشران هغه ځواکونه چې له دوی نه ملاتړ کوي

او دوی کولی شي پر هغوی اتکا ، وکړي، نه پیژني. مثلاً نن په کابل او هرات کې

پوره درندې مظاهرې وشوې، خو مشرانو له دغو ډله ییزو اقداماتو نه لازمه ګټه

اوچته نه کړای شوه. توضیحي کارونه، نه یوازې ، د پوځ په منځ کې، بلکه په ټول

هېواد کې خراب پرمخ بیول کیږي. هغوی خپل سیاسي مخالفین اعداموي.

دراډیو غږ نه اوریدل کیږي، ځکه چې لیږدوونکې دستګاه یې ډیره کمزورې ده.

موږ باید له هغوی سره دګرځندو راډیویي مرکزونو مرسته هم وکړو.

امین عملاً ټول واک په خپل لاس کې راټول کړی و، خو ایله همدا پرون یې د

دولتي امنیت دنوی رئیس او د بل لوی درستیز ټاکل منظور کړل. په دې توګه

دمشرتابه سیاسي بنسټ تریوې اندازې پراخ شو.

زموږ له لورې هلته سلاکاران شته چې مشرې دګوندي چارو سرمشاور

ملګری ویسیولوف دی. زما په نظر، دی دومره تکړه سړی نه دی او دچارو له

عهدې ځخه په اسانۍ نه شي وتلی. څه وایاست که هلته دمرکزي کمیټې

دکارکوونکو له ډلې نه کوم ملګری ولیږو. هلته مشاورین ډیر دي. ک. ګ. ب هم

هلته ډیر مشاورین لري.

زما په فکر، دعسکرو دلیږلو په هکله پریکړ نه ده په کار. دعسکرو لیږل به

وړنه دی.

پوناماریوف: په شوروي اتحاد کې ٤٦٠ افغاني افسران زده کړې کوي. دا تقريباً پاخه افسري کادرونه دي او کیدای شي سمدلاسه یې افغانستان ته ستانه کړو.

اګارکوف: افغانانو د ١٦٠ افسرانو دژر فارغولو غوښتنه کړې ده.

اوستینوف: له ملګري ترکي سره باید خبرې وشي چې دا خلک هلته ورواستوو او له هغوی نه دې هلته دافسرانو په توګه کار واخیستل شي.

دکاپیتانوف: ترکومه ځایه چې زموږ دګوندي مشاور ملګري ویسیولوف خبرده، نو دا یو ښه تکړه سړی دی. هغه دمرکزي کمیټې کارکوونکی و. څه موده یې دباشقردستان دولایتي ګوندي کمیټې ددویم منشي دنده هم پرغاړه درلوده. دی ځوان او له ځواکه ډک ملګری دی.

پوناماریوف: ملګري ترکي او امین د «پرچم» دګوند دغړو په وړاندې غنتې تیروتنې وکړې. دې ګوندله غړونه یې ډیر ملګري هسې خوشې په حوشې له تیغه تیر کړل.

اوستینوف: زموږ ګوندي سلاکاران پوره لیاقت نه لري. دهغوی شمیر هم لږ دی، فکر کوم پنځه تنه دي خو په وړاندې یې ستر کار پروت دی.

کاپیتانوف: ریښتیا ده چې هلته دملګري ویسیولوف په مشرۍ نول تیال پنځه

لړ کې وټاکل شول.

تهول: بیخی سمه ده.

بریژنف: په کارده اړوندو ملګروته دنده وسپارو چې دغه اقدامات په جدیت سره اجرا کړی او که دافغانستان په هکله نوې پوښتنې رامنځته کیږی، نو هغه دې سمدلاسه سیاسی بیوروته وړاندې کړی.

تهول: سمه ده.

بریژنف: په دې توګه نو پریکړه کوو:

ملګری تره کی دې سبا دمارچ په شلمه شوروی اتحاد ته راوبلل شی. خبرې اترې به کاسیګین، ګرومیکو او اوستینوف پرمخ بوځی او وروسته به یې زه هم ومنم.

تهول: دا به ډیر ښه کار وی.

## «خلک به تاسو نه بخښي»

دمارچ په شلمه تره کی مسکو ته راورسید او همدلته یې دهغو غوښتو دحلاصولو زیار پیل کړ چې افغانستان ورسره مخامخ شوی و. هغه د شوروی اتحاد له خوا افغانستان ته دغیر پوځی مرستو دلیږلو ژمنې، البته په غور واوریدې، خو هغه سمدلاسه پوځی تخنیک، وسلو، مهماتو اوتر ټولو

د.ف. اوستينوف او ب. ن. پوناماريوف سره کتنې وکړې.

**«راشد محرم**

**مخصوصه دوسيه»**

کاسيګين: مساسي سوره موږ ته دنده سپارلې. بولي هغه موضوعګانې چې تاسو دهغو په باب دنظر راکړه ورکړه ضرور بولئ، له تاسو سره وخبرو. لکه چې تاسوته مې وويل نن دمازيګر له شپږو نه تر شپږنيمو بجو پورې له ليونيد ايليچ برېژنف سره دستاسې کتنه په پام کې نيول شوې ده.

موږ په لومړي سر کې فکر کاوه چې لومړی به تاسوته دخبرو وار درکوو، خو څرنګه چې ستاسې له خوا يو ډېر مهمه موضوع دبحث لپاره وړاندې شوې ده، نوځکه غواړم لومړی خپل نظر بې درته ووايم او وروسته به په پوره پاملرنه ستاسو څرګندونې واورو.

. هر څه دمخه غواړم په دې ټکي ټينګار وکړم چې دشوروي اتحاد او دافغانستان دموکراتيک جمهوريت ترمنځ دوستي څه دفرصت غوښتنې او موقتي ملحوظاتو له مخې نه ده، بلکه دابوه تلپاتې دوستي ده. موږ دهغو غلبماتو په وړاندې چې همدا اوس ستاسو مخې ته درېدلې او دغه راز دهغو دښمنو څواکونو په وړاندې چې بنايي په راتلونکي کې ورسره مخامخ شئ،

د درکولو لارې چارې مو لټولې چې په ډیره ښه بڼه زموږ د دوستۍ اوله نورو هیوادو سره ستاسو داړیکو غوښتنو ته ځواب ووایي. ستاسو په هیواد کې رامنځته شوې ستونزې، کیدای شي په بیلابیلو ډولونو له منځه لاړې شي، خو تر ټولو غوره یې هغه لار ده چې په خلکو کې ستاسو دحکومت اعتبار وساتل شي. له ګاونډیو هیوادو سره دافغانستان اړیکې خرې پرې نه کړي او په نړیوال ډګرکې ستاسې دهیواد دریځ ته په کې زیان ونه رسیږي. باید اجازه ورنه کړو، داسې ویریښنې چې ګواکې تاسې خپلې ستونزې خپله نه شئ هوارولی اودمرستې لپاره مو بهرنی پوځونه راوبلل. غواړم دویتنام مثال ذکر کړم. ویتنامي اولس دامریکا دمتحدو ایالتونو په وړاندې بری ومونداو اوس دچینایي تیری کوونکو په وړاندې ولاړ دی، خو هیڅوک نه شي کولای پر ویتنامیانو باندې، له بهرنیو عسکرونه دکاراخیستلو تور ولګوي. ویتنامیان دخپلو متو په زور په میړانه دیرغلګرو په وړاندې دخپلې خاورې دفاع کوي. زموږ په عقیده ستاسو په هیواد کې هم کافي ځواک شته چې دانقلاب ضد یرغلونو ته ځواب ووایي، خو یوازې په کار ده، هغوی په ریښتونې توګه یو موټی کړای شي، نوی پوځی ټولګی منځ ته راوړل شي. ما په تلفون کې په دې هکله له تاسو سره خبرې وکړې. ددې ټکي په پام کې نیولو سره چې دنویو پوځیانو روزنه یو څه وخت غواړي، دنویو پوځی قطعو جوړول
... همدغه شیبه بیل شي. دغه اوس هم تاسو پر حالاتو دبرلاسي له پاره کافي

هلته د تل لپاره پښې ټینګې کړي، چې ګواکې ښار دانقلاب ضد په ټاټوبي بدل شوی دی، خو چې تاسو کله په ریښتیا سره دې کار ته متې راونغښتې، نو پر خالاتو د کنټرول وس مو وموندہ. همدا اوس موږ خبر واخیست چې د سهار په یوولسو بجو پوځی چونۍ چې داوود لسمې پلې فرقې یاغي برخه په کې ځای پرځای وه، د هوایي بمباریو اوله کندهار نه دورغلیو ټانکونو د ګوزارونو په نتیجه کې، ستاسو د کوماندو قطعې له خوا ونیول شوه، حکومت ته وفادار پوځونه خپلې سویې لانورې پراخوي.

په اوسنی پړاو کې، موږ خپله دنده ګڼو چې تاسو د هر ډول احتمالي نړیوالو سختیو په وړاندې وساتو. موږ به تاسو ته په هره ممکنه وسیله مرستې درکړو: وسلې او مهمات درکوو. د هیواد داقتصادي او پوځي چارو په لاربنوونه کې د مرستې لپاره به سړي درلیږو، ستاسي پوځیانو ته د پر مختللې جنګي تخنیک او وسلې د زده کړې لپاره به کارپوهان دراستوو خو ستاسې خاورې ته زموږ دلښکرو لیږل به سمدلاسه نړیوالې ټولنې ته ټکان ورکړي او بې له ځنډه به هر اړخیزې منفي نتیجې رامنځته کړي. په واقعیت کې به دانه یوازې له امپریالیستي هیوادو، بلکه له خپل اولس سره شخړه شي. زموږ او ستاسو ګډ دښمنان له خدایه غواړي چې شوروي عسکر دافغانستان په خاوره کې ولیدل شي. له همدې څخه به هغوی ستاسې خاورې ته د وسله والو باندونو د رالیږلو پارہ

وسنجولې او دې پایلې ته ورسیدو چې دعسکرو په درلیږلو سره به ستاسو دهیواد وضعه نه یوازې ښه نه شي ، بلکه نوره به هم خړه پړه شي. د دې خبرې هیرول هم نه دي په کار چې زموږ عسکر به اړوی ، نه یوازې له بهرنی یرغلګر ، بلکه ستاسو داولس له کومې برخې سره هم په جګړه لاس پورې کړی او خلک چا ته دداسې شیانو عفوه نه کوی. سربېره پر دې ، همدا چې زموږ دسرتېری پښه له پولې دروا وړی ، نو دچینایانو او نورو یرغلګرو مخ به سپین شي.

موږ دې نتیجې ته ورسیدو چې اوس اوس له تاسو سره تر ټولو دګټورې مرستې ډېره غوره لار ، ستاسو پرګاونډیو هیوادو ، زموږ له خوا دسیاسی فشار واردول او تاسو ته دسترو او هر اړخیزو مرستو دبهیر روانول دی. له دې لارې به موږ ډېرې ښې نتیجې ترلاسه کړو ، نسبت دې ته چې خپل عسکر درولیږو. ټینګ باور لرو چې ستاسو او زموږ له خوا دسیاسی اقداماتو له لارې کولی شو ، غلیم له پښو غورځوو. ما په تلفون کې له ... سره په دې موضوع خبرې کړې وې چې افغانستان ته په کار د دله ایران ... او ... سره ښه اړیکې ټینګې کړی ، چې هغوی ، ستاسو په کورنیو چارو کې دلاس وهنې له هر ډول پلمې نه بې برخې پاتې شی ... کومه خابه چې په موږ ... ارد پیدا کوی ، نو موږ همدانن دپاکستان او ایران مشرانو ته دو ... نو چې په جدیت سره به کې ، له هغوی نه دافغانستان په چارو کې دنه لاس وهنې غوښتنه شوې ده. موږ دا اقدامات په

ن.م.تره کی : دهغې موضوع په وړاندې چې غونستل مې مطرح یې کړه، دشوروي مشرتابه د دریځ په هکله له هر اړخیز وځرګندونو څخه د زړه له کومې مننه کوم. زه هم ستاسو دیو دوست په توګه اوبې له مسامحه کارۍ خپل نظر وړاندې کوم. په افغانستان کې هم عقیده داده چې منځ ته راغلي ستونزې باید په سیاسي وسیلو غوڅې شي او پوځي اقدام باید بوازې مرستندویه بڼه ولري او بس. په سیاسي ډګر کې مو یو شمیر اقدامات وکړل او قانع شولو چې داولس اکثریت له موږ سره دی. دهرات دپیښو له امله زما له راډیویي وینا وروسته بوازې په یوه ورځ کې د هیواد په ځینو ښارونو کې ۱۰۲ مظاهرې وشوې چې ګډون کوونکو یې دخمیني او دهغه دګوډاګیانو پرضد شعارونه له ځانه سره وړل. دې خبرې موږ باوري کړو چې زموږ کورنی دښمن دومره هم پیاوړی نه دی. دې خبرې هم پرموږ ښه اغیزه وښندله چې دپوځ یاغي شوې برخې دادی خپلې وسلې په ځمکه ایښې دي.

زه هم په خپل وار غواړم ټینګار وکړم چې زموږ ددو هیوادو ترمنځ اړیکې عادي بین الدولتي اړیکو ته هیڅ ورته نه دي. دهغې بنسټ پر طبقاتي دریځ، ګډې ایډیالوژۍ او ګډسیاست ولاړ دی، زموږ په هیواد کې هم لکه ستاسو، واک په کارګرې طبقې او بزګرانو پورې اړه لري چې هغوي یې دا شرافت او فیوډالانو له منګولو نه راخلاص کړی دی. زموږ انقلاب، زموږ طبقاتي دښمنان لیوني کړي

زموږ د خلکو اعتبار لوړ کړ او د پاکستان او ایران په ټولنو کې یې مثبتې اغېزې وکړې. دې خبرو د دغو هېوادو مرتجعین وبېرول او ځکه نو هغوی زموږ د هېواد خلاف ورانوونکې هڅې چټکې کړې. له تورونو ډک تبلیغات یې پیاوړي کړل او زموږ خاورې ته یې د ورانکارو باندونو په رالېږلو پیل وکړ. هغوی خپل تبلیغات له دغه ځایه پیل کړل چې موږ یې په الحاد او له اسلام نه په مخ ګرځولو تورن کړو. وروسته یې بیا پر موږ د نورو رنګارنګ تورونو لګول پیل کړل. پاکستاني تبلیغ [illegible] د ښځو د آزادۍ او په ټولنه کې هغې ته د وړ مقام د ورکولو په هکله زموږ [illegible] وغندل. کله چې موږ د ځمکو اصلاحات پیل کړل. نو د پاکستان حاکمې ډلې د دې خبرې په درک سره چې داکارونه پر پاکستاني اولس انقلابي اغېزه ښندي. زموږ پر خلاف یې په سبوتاژ او ورانوونکو عملونو لاس پورې کړ. پاکستاني واکمن له دې خبرې نه سخت وډارېدل چې په ټول دغه هېواد کې د مظاهرو لړۍ پیل شي چې شعارونه یې داوو: «ژوندی دې وي د افغانستان دموکراتیک جمهوریت!» «ژوندی دې وي تره کی!»

* نه یوازې له انقلاب ور [illegible] له هېواده د تښتېدلیو اخوانیانو راستنېدل پیل شوي، بلکه ډلې ډلې پوځي قطعې چې افغاني یونیفورم یې اغوستی وي زموږ خاورې ته راننوځي چې دلته په ورانکاریو او سبوتاژ لاس پورې کوي شوروي

توګه دلویدیځ له منګولو وتلی دی. دامریکې، پاکستان او ایران د ډله بیز ارتباط وسایل زموږ خلاف له ناروا وو ډک مطالب خپروي چې موږ ته په کې سپکاوی کیږي. دامپریالیستانو او نورو مرتجعینو دافغانی ضد هڅو اصلي علت له شوروي اتحاد سره دافغانستان نږدې دوستي دد.

نن له پاکستان، ایران او هند سره دافغانستان داړیکو دښه کولو خبره هم ... شوه، خو زما په عقیده دا ډیر ګران کار دی، ځکه نه ایران او نه هم په تیره بیا پاکستان له موږ سره د دوستۍ غوښتونکي دي.

کاسیګین: دادی همدا اوس دضیاء الحق اعلامیه راورسیده چې په کې ویل شوي، دافغانستان پیښې ددغه هیواد کورنی لانجه ده او پاکستان نه غواړي په هغو کې لاس ووهي. په دې اعلامیه کې ویل شوي چې پاکستان یوازې دبشري ملحوظاتو له مخې ۳۵ زره افغانی کډوالو ته مرستې ورکوي او هغه هم یوازې تر هغه وخته چې دهغوي فعالیت له افغانستان سره دپاکستان اړیکو ته زیان نه رسوي.

ترکي: هغوي هسې دهیومانیزم نوم اخلي، خو په اصل کې زموږ خلاف دورانکارو دروزنې لپاره کمپونه جوړوي.

کاسیګین: فکر مه کوئ چې موږ دومره ساده یو چې دضیاء الحق هره خبره زړه ته پرې باسو، خو که نور نه وي نو اعلامیه خپره شوې او هغه ادپاکستان ... یو دول مسؤولیت ورا چوي

دخپرې شوې مقالې په وړاندې يو عکس العمل دى.

کاسيگين : ښکاره ده چې پاکستانيان وارخطا شول. هغوى پوه شول چې نه يوازې تاسې، بلکه موږ هم پرې فشار راوړو.

ترهکى: « پراودا » بيخي په موقع سره دافغانستان ديموکراتيک جمهوريت خلاف دد سيسو دغندنې مقاله خپره کړه. دې مقالې زموږ پرگاونډيانو ژوره اغيزه وکړه. زه، البته له تاسو سره په دې کې موافق يم چې په کار دى د سياسي فشار له وسايلو گټه واخيستل شي او دا چې جگړه ډير خطرناک کار دى. بې ځايه به وي که د پاکستانيانو، ايرانيانو، امريکايانو او چينايانو له خوا زموږ دهيواد خلاف دوړانوونکو اعمالو اصلي دلايل په تفصيل بيان کړم. زه يوازې غواړم تأکيد وکړم چې موږ ستاسو دوستانو او يو به او دا چې له هيچا سره به داسې تودې اړيکې ونه لرو، لکه له تاسو سره. موږ له لنينه زده کړي او زده کوو يې. موږ دلنين په دې لارښوونه ښه پوهيږو چې دگاونډيو هيوادو سره داړيکو جوړول څه ډول په کار دى.

موږ له گاونډيو هيوادو داړيکو دښه کولو غوښتونکي يو خو امريکائيان زموږ دلارې خنډ کيږي. امريکائيان تشنج ته لمن وهي او دمترقي هيوادو په وړاندې په ورانکاريو اخته دى. هغوى دغسې عملونه په تيروخت کې دځوان شوروي دولت په وړاندې کړي او اوس يې دکيوبا، حبشې، موزمبيق او جنوبي يمن خلاف ترسره کوي. موږ ددغسې دسيسو په وړاندې مقاومت کوو او هراړخيزه هڅه کوو چې دومره په زور حکومت ونه کړو، بلکه دزيار ايستونکو په گټه دديموکراتيکو

موتر اوسه دادی دوه سوه ملیارده افغانی لګېدلی دی. خلک اوس پوهېدلی چې دوست یې څوک او دښمن یې کوم دی؟ له هغې وروسته چې مذهبیان زموږ په وړاندې دخپلو پخوانیو تبلیغاتو په نه اغیزمنتوب باوري شول، خپل تاکتیک یې بدل کړ او اوس چیغې وهي چې افغانستان دشوروي په سیورومې بدل شوی، چې افغانستان یو کمونیست پلوه دولت جوړ شوی، چې افغانستان له لس زره شورویان راغلي او هغوی ګواکې دټولوشیانو لاربښوونه پرغاړه لري.

خپلې خبرې لنډوم: غواړم ووایم چې زموږ اصلي اندېښنه له ایران او پاکستان نه دوړانکارو دراتګ احتمال جوړوي. که څه هم البته پاکستاني او ایراني مشرانو نه ستاسو لیکونه په ډېر ګټور واقع شي او دهغوی عقلونه به سر ته ورولي.

کاسیګین: دادی یو بل خبر. ایرانی واکمنو امر کړی چې ټول بهرني کارګران دې داپریل تر ۲۱ او بهرني کارپوهان دې دجون تر ۲۱ له دغه هیواده ووځي. دایراني حکومت په وینا کې راغلي دي چې تر کومه دبهرنيو کارپوهانو خبره ده چې دایران داقتصاد لپاره زیات ارزښت لري، نو دهغوی دوتلو خبره به په هره ځانګړې برخه کې په جلا توګه څېړل کیږي.

ترکی: دا یادونه ترهر څه لومړی دامریکائیانو لپاره ده. موږ ته داسې اطلاعات رارسیدلي چې ایراني حکومت غواړي هغه امریکایي کارپوهان چېل هیواد ته ورستانه کړي چې دهلیکوپترو دمونتاژ په کار لګیا وو.

کاسیګین: موږ هم دا اوریدلي، خو په ایران کې زموږ دکارپوهانو شمېر تر

دایران دفلز ویلی کولو ستره فابریکه به له کاره ولوېږي او نورې مهمې کارخانې به هم په تېپه ودرېږي، هو ریښتیا په ایران کې څومره افغانان مزدوري کوي؟

تره کی: له دوه سوه زرو نه یې شمېر کم نه دی. هغوی ۵-٦ کال مخکې دداود دواکمنۍ په وخت کې او ان تر هغه مخکې هلته تللي وو. که دهغوی دشېږلو خبره ریښتیا شي نو بیا به دمزدورانو ترنامه لاندې دورانکارو رالیږل هم پیل شي، ځکه دظاهري بڼې له مخې دافغان او ایراني توپیر کول ډیر گران دی. غواړم دافغانستان دپوځي اړتیاوو خبره یاده کړم. موږ دزغره والو هلیکوپټرو، دنورو زغره والو گاډو او محاربوي ماشینونو او دغه راز دعصري مخابراتي وسایلو دترلاسه کولو غوښتنه کوو. که چیرې ددغوشیانو دکارولو لپاره پرسونل هم پیدا شوي وای نو دا به له موږ سره غټه مرسته وای.

اوستینوف: فکر کوم مقصد مو می-۲٤ ډوله هلیکوپټرې دي چې دگولیو ضد زغره لري. شپږ دغسې هلیکوپټرې به دجون - جولای په لړ کې او شپږ نور به یې د روان کال په څلورمه ربع کې درکړل شي. کیدای شي ددغوشیانو دتهیه کولو موده رالنډه کړای شي.

تره کی: موږ دغسې هلیکوپټروته سخته اړتیا لرو او ښه به دا وای که هغه مو له پیلوټانو سره یوځای راکړې وای.

کاسیگین: موږ په هوایي ډگرونو کې دناستو هلکوپټرو دسمبالتیا لپاره کار یوهان درکولي شو، خو دالوتکو لپاره عمله نه شو درکولي، موږ په دې موضوع

اوستینوف : تاسو ته دخپلو پیلوټانو روزل په کار دی. دلته افغانی افسران زده کړه کوی او موږ کولی شو، هغوی په مستعله توګه فارغ کړو.

تره کی : کیدای شی له هانوی یا له کومه بله ځایه مثلاً له کیوبا نه پیلوټان راوغواړو ؟

کاسیګین : لکه مخکې مې چې وویل، موږ ویتنام ته ډیرې مرستې ورکړی او لا ورکوو یې، خو هغوی هیڅکله له موږ نه د پیلوټانو غوښتنه نه ده کړی. هغوی خپله ویل چې یوازې تخنیکی کارپوهانو ته اړتیا لری خو پروازی عمله له خپلو وګړونه جوړولی شی. له موږ سره ځلور سوه افغانی افسران زده کړه کوی چې لیست یې له تاسو سره شته. داړتیا وړکسان په کې غوره کړئ. موږ دهغوی روزنه او فراغت چټکولی شو.

ترکی : موږ غواړو چې دهلیکوپترو سپارلو خبره ډیره چټکه شی، موږ هغوته ډیره اړتیا لرو.

کاسیګین : موږ به یوځل بیا ستاسو په غوښتنه غور وکړو او که امکان یې درلود نو دا کار به چټک کړو.

اوستینوف : خو تاسو ته په کار ده چې په عین حال کې ددغو هلیکوپترو دچلولو لپاره دپیلوټانوغم هم وخورئ.

ترکی : البته موږ به دا کار وکړو، که موږ هغه نه درلودل، نو بیا یې په نورو

زموږ دادمن کسان په کار دی، اما دهغو افغانی افسرانو په منځ کې چې پخوا د زده کړو لپاره شوری اتحاد ته رالیږل شوی، زیات شمیر یې اخوانیان او ما ؤیستان دی.

کاسیگین: البته تاسې ته په کار دي چې دلته د زده کړې په حال کې افغاني افسران ښه وڅیړئ. اخوانیان، کولی شو اصلاً بیرته درو شړو او هغه شمیر چې تاسو باور پرې لرئ په مستعجله توگه فارغ کړو.

اوستینوف: سږکال ۱۹۰ افغاني افسران خپلې زده کړې دلته پای ته رسوي. په دې لړکې ۱۶ د الوتکو او ۱۳ د هلیکوپتر وپیلوټان دي. موږ به په افغانستان کې د پوځی لوی سلاکار جنرال گاریلوف له لارې تاسو ته د مسلک په تفکیک د دغو فارغانو لستونه دروسپارو. تاسو خپله کولی شئ د اړتیاوړ کسان د ځان لپاره غوره کړی؟

تره کی: سمه ده. موږ به دا کار وکړو. خو ستونزه دا ده چې موږ په انقلابي ضد ډلو پورې تړلي کسان په نامه نه پیژنو. یواځې دومره را ته معلومه ده چې د داود په وخت کې اخوانیان او د «شعلۀ جاوید» په نامه د چین پلوې ډلې غړي شوروی اتحاد ته د زده کړو لپاره رالیږل کیدل. موږ به هڅه وکړو چې هغوی تفکیک شي.

کاسیگین: داسې ښکاري چې تاسو زموږ د هغې پریکړې له مخې چې پرون ماښام مو کابل ته خبر درکړی و، له موږ نه د پوځي تخنیک تمه لرئ که څنگه ؟ په

آیا تاسو له دغه سند سره آشنا یاستئ ؟

تره کی: نه خیر. لکه چې د دې فرصت چاونه مونده چې د هغې په باره کې معلومات راکړي.

کاسیگین: کیدای شي دا سند، مسکو ته ستاسو له الوتنې نه لږ مخکې دررسیدلی وي. د روان کال په مارچ کې به نوره وسله هم په وړیا توگه درکړو، لکه: ۳۳ محاربوي ماشینونه. له یوه نه تر پنځو مي - ۲۵ ډول هلیکوپترې، ۸ مي - ۸ ت ډوله هلیکوپترونه او دغه راز (۵۰) عرادې زغره وال گاړي، (۶۰) عرادې پ.ب ډوله گاړي، (۲۵) عرادې د کشف زغره والې موټرې، (۵۰) عرادې د هوایی مدافعې گرځنده دستگاوې او د «ستریلا» په نامه د هوایي مدافعې سیستم. د مارچ په ۱۸ نیټه مو مي - ۸ ډوله څلور هلیکوپترې درلیږلي او د مارچ په ۲۱ به څلور نورې هلیکوپترې هم درکړل شي. دا ټول شیان موږ وړیا درکوو.

تره کی: له داسې سترو مرستونه مو د زړه له کومې مننه کوم. په کابل کې به ځان له دغه سند سره مفصل اشنا کړم. غواړم اوس زیاته کړم چې سل زره ټنه غنم زموږ لپاره بس نه دي. سږنی منی موږ پوره حاصل نه شو تر لاسه کولی، ځکه زمکه وال و چې د زمکې د مصادرې خبره اوریدلې وه نو اصلاً یې هغه ونه کرلې او په ځینو ځایو کې یې اصلاً کروندې له منځه یووړې.

کاسیگین:

به د غنمو له حمل او نقل سره ستونزې ولرئ. ځکه موږ ته خپلو ترانسپورتي کارپوهانو ویلي چې ستاسو له کوتلونو څخه د میاشتې یوازې ۱۵ زره منه غنم تیریدلی شي. تر هغو چې تاسو دا سل زره ټنه غنم « هضموئ » موږ به په دې خبره غور وکړو چې وړاندې څه کولی شو.

تره کی: مخکې پاکستان ژمنه کړې وه چې ۲۰۰ زره ټنه غنم به پر موږ پلوري، خو وروسته له خپلې دې ژمنې په شا شو. ترکیې هم د ۷۰ زرو ټنو غنمو د پلورلو خپله خبره بیرته واخیسته. موږ اوس لږ تر لږه (۳۰۰) زرو ټنو نورو غنمو ته اړتیا لرو.

کاسیگین: که تاسو له پاکستان نه د غنمو پیره ود لو ته چمتو وئ، نو یعنې چې پیسې لرئ. موږ کولی شو ستاسو لپاره له امریکایانو غنم واخلو ادبیا یې تاسو ته درولیږو. مثلاً ۲۰۰ زره ټنه غنم به ۲۵ ملیونه روبله (څلویښت ملیونه ډالره) تمام شي.

تره کی: د دومره پیسو برابرول به زموږ لپاره گرانه خبره وي.

کاسیگین: هومره چې کولی شئ تیارې کړئ، موږ به د هغې مطابق تاسو ته غنم واخلو.

تره کی: که لازمې پیسې پیدا نه کړای شو، نو بیاله تاسو نه د غنمو د مرستې هیله کوو. موږ دغه راز ستاسو د پوروونو او د هغو د گټو د بیاورکړې ځنډول

کاسیگین: موږ په خپلو وړیا مرستو سره ستاسو له پوځی بودجې سره د پام وړ مرسته وکړه. موږ به د خپلو پوروونو د بیرته راکړې د ځنډولو خبره هم وڅیړو. موږ به دا خبره وڅیړو او بیا به خبر درکړو چې په دې برخه کې کولی شو څه وکړو.

تره کی: موږ د غه راز په ټوله نړۍ کې د تبلیغاتو د کولو لپاره یو غښتلی راډیو ستیشن ته اړتیا لرو. زموږ راډیو ډیره کمزورې ده. په داسې حال کې چې د کوم ملاله تورونو د که وینا د سترګو په رپ کې د لویدیځ د ډله ائیز ارتباط د وسایلو له لارې په ټوله نړۍ کې انګازې کوی، زموږ د راډیو غږ تقریباً هیڅ نه اوریدل کیږی.

پوناماریوف: موږ د خپل لورې د افغانستان دیموکراتیک جمهوریت د بریا وو په تبلیغ کې ستره ونډه لرو او د هغه غلیمان په ټینګه ځپو «پراودا» د مقالې په هکله خو مخکې خبرې وشوې، په نننۍ ګڼه کې ستاسو وینا چاپ شوې ده. دا به د راډیو له لارې ایران، پاکستان او نورو هیوادو ته هم خپره شی. په دې توګه موږ ستاسو د راډیو کمزورتیا په خپلو اقداماتو سره جبیره کوو.

تره کی: ستاسو تبلیغاتی ملاتړ زموږ لپاره خورا ارزښت لری، خو بیا هم موږ غواړو، نړیوال زموږ خپل غږ هم واوری. له دې امله هیله کوم له موږ سره د زرو کیلو واټو په توان د یوې نوې راډیو یی دستګاه په جوړولو کې لاس وکړئ.

کاسیګین: موږ به دا خبره هم وڅیړو. له خپلو کارپوهانو سره به سلا - مشوره وکړو، خو تر کومه ځایه چې ما ته معلومه ده، د یوې نوې راډیو یی دستګاه

پوناماریوف: موږ به د ګوندي سلاکارانو په ډله کې د تبلیغاتي چارو مشاورین هم د رولیږو. تاسو کولی شئ هغوی ته د سوسیالیستي هیوادو له لارې د تبلیغاتي ملاتړ د جلبولو په برخه کې خپلې نظر یې او وړاندیزونه و ایاست.

اوستینوف: د نورو جنګي وسلو او تخنیک له لیږلو سره جوخت، افغانستان ته د نورو پوځي کارپوهانو او سلاکارانو د لیږلو خبره هم را او چتیږي.

تره کی: که ستاسو په نظر د غسې اړتیا وجود ولري، نو موږ هم د هغوی منلو ته چمتو یو. ایا تاسو اجازه راکوئ چې موږ د نورو هیوادو پیلوټان او ټانکستان راوغواړو؟

کاسیګین: کله چې موږ د پوځي کارپوهانو خبره کوو، مقصد مو هغه پوځي تخنیکران وي چې د وسلې په کار اچولو کې مرسته کوي. زه هیڅ نه پوهیږم ولې سمدلاسه د پیلوټانو او ټانکستانو خبره راولاړیږي. دا پوښتنه زموږ لپاره بیخي ناڅاپي ده. زه فکر کوم چې سوسیالیستي هیوادونه به له دې کار سره موافقه ونه کړي. پرټانکونو د پردو خلکو کښیناستل او ستاسو پر اولس ډزې کول، یوه حساسه سیاسي مسأله ده.

تره کی: موږ به وګورو، له هغو افغانانو څخه چې مخکې دلته دزده کړو لپاره رالیږل شوي وو، څو مره ګټه اخیستلی شو. کیدای شي له تاسو نه دهغو کسانو دروزنې غوښتنه وکړو چې موږ یې په خپله غوره کوو؟

اوستینوف: البته چې موږ یې دزده کړې لپار ه منلو ته چمتو یو.

زموږ له خوا دیوې قوی راډیویی دستگاه خبره پر موږ پاتې ده. دغه راز دپوځی تخنیک دسپارلو دچټکتیا خبره هم مطرح ده. تاسو به لکه چې موږ پوه شو ، هڅه وکړئ ، دهغو افغانانو له ډلې نه چې دلته یې پوځی زده کړې کړې ، دهلیکوپترو پیلوټان دځان لپاره غوره کړئ. که تاسې نورې غوښتنې لرلې نو کولای شئ دشوروی سفیر اولوی پوځی سلاکار له لارې یې راولیږئ. موږ به هغه په غور سره څېړو او ور چلند به کوو .

موږ دغه راز دامپریالیستانو او دارتجاع ددسایسو په وړاندې دافغانستان ددیموکراتیک جمهوریت دننگې لپاره دسیاسی اقداماتو پر سر موافقه وکړه. موږ به له خپل لوری پر هغوی دسیاسی اغیز دښندلو کارته دوام ورکوو . زموږ مطبوعات به هم دافغانستان له دیموکراتیک جمهوریت څخه پرله پسې ملاتړ کوی.

زموږ په نظر مهمه ده چې تاسو په خپل هیواد کې دررژیم دټولنیز تکیه ځای پراختیا ته پاملرنه وکړئ. خلک خپلې خواته رامات کړئ. اجازه ورنه کړئ چې دحکومت او خلکو ترمنځ دپردیتوب (احساس) منځ ته راشی. او بالاخره وروستی خبره. دا خبره د څېړنې لپاره نه بلکه یوه هیله ده او هغه دا چې تاسو باید دخپلو کادرونو په وړاندې په احتیاط او زړه سوی سره چلند وکړئ. په کار ده چې دکادرونو څارنه او مراقبت وشی او له هغوی سره انفرادی چلند وشی. هر سړی باید مخکې له دې چې په کومه دنده گمارل کېږي ، ښه و پېژندل شي .

کاسیګین : هم افسران، هم جنرالان او هم سیاسي شخصیتونه. یوځل بیا وایم چې دا موضوع مې د خبرنې لپاره نه ده مطرح کړې، بلکه خپلې نظر یې درته څرګندوو.

تره کی : موږ په مجموع کې له خپلو کادرونو سره په زړه سواندې چلند کوو، خو دهرات پیښو وښودله چې زموږ چاپیریال ته اخوانیانو نفوذ کړی دی او هغه څوک چې له هغو سره دی موږ ورته کومه دنده نه سپارو.

کاسیګین : موږ نه غواړو له تاسو نه ګیله وکړو، یوازې یادونه کوو چې په کادري سیاست کې تیروتنې ډیر ترخه عواقب لري. موږ دا کار په خپله تجربه کړی. دی. دستالین په وخت کې، تاسو ته معلومه ده، زموږ ډیر افسران په زندانونو کې پراته وو او کله چې جګړه ونښته، ستالین اړ شو هغوی جبهې ته واستوي. دغو خلکو له خپله ځانه پوره اتلولي وښوده. ډیریې په سترو قوماندانانو بدل شول. موږ نه غواړو ستاسو په کورنیو چارو کې لاس ووهو، خو دا یادونه کوو چې له کادرونو سره زړه سوی چلند غوره کار دی.

تره کی : تر کومه چې زه ستاسو له خبرونه پوه شوم، تاسو له موږ سره مرستې کوئ او و یې کړئ، خو د تیري په وړاندې زموږ د ننګې ضمانت نه شئ کولی.

کاسیګین : موږ له تاسو سره مسأله له دې اړخه هیڅ خبرې لې نه ده. موږ داوسنی پړاو په هکله وغږیدو، و مو ویل چې په اوسني وخت کې تر ټولو اغیزمنه لار په سیاسي وسایلو سره ستاسو دهیواد ساتنه ده. تاسو ته نه ښایي، زموږ خبری

تره کی: درې ډوله ملاتړ وجود لري: سیاسي، اقتصادي او پوځي. دوه ډوله مرستې تاسو کوئ، خو که زموږ پر خاوره له بهرنه تیری وشو، نو بیا به تاسو څنګه کوئ؟

کاسیګین: که چیرې ستاسو پر خاوره وسله وال تیری مطرح وی، نو دا به جلا حالت وی. اوس اوس زموږ تول هڅه دا ده چې دغسې یو تیری ونه شي، او زما په فکر موږ دغه مقصد ته رسیدلی شو.

تره کی: زه دا خبره څکه کوم چې چین په جدیت سره پاکستانیان زموږ خلاف لمسوی.

کاسیګین: کله چې د تیری خبره رامنځته شي، هلته نو حالات بیخي بیل رنګ غوره کوی. چینایان دویتنام په برخه کې په دې خبره قانع شول او اوس هغه دچا خبره هسې خپلې منګولې منبی. ترکومه ځایه چې دافغانستان خبره ده، موږ هڅه کړې چې هغه له بهرنی تیری نه وساتو. ما مخکې وویل چې په دې اړوند مو دپاکستان جمهور رئیس، خمینی او دایران صدر اعظم ته لیکونه استولی دی.

تره کی: زموږ دسیاسی بیرو غړی، مسکو ته زما په سفر خبر دی. کابل ته له ستنیدو وروسته اړیم چې هغوی ته دخپلو کتنو دنتیجو په هکله معلومات ورکړم. آیا کولی شم هغوی ته ووایم چې شوروی اتحاد به دافغانستان له دیموکراتیک جمهوریت سره یوازې سیاسی او څه نورې مرستې وکړی؟

کاسیګین: هو، سیاسی ملاتړ او دوسلو او نورو شیانو دسپارلو له لارې ...

له تاسو سره په خبرو کې چې لس دقیقې وروسته پیل کیږي، معلومات درکړي، فکر کوم تاسو به افغانستان ته، زموږ په مرستو ډاډه او په خپلو کړنو باوري ستانه شئ.

تره کي : له شوې کتنې نه ډیره خوښي، کوي د پراخو مرستو له امله چې په سختو ورځو کې له افغانستان سره کیږي، دزړه له کومې مننه څرګندوي.

## «له پوځ نه هیڅ شی مه سپموئ ...»

دمارچ دشملې ورځې د په ماښام بریژنف له تره کي سره وکتل. له هغوی دواړو پرته په «ستاروی پلو شچاد» (زاړه ډګر) کې دعمومي منشي په مجلل دفتر کې ا.ن. کاسیګین، ا.ا. ګرومیکو، د.ف. اوستینوف او ب.ب. پوناماریوف هم حاضر وو.

له اوږدو مقدمو پرته بریژنف سمدلاسه اصلي موضوع ته ورننوت. هغه وویل: دافغانستان حکومت ته په کار ده، دهرات له پیښو وروسته، دمنځ ته راغلي حالت داصلاح لپاره زیاتې هلې ځلې وکړي. خوداهم کافي نه ده. نه یوازې دهغه خطر دله منځه وړلو لپاره باید ځانګړي ګامونه پورته شي، چې دهیواد نوی حکومت ورسره مخامخ دی، بلکه دانقلاب دبریاوو دټینګښت چاره هم باید پر مخ یووړله شي.

بریژنف په تکرار سره د حکومت د تولنیز بنسټ پر پراختیا ټینګار وکړ، زیاته

دی په کار. بریژنف چې دمحفل یوازینی ویناوال و، خپلې خبرې اوږدې کړې او دافغانستان دحکومت دکمزوری تبلیغاتی کار یادونه یې وکړه. عمومی منشی د احتمالی پوښتنې دمخنیوی لپاره، دافغانستان خاورې ته دشوروی لښکرو د ورننویستلو دمسألې څېړنې ته دپای ټکی کیښوده: دقواوو دلیږلو او یا په ډاګه دهغو له لیږلونه دانکاریادونې ته اړتیا نه شته.

بریژنف دپوځی سلاکارانو او کارپوهانو دفعالیت له څېړنې وروسته، دافغانستان ددولتی پولو دتړلو خبره رااوچته کړه. له ایران او پاکستان په زرگونو وسله وال باندې یتان خاورې ته راننوځی، وسله او مهمات راننویستل کیږی، څو پوله لکه چې پرانیستې وه، هغسې پرانیستې ده. هغه وویل: موږ په شوروی اتحاد کې دغسې یو شی ته اجازه نه شو ورکولی او البته ټوله هڅه ددې لپاره په کار ده چې پوځ دانقلابی واکمنی ترڅنګ ټینګ ودریږی. ددې لپاره دهیڅ شی سپمول نه دی په کار. داچې په رامنځته شویو حالاتو کې څه ډول چلند په کار دی، تاسو پرې ښه پوهیږئ، یوازې دیوه ټکی یا دول لازم گنم. مهمه دا ده چې قوماندانان باید پرخپل دریځ باندې د ډاډ احساس ولری. له هغه پوځ نه ډېر څه تمه کول خوشی عبث دی چې قوماندانان یې ژر ژر بدلیږی، رابدلیږی. دا خبره په تیره بیا هغه وخت ډېره دپاملرنې وړ گرځی چې دقوماندانانو په گوښه کولو پسې، بندیانول هم را روان وی.

ډېر قوماندانان چې په دې پوه شی، څه ډول یې ملگری بندیان او تری تم

چې ګني دغه چاپه نسبت دې له ترټونکو اقداماتو څخه کارنه اخيستل کيږي چې
له انقلابي واکمنۍ سره په خيانت يې کافي شواهد موجود وي، خودا توره ډېره
تېره ده او ګټه اخيستل ترې ډېر او لا ډېر احتياط غواړي. »

له تره کي سره دبريژنف په خبرو کې دهرات دمارچ دمياشتې پيښې چې
دافغانستان له انقلابي واکمنو څخه يې وارپار خطا کړي و، تر ډېرې اندازې
برجسته شوې. دمارچ په ۱۵ پيل شوي دولتي ضدپاڅون په مسکو کې دپاملرنې
اصلي ټکي و. دا ځل تره کي او دغه پلويان، دشوروي پوځونو له مرستې پرته،
چې په تيره بيا دمارچ د مياشتې په دغو شپو ورځو کې يې دغو دبللو سخته هڅه
کوله، برياليي شول چې حالات ارام او ترکنترول لاندې راولي.

په دغه حال کې دهرات پيښو شوروي مشران ديو شمير جدي اقداماتو کولو ته
اړ کړل. تر ډېرې اندازې دا خبره له دې امله چټکه شوه چې دپاڅون په همدغه
لومړۍ ورځ زموږ يو پوځي سلاکار او دوه کارپوهان چې په دغه ښار کې يې کار
کاوه، ووژل شول. دوه ورځې وروسته دشوروي اتحاد ددفاع وزير مارشال د.
اوستينوف امر وکړ دالوتکو له لارې، افغانستان ته دليږلو لپاره دې دهوايي
ديسانت فرقه تيارسي کړي شي. دوه موتوريزه غنډونه دې له بشپړ پرسونل سره
دکوشک په سيمه کې ځای پرځای کړای شي او دمنځنۍ اسيا له پوځي حوزې نه
دې يوه موتوريزه فرقه دترمز ښار ته وليږدول شي. دمارچ په اتلسمه دمارشال
اوستينوف په امر دترکستان دپوځي حوزې په چوکاټ کې دوه نورې فرقې جوړې

راټول شوی پرسونل بیرته خپلو خپلو ځایونو ته ستون کړی شو. داټول کارونه ددې لپاره ترسره کېدل چې وښودل شي، شوروی اتحاد په ګاونډي افغانستان کې دحالاتو دقیقه څارنه کوی او هره شیبه چمتو دی، دخپل مخکینی لاسلیک شوی تړون له مخې عمل وکړی.

## د پېښو نېټه لیک (کرونولوژی)

دمارچ په ۲۳ نیټه تر سختو جګړو وروسته، مخالفو ډلو دقلعه نو او غورماچ اولسوالۍ ونیولې چې ایله څو ورځې وروسته بیرته دحکومت له خوا آزادې شوې. جلال آباد ته څېرمه په غرنیو سیمو کې دیاغیانو فعالیتونو زور واخیست. دمارچ په ۲۵ حکومتی عسکر اړشول چې دبالامرغاب ښار خوشی کړی. داسعدآباد چارچاپیر سختې جګړې روانې وې. په همدې ورځ وسله والو ډلو له پاکستان سره په پوله کې دپراته ولایت - پکتیا دځاځیو پر اولسوالۍ دبری هڅه وکړه.

دمارچ په دیرشمه یاغیانو دمیمنې دجنوب لویدیځ په پنځوس کیلومتری کې دقیصار په سیمه کې خپل جنګی فعالیت چټک کړ. د اسعدآباد دشمال لویدیځ په پنځه ویشت کیلو متری کې داسمار او مانوګی پر دولتی پوځی چونیو، دفیوډالانو وسله والو باندېونو څوځله یرغلونه وکړل.

## «ورانکاری، سبوتاژ او مقاومت»

له افغانستان نه دشوروی سفارت داستخباراتو او زمونږ دسلاکارانو له لارې

اودشوروی اتحاد دکمونیست گوند دمرکزی کمیتې دنړیوالو اړیکو دڅانګې دمشرله خوا «شوروی اتحاد دکمونیست گوند د مرکزی کمیتې یادداشتونه» په نامه سندونه، چې دګوتو په شمېر کسانو لپاره وو، چمتو کیدل او دسیاسی بیورو غړیو ته استول کیدل. په هغو کی نه یوازی دافغانستان دحالاتو په ګډون دموجودی وضعی، علتونه او دلایل تشریح کیدل، بلکه دهیواد دسیاسی مشرتابه لپاره یې مشخصې لارښوونې هم لرلې. دغسې یو یادداشت د ا. ګرومیکو، ی. اندروپوف، د. اوستینوف او ب. پوناماریوف له خوا د ۱۹۷۹ کال داپریل په لومړۍ نیټه تیار شوی و. یوولس ورځې وروسته سیاسی بیورو دیادداشت له متن سره موافقت وښود او ترډیرې اندازې یې دهمدې پر بنسټ دافغانستان دحالاتو په باب خپله راتلونکې کړنلاره وټاکله.

«اشد محرم

څانګړې دوسیه»

## دشوروی اتحاد دکمونیست گوند مرکزی کمتیه

د روان کال دمارچ اتلسمې نیټې د (پ ۱٤۷\پ) ګڼه لارښوونې له مخې دافغانستان په دیموکراتیک جمهوریت کې دحالاتو دورستۍ خړپړتیا دعواملو او دافغانستان دیموکراتیک جمهوریت مشرتابه ته دخپلو دریځونو دپیاوړتیا او

د ثور کال د اپریل انقلاب په یوه وروسته پاتې فیوډالي هیواد کې منځ ته راغی چې د اقتصاد ډېره ابتدایي بڼه او محدود کورني منابع لري. له پخواني رژیم نه ښې ډېرې ټولنیزې، اقتصادي او سیاسي لانجې ورپاتې شوې دي.

د طبقاتي جګړې په تود یدو سره د جبهې په یوه لوري کې د زیارایستونکو د ګټو نماینده – د افغانستان د خلکو دیموکراتیک ګوند او په بله خوا کې هغه ځواکونه ودرېدل چې د ځمکه والو او فیوډالانو، د کمپرا دورې پانګوالۍ او د ډېرو ارتجاعي روحاني کړیو نماینده ګي کوي.

افغاني ارتجاعي قوتونه د وګړو له عامې بیسوادۍ، پیچلو ملي او قومي اړیکو، مذهبي تعصب او افراطي ناسیونالیزم نه ماهرانه ګټه اخلي.

ورانکاري، سبوتاژ او مقاومت چې د نسکورو شویو زبېښاکګرو طبقو له خوا کېږي، د اقتصادي ستونزو د لازیاتوالي، د صنعتي او کرنیزو تولیداتو د کمښت، د کاري فعالیت د سطحې د ټیټوالي، د بیود لوړوالي او دولتي بودجې ته د عوایدو د راتګ د کمښت سبب ګرځي.

د ارتجاعي ځواکونو هلې ځلې چې په روان پړاو کې یې په «اخوان المسلمین» تکیه شویو اسلامي مشرانو له خوا لارښوونه کېږي، د نوې واکمنۍ په وړاندې د دښمنانه ګډ دریځ پر بنسټ د بېلتون غوښتونکو او د ناسیونالیستي ډلو او د غه راز د «شعلهٔ جاوید» د ماویستي ډلې له فعالو انقلابي ضد هڅو سره غوټه کېږي.

وروستـه، اوس په خپلې ورخطايي، برى مـوندلى، يوبل ته يې سره ديووالى لاس ورکړ. هغوى دمبارزې بڼه هم بدله کړه. له پټو ورانوونکو هڅونه يې ښکاره وسله والو يرغلونو ته لاس واچاوه. هغوى نه يوازې دهيواد دننه دخپلو ډلو په سمبالى برياليى شول، بلکه له بهرنيو امپرياليستي او مذهبي کړيو سره يې هم هراړخيزې اړيکى ټينګې کړي دي چې پراخ تبليغاتي او دغه راز د پيسو او وسلو مرستې ورسره کوي. دانقلاب ددښمنانو تاکتيک دادی چې دجګړې جبهې پراخې شي او حکومت اړ شي، خپلې ګوزاريزې قواوې دهيواد پر بيلابيلو سيمو وويشي.

ارتجاع تر ښکاره کمونيستي ضد او شوروي ضد افراطي شعارونو لاندې عمل کوي او وايي چې مقصد يې په هيواد کې دديموکراتيک انقلابي نظام ړنګول او د «آزاد اسلامي جمهوريت» جوړول دي.

• دافغانستان دخلکو ديموکراتيک ګوند په مرام کې دزيارايستونکو پرګنو په ګټه دپراخو سياسي، اقتصادي او ټولنيزو بدلونونو دپلي کيدو اټکل شوی دی، خو دا طرحې يوازې اوس اوس دعمل کيدو په حال کې دي او دخلکو اساسي برخې لاتر اوسه دنوي نظام په برترۍ نه دي پوهيدلي او دهغه په مترقي ځانګړتيا لا نه دي باوري شوي. په هيـواد کې دپيړيو پيړيو وروسـتـه پاتي والى له منځـه وړل، دهغو ستونزو او لانجو غوټول چې نوې واکمنۍ ورسره هماغه له پيله مخامخ شوه، دوخت غوښتنه کوي او پرله پسې پلان شوي او ډير ښه سنجول شوي چال چلند ته ارتيا لري. دديموکراتيک افغانستان مشران عملاً مجبور دي دولتي پرسونل

کړي او د ګوندي او دولتي جوړښت عملي تجربې راټولې کړي.

داولسي واکمنۍ کمزورې برخه داده چې تر اوسه يې په ولايتي، ښاري او کليوالي اداري او سياسي ارګانونو کې د ځان لپاره تکيه ځاى نه دى موندلى، په داسې حال کې چې له دې لارې ممکنه وه په مرکز او اطرافو کې د دولتي چارو اداره ته زيات ايستونکي راکش کړي شي.

د نوې واکمنۍ اصلي ستونزه له اسلامي روحانيت او د مخالفو قبيلو له مشرانو سره دوه اړخيزې اړيکې دي. دغه دوه عناصر په اوسني افغانستان کې ستر ځواکمن قوتونه دي. د دغسې ستونزې د حل لاره چې د ډير دقيق او سنجول شوي چال چلند غوښتنه کوي، تر اوسه نه ده موندل شوې، او دغه دواړه ځواکونه د اوسني رژيم د خطرناکو غليمانو په توګه پرځاى پاتې دي. همدوې په انقلابي ضد فعاليتونو کې پراخه ونډه اخلي. د ايران پېښو چې په ټوله مسلمانه نړۍ کې يې د اسلامي تعصب يوه څپه راخوځولې هم، په افغانستان کې د روحانيت د دولتي ضد فعاليتونو چټکوالي ته لمن وهلې ده.

دهغو ستونزو يو بل علت چې د افغانستان د ديموکراتيک جمهوريت مشران ورسره مخامخ دي، دا دى چې د افغانستان د خلکو ديموکراتيک ګوند تر اوسه پورې په يوه ريښتني پرګنيز سازمان نه دى اوښتى. مترقي کارګران او بې وزلې بزګران په خوراسستې دهغه ليکو ته جذبيږي. ګوند تراوسه په دې نه دى برياله

دروحانیت کوزنی پاټکی (قشرونه).

خپله په دغه گوند کې داپریل له انقلاب وروسته انشعاب راغی اوله دې امله یې دریغ، اغېز او اعتبار راټیټ شول. دافغانستان دخلکو دیموکراتیک گوند نه یوازې دیوې کوچنۍ ډلې په توگه پاتې دی، بلکه د «خلق» او «پرچم» دډلگیو ترمنځ دکورنی اخ ډ ب له امله سخت کمزوری شوی هم دی. د «پرچم» د ډلې یو شمېر وتلی مشران یا خوله منځه یو وړل شول او یا هم له گوندی او دولتی دندو، له پوځی او دولتی چارو څخه گوښه کړی شول او یو شمېر نور یې دسیاسی کډوالو په توگه په بهر کې پاتې دی. اوسنۍ وضعه ان په هغو پرچمیانو هم ناوړه اغېزه ښندی چې لاتر اوسه په گوند کې پاتې دی. دغه کسان دافغانستان دخلکو دیموکراتیک گوند د مشر تابه په وړاندې دویرې، شک او بدگمانۍ احساس لری. په مرکز او ولایتونو کې داداری واحدونو پرله پسې بدلول رابدلول او دافسری کادرونو هره شیبه دې خواهاخوا کول، نوره هم دا وضعه کړکیچنه کوی.

دافغانستان غلیمان هم دننه او هم په بهر کې، په تیره بیا دپاکستان او ایران په خاورو کې چې دنوی نظام ډیر مخالفین ورتښتیدلی، فعالیت کوی. دموجودو شواهدو له مخې، دحکومتی ضد اقداماتو په لمسون کې لویدیځې استخباراتی څانگې، په تېره بیا امریکایی او چینایی جاسوسان پوره ونډه لری. هغوی له پاکستان او ایران سره دافغانستان له خلاصو پولو نه ناوړه گټه اخلی. له همدې لاری نه یوازې دورانکارو او ویرا چوونکو ډلې، بلکه غټ وسله وال باندونه هم

کورنۍ او بهرنۍ انقلاب ضد، نه یوازې له عینی ستونزو نه ګټه اوچتوي، بلکه هغه کوي چې د افغانی مشرانو له تیروتنو او مرګنیو اشتباه ګانو څخه هم استفاده وکړي. ښکاره ده چې د اپریل انقلاب تربرې وروسته هم د ګوندي او هم دولتي چارو د سمبالښت په وخت کې غالباً له اختناق، غیر مجازو تړتنو نه کار اخیستل شوی او هم د بندیانو د تحقیق په وخت کې شخصي عقدې میدان ته راوتلی او له زورزیاتی نه ګټه اخیستل شوې ده.

پوځ هم دبې بنسټیه تړتنو په وړاندې بې تفاوته پاتې نه شو، په داسې حال کې چې همدغه اردو د رژیم اساسی مټ دی. دې کار ترزیاتې اندازې هم دهیواد دننه او هم په بهر کې د نوی نظام دبې اعتباره کولو لپاره دانقلاب ضد هڅې اسانې کړې. ډیر قوماندانان چې وینی دهغوی اندیوالان بندیان او تری تم کیږي، پرځای ویسا له لاسه ورکوي او له بندنه دژغورنې لارې چارې لټوي. دا خبره دهرات په بیلګه کې ډېره ښه جوته شوه. په دغه ښار کې نه یوازې پراخو اولسي پرګنو، بلکه ډیرو پوځي ټولګیو د خپلو قوماندانانو په نوبت د پاڅون کوونکو پلوي وکړه.

له بلې خوا، دهرات پېښو، په حلکو کې، د افغانستان دخلکو دیموکراتیک ګوند له خوا د پراخ سیاسي او تبلیغي - ترویجي چارو د کمزوري سمبالښت خبره تائید کړه. د نوی نظام دډول ډول غلیمانو په دې ډله کې د مرتجعو ملایانو له خوا، په سیمو کې ناوړه تبلیغات د ګوندي کارکوونکو له خوا د کیدونکو تبلیغاتو په اندول څو ځله پراخ او خوځند دي.

ډله کې ډیرو لوړو مشرانو ته بیا بیا وړاندیزونه او مشورې ورکړې دي او شویو تېروتنو او افراط ته یې دهغو پام اړولی دی، خو افغانی مشرانو دنه تجربې او غیر کافي سیاسي انعطاف په ښودلو سره، زموږ دامشورې کمې او په ځینو برخو کې هیڅ نه دي منلي.

دافغانستان دد یموکراتیک جمهوریت دمشرانو دسیاسي تجربې کموالی، دهرات دپېښو په هماغه توده هنګامه کې، هله ښه څرګند شوچې شوروي اتحاد دغه هېواد ته دپوځونو دلېږلو په اړوند دافغانستان دمشرتابه وړاندیز رد کړ او په مقابل کې یې دوی دخپګان څرګندونه وکړه. ددوی وړاندیز له دې امله رد شو چې دشوروي پوځونو دلېږلو په صورت کې به ژور او خطرناک سیاسي عواقب منځ ته راغلي وای (خو افغاني مشرانو داسې ښودله چې په دې موضوع هیڅ نه پوهیږي).

ښکاره ده چې دافغاني حکومت ضد هڅې بشپړ کورنی ماهیت لري او که شوروي عسکرو دهغو په ټکولو کې برخه اخیستې وای، له یوې خوا به دشوروي اتحاد نړیوال اعتبار ته جدي تاوان رسیدلی وای او دتشنج دکموالي بهیر به ډېر شاته غورځیدلی وای او له بلې خوا به یې دتره کي دحکومت کمزورتیا په ډاګه کړې وای چې په نتیجه کې به یې انقلاب ضد عناصر ددغه هیواد دننه او بهر لانوو دحکومتي ضد فعالیتونو ته هڅېدلي وای. دا حقیقت چې دافغانستان حکومت

په دې توګه موږ دا ګڼو چې هرات ته د شوروي پوځي ټولګيو د لېږلو په هکله، دافغانستان دد یموکراتیک جمهوریت د مشرتابه دغوښتنې په ردولو سره، موږ سمه پرېکړه کړې ده. په افغانستان کې دنورو حکومتي ضد بغاوتونو د کېدلو په صورت کې هم، چې ښه ډېر احتمالات يې شته، موږ ته په همدغه لاره تګ په کار دی.

خو له دې سره سره، ښکاره ده چې موږ به په راتلونکې کې هم د خپل وس په اندازه دافغانستان دد یموکراتیک جمهوریت له حکومت سره مرسته کوو چې انقلابي ضد قوتونو ته ګوزار ورکړي، په هېواد کې حالات ټینګ او آرام کړي، خپله اغېزه پراخه کړي او د سوسیالیستي بدلونونو په لار کې د پراخو پرګنو ملاتړ راخپل کړي.

داپریل انقلاب د بري له هماغه پیله، شوروي اتحاد له نوې واکمنۍ سره په نړیوال ډګر کې د سیاسي ملاتړ له لارې پراخه مرسته کوي. په اقتصادي برخه کې دوسله وال پوځ په پیاوړتیا او د تکړه مسلکي کادرونو په روزنه کې ورسره هر اړخیزې مرستې کوي. دافغانستان دد یموکراتیک جمهوري حکومت په غوښتنه دبیلابیلو برخو لپاره ښه ګڼ شوروي کارپوهان او سلاکاران هلته لیږل شوي چې دافغانستان دد یموکراتیک جمهوریت په وړاندې د پرتو ستونزو په هوارۍ کې ښه غښته برخه واخلي.

دهمدغو چارو په دوام او دافغانستان په هکله په دې وروستیو وختو کې دنویو

۱ – دافغانستان دديموكراتيک جمهوريت له مشرتابه سره دې دخپل پوځ دجنگي ورتيا او دهغه دسياسي او روحي حالت دلوړتيا ، انقلابي واكمنۍ ته دهغه دوفاداري او سربښندنې په تأمين ، دامنيتي ارگانو او په دې ډله كې دسرحدي پوځونو دپياوړتيا او دهغوى داغيزمنتوب په زياتوالي كې مرسته وشي.

ددې خبرې په پام كې نيولو سره چې په افغانستان كې دوروستيو پيښو له امله دغه هيواد ته ډيره نوره وسله او جنگي تخنيک استول شوى او ځينې نورېې داستولو په حال كې دى او دافغانستان ديموكراتيک جمهوريت دوسله وال پوځ لپاره هم خپله په دغه هيواد كې او هم دشوروى اتحاد په پوځي تعليمي موسسو كې دپوځي پرسونل روزنه ډيره پراخه شوې ده. په كارده ، ډير ټينگار په دې تكې وشي چې له وركړى شوې وسلې او تخنيک نه اغيزمنه گټه اخيستل دې ډير ژر زده كړاى شي. دغه خبره په هغو مرستو پورې هم اړه پيدا كوى چې ددولتي امنيت دارگانو له لارې ترسره كيږى.

۲ – دهغو مرستو په گډون چې په افغانستان كې دديموكراتيک انقلابي نظام دسياسي دريځونو له ټينگښت سره لاس كولى شي ، تروسه وسه دې دغه هېواد ته دمرستو رسولو په هكله تولې مسألې په پوره چټكۍ څيړل كيږى او په دې اړوند دې چټكې پريكړې كيږى. افغاني مشرانو ته دې وويل شي چې په لومړى گام كې داقتصاد دهغو څانگو پراختيا په كار ده چې دهېواد دتوليدى ځواكونو

۳- له هرې لارې چې دافغانستان دیموکراتیک جمهوریت له مشر تابه سره خبرې اترې کیږي، باید په دې ټکي پرله پسې ټینګار وشي چې تر ګوند او حکومت لاندې دپراته سیاسي بنسټ پراختیا ځانګړې ارزښت لري.

په ځانګړې توګه په کار ده چې دافغانستان دیموکراتیک جمهوریت مشرانو ته دامفکوره تلقین شي چې دزمکو اصلاحاتو په ګډون دټولو اقتصادي او ټولنیزو بدلونونو پرله پسې پلې کول خورا له ارزښته ډکه خبره ده. په کار ده چې په دې کار کې له پوره غورنه کار واخیستل شي. ډیرې ځغاستې او افراط ته اړتیا نه شته او باید دترسره کیدونکیو اصلاحاتو سیاسي او ایدیالوژیکي اړخ ته پوره پاملرنه وشي. دنمونې په توګه: دبزګرانو غوښتونو ته دې ورسول شي چې زمکه ورته داپریل انقلاب له برکته ورکول کیږي او که له اولسي او دیموکراتیکي واکمنۍ نه دفاع ونه کړي، نو زمکه یې هم له لاسه وتلې شي. دغسې توضیحي کارونه دې دنورو ټولنیزو او اقتصادي اصلاحاتو په برخه کې هم ترسره شي.

دافغانستان دخلکو دیموکراتیک ګوند دسیاسي بنسټ دپراختیا په مقصد دې افغاني مشران په دې خبره قانع کړی شي چې په کار ده ورو ورو دواکمنۍ دارګانونو انتخابي والي ته مخه کړي، خو دا به هیڅکله دهیواد په دولتي او سیاسي جوړښت کې دګوند دلارښوونکي نقش پاینښت او ټینګښت ته دزیان رسولو په مانا نه وي. باید هغوی قانع کړی شي چې دخلکو دډیموکراتیکو حقوقو

٤ - له افغانی مشرانو سره په خبرو اترو کې دې هغوی ته ددې خبرې روښانول همداسې دوام ولري چې د گوندي غړو د شمېر له زياتوالي سره جوخت، د گوندي مشرتابه او صفوفو بشپړ يووالي څومره ارزښت لري. هغوی ته دې د غه راز د گوندي او دولتي مهمو پيښو په هکله دډله ييزو پريکړو ارزښت په گوته شي. دافغانستان دخلکو ديموکراتيک گوند او دافغانستان ديموکراتيک جمهوريت له مشرانو سره دې د گوندي او سازماني او دغه راز د پرگنيزو او توضيحي چارو په سمبالښت او د گوندي او دولتي کادرونو په روزنه کې عملي مرسته وشي.

٥ - دافغاني مشرانو پاملرنه دې، دهېواد داسلامي روحانيت په منځ کې دفعاليت چارې ته جلب کړای شي، چې په دې توگه په هغو کې تفرقه ايجاد شي او دارتجاعي اسلامي مشرانو نفوذ دخلکو په منځ کې راټيټ شي. دا مقصد هله ترسره کيدای شي چې دټاکلو بيلگو په راوړلو سره، په هيواد کې دمذهب په ازادۍ ټينگار وشي او وويل شي چې نوی واکمنان ټولو روحانينو ته نه، بلکه هغه چا ته سزا ورکوي چې عملاً دانقلابي نظام خلاف دريږي.

٦ - په کار ده چې دافغانستان دديموکراتيک جمهوريت مشران هم په دې قانع کړی شي چې پر انقلابي قانونيت بنا دحقوقي معيارونو رعايت لازمه خبره ده او بايد مجازاتي متود يوازې له پوره غور وروسته وکارول شي. البته ددې خبرې مانا دانه ده چې دهغو کسانو پرضد دې له مجازاتو څخه کار نه اخيستل کيږي چې دخيانت په هکله يې پوره شواهد شته او يا داچې په فعاله توگه يې په انقلابي ضد

گوندي کادرونو سرنوشت د تصادفي او شکمنو شاهدانو، هغه هم د دوو يا دريو تنو له خوا، له حقيقي محاکمې پرته بايد ونه ټاکل شي.

۷- د افغانستان د ديموکراتيک جمهوريت د مشرانو غړو ته دا پروند و مسألو په هکله زموږ د نظريو او وړانديزونو د رسولو په کار کې مخامخ کتنو دارزښت په پام چې نيولو سره پکار ده چې په افغانستان کې د حالاتو د عادي کيدلو سره سم په بيلا بيلو سطحو کې، يو د بل هيوادونو ته پرله پسې سفرونه وشي.

۸- د ديپلوماتيکو او نورو ځانګړو ذرايعو له لارې دې، د افغانستان په کورنيو چارو کې، د نورو هيوادو، په تيره بيا د ګاونډيو ملکونو د لاس وهنې خلاف اقدامات همداسې جاري وساتل شي.

۹- له افغاني دوستانو سره دې د سياسي او پرګنيزو چارو د سمبالتيا، په تيره بياد راډيويي تبليغاتو په برخه کې چې د افغانستان د پراخې بې سوادۍ په شرايطو کې خورا ارزښتمنه لاره ده، عملي مرستې وشي.

د افغانستان په هکله، زموږ په تبليغاتو کې دې زياته پاملرنه د ښه ګاونډيتوب اصل او پراخې متقابلې ګټورې همکارۍ ته واړول شي، چې زموږ د دواړو هيوادو په اړيکو کې ټينګ مقام لري او دادي اوس کيفي بدلون او پرمختګ کوي. د شوروي واکمنې په وخت کې د منځنۍ اسيا د جمهوريتونو د سياسي او اقتصادي ودې په هکله دې پراخ او اغيزمن تبليغات وشي. د دغو او

عقیدې دممنوعیت په هکله دتورونو بې بنسټوالی څرګند کړای شي.

۱۰ - په پرله پسې توګه دې ورونه سوسیالیستي هېوادونه له هغو اقداماتو نه خبرشي چې مورږ یې دافغانستان دیموکراتیک جمهوریت له مشرانو سره دهغه هیواد حالاتو په ثبات کې کوو. په دې (تبلیغاتو کې دې) داټکی په پام کې ونیول شي چې دغه هیوادونه هم له افغانستان سره دوړ سیاسي ملاتړ او مادي مرستو کولو ته رامات شي.

ددغو ټولو په نښه شویو برخو او احتمالاً دنویو مواردو په هکله مشخص وړاندیزونه به له اړتیا سره سم (دې طرحې ته) ورزیاتیږي.

ستاسو پاملرنې ته یې وړاندې کوو.

ا. ګرومیکو، ی. اندروپوف، د. اوستینوف، ب. پوناماریوف...

## د پېښو نېټه لیک

داپریل په دویمه دیاغیانو له ډلو سره دبادغیس، پکتیا، کونړ او تخار په ولایتونو کې جلا جلا نښتې وشوې.

داپریل په شپږمه حکومتي لښکرو دمجاهدینو دیوې درې سوه کسیزې ډلې یرغل په اجرستان کې په شا وتمباوه.

داپریل په ۱۳ دانقلاب ضد عناصرو یرغلونه دګردیز په شا او خوا او جلال آباد کې تاوده شول. یوه ورځ وروسته دخوست پنځه سرحدي تانې دتروریستانو تر ډزو

وتکوله. دښنستو په ترڅ کې له دیرشو نه زیات مجاهدین ووژل شول او دوه یې ونیول شول. دگردیز او خوست په پوځي چونیو کې، دامنیتي ارگانونو له خوا ٤٥ افسران چې د «اخوان المسلمین» دافراطي ډلې غړي وو او دافغانستان دحکومت خلاف یې وسله وال اقدام ته تیاري نیوه، ونیول شول.

داپریل په ۱۷ او ۱۸ په بادغیس، بدخشان، کونړ او پکتیا کې دانقلاب ضد عناصرو بریدونه زیات شول. په بادغیس کې یاغیان بریالي شول چې د کُشک کهنه ښار ونیسي، خو څلور ورځې وروسته بیرته آزاد کړی شو. دکونړ په ولایت کې دافغانستان دیموکراتیک جمهوریت یوه پوځي چونۍ تر سختو ډزو لاندې راغله، په پکتیکا کې دارگون په گارنیزیون باندې یرغل وشو.

داپریل په شلمه پوځي واحدونو او دامنیتي سازمان قطعو په گډه، دجلال آباد په فرقه کې دبغاوت هڅه شنډه کړه. په دغه حکومتي ضد اقدام کې دکشف دکنډک، دتوپچي غنډ او دانضباط د ټولۍ منسوبینو برخه لرله.

## «ملگری امین ته قناعت ورکړئ...»

«مسکو، عاجل،

... محرم.»

...ملگری امین خان ته غوښتنی وم او د ن. م. ترد کی په غوښتنه یې داهیله درلوده چې باید ۱۵ – ۲۰ جنگي هلیکوپټرې له مهماتو او شوروي عملې سره ورته ورکړه، چې دحالاتو [illegible]

ډاډ راکړی شو چې کابل ته دشوروی پیلوټانو راتگ او له هغو نه کار اخیستل

به، دپټ راز په توگه ساتل کیږی...

ل. گاریلوف

د ۱۹۷۹ داپریل ۱٤

وکتل شو:

ددې کار له اجرانه دې ډډه وشی.

ن.و. اگارکوف».

د ۱۹۷۹ کال داپریل په ۲۱ دمرکزی کمیټې دسیاسی بیورو، دافغانستان په

خاوره کې دانقلاب ضد بغاوتونو په ټکولو کې دجنگی هلیکوپټرو دشوروی

پیلوټانو گډون غیر معقول وباله. دافغانستان په دیموکراتیک جمهوریت کې

لوی پوځی سلاکار ته لاندې لارښوونې وشوې:

«اشد محرم

ځانگړې دوسیه.»

کابل، لوی پوځی سلاکار ته.

دافغانستان د دیموکراتیک جمهوریت صدر اعظم ح. امین ته خبر ورکړئ چې

د ۱۵ - ۲۰ جنگی هلیکوپټرو او شوروی پیلوټانو دورلېږلو په هکله دهغه

غوښتنه شوروی حکومت ته وړاندې شوه.

وړ ته وو ایاست چې دافغانستان په دیموکراتیک جمهوریت کې دانقلاب ضد

پخوا افغانی مشرانو ته توضیحات ورکړل شوي وو. دغسې یو اقدام به دافغانستان دانقلاب د دښمنانو او بهرنیو مخالفو ځواکونو له خوا، افغانستان ته دشوروي انترناسیونالستي مرستې دبدنامولو او دافغان اولس په منځ کې دحکومتي ضد او شوروي ضد تبلیغاتو په مقصد وکارول شي. په دې خبره ټینګار وکړئ چې دروان کال په مارچ او اپریل کې دافغانستان دیموکراتیک جمهوریت ته په پنځو یا لسو ډولو وسلو سمبالې جنګي هلیکوپترې سپارل شوي دي.

ح. امین ته قناعت ورکړئ چې له تاسو سره موجودې هلیکوپترې دافغاني پیلوټانو په لارښوونه کولی شي، دپلیو ځواکونو او جنګي الوتکو په مرسته دانقلاب ضد عناصرو د سیسې شنډې کړي.

«افغاني پوځي قوماندانۍ لپاره په دې برخه کې لازم هدایات طرح کړئ».

## دپېښو نېټه لیک

د اپریل په ۲۲ وسله والو یاغي ډلو دګردېز-خوست واټ د وازې په سیمه کې بشپړ بند کړ.

د اپریل په ۲٤ او ۲۵ دننګرهار په ولایت کې له ورانکارو ډلو سره سختې جګړې روانې وې. دجلال آباد د جنوب ختیځ په شپېته کیلو متري کې دچنار په سیمه کې دافغانستان - پاکستان له ګډې پولې نه د ( ۵۰ ) وسله والو یاغیانو

شريف دجنوب لويديځ په (٧٠) کيلو مترۍ کې د آن کپر ک سيمه دياغيانو لاس ته ورغله.

داپريل په دويمه دهيواد په ختيځ او شمال ختيځ کې دکوچيانو له خوا دپوځي عملونو دزياتېدو نښې ښرگندې شوې. دخوست او گرديز په شا او خواکې ځو کلي دتروريستانو تر يرغل لاندې راغلل. دهمدغو ډلو له خوا د دره، صوف منطقه اشغال او تالا شوه. حکومتي پوځونو د زابل په ولايت کې دياغيانو يوه ډله، دړې وړې کړه.

دمې په اوومه دکونړ په ولايت کې درې ورانکارې ډلې چې له پاکستان نه دوزيرو، گوشتې او جنوبي اسمار سيموته ننوتې وې، له منځه يوړل شوې.

مخالفينو غوښتل دمې په نهمه په ټول هېواد کې دولتي ضد پاڅون پيل کړي، په پکتيا، غزني، پکتيکا، ننگرهار، کنړ، بلخ، سمنگان او دکابل په شا اوخوا کې دغسې اقدامات تر سره شول. ترټولو ستر وسله وال بغاوت پايتخت ته ورڅېرمه، په تره خېلو کې جوړ شو. له دريو سوو زياتو مجاهدينو هڅه وکړه چې کابل ته ننوځي، خو حکومتي پوځونو هغوی وتکول او تر يوحده يې له منځه يووړل. دغزني ښار په جنوبي څنډو کې دمخالفو وسله والو ډلو لاس ته ځو کلي ورغلل، خو د ورځې تر پايه دباغيانو مقاومت مات او له ٢٥٠ نه زيات مجاهدين دحکومتي ځواکونو له خوا ونيول شول. ورته شورشونه په پلخمري او پُل علم کې هم جوړ شول. دحکومتي لښکرو دسختو اقداماتو په نتيجه کې له دريو سوو

دمی په لسمه دکندهار په هوایي گارنیزیون کې یوه توطئه کشف او شنډه شوه. امنیتي ارگانونو دډگر (١٦) تخنیکي کارکوونکي ونیول. یوه ورځ وروسته حکومتي لښکرو دگردیز - خوست دواټ دبیا پرانیستلو لپاره عملیات پیل کړل.

دمی په ١٣ ځارندویانو او حکومتي عسکرو دسنگ چارک په اولسوالۍ کې یولوی باند محاصره کړ. دامنیتي ارگانونو کارکوونکو په پلخمري کې دمخالفینو له (٥٠) نه زیات پلویان ونیول. د دیچنای او گردنۀ غوري په سیمو کې هم سخت جنگ روان و. دجنوبي بدخشان په مونجان کې یوه اویاکسیزه مخالفه ډله محاصره او له منځه یوړل شوه. مخالفو وسله والو ډلو د آسمار او اسعد آباد ښارونه په هاوانونو او سپکو وسلو وویشتل. په لاندې سیمو کې دمخالفینو دتولید وخبرونه راورسیدل: دبغلان جنوب لویدیځ په غرونو کې ترزروزیات کسان، دزیړکو په سیمه کې تر دووزرو کسه او دغزني ښار دلویدیځ په دولس کیلو مترۍ کې تر ځلور سوو تنه.

دمی په ١٤ په درۀ صوف، لغمان او دبغلان دجنوب په شپیته کیلو مترۍ کې دیاغیانو فعالیتونه زیات شول. ددوشي او خنجان دنیولو لپاره مخالفینو ښه ډیر ځواک راټول کړی و. دبهسودو اولسوالۍ لکه د پخوا په څېر دوسله والو مخالفینو په لاس کې وه. په وازې، گومل او دغه راز دخوست په لوېي اولسوالۍ کې، له پاکستان سره پولې ته څېرمه په سرحدي تانو کې جگړه یز فعالیتونه چټک شول. په وازه خوا کې میشت سرحدي کندگ مخالفینو ته تسلیم شو. دمی

د مخالفینو ډلې راټولې شوې وې. مخالفو وسله والو ډلو د غزني جنوب ته د مالستان سیمه ونیوله. دا سیمه د مخالفینو په بشپړه محاصره کې وه. د غزني او کټواز ترمنځ د سیمو په نښتو کې تر دوه سوه زیات مجاهدین له منځه یووړل شول او پاتې یې د کټواز جنوب لوېدیځ ته په شا شول.

درې ورځې وروسته د کندهار په هوایي ګارنیزیون کې نور شل تنه دانقلاب ضد توطیې په تور دامنیتي ارګانونو له خوا ونیول شول. مخالفینو د جلال آباد په شمال لوېدیځ کې د لویې لارې کنترول په خپل لاس کې واخیست. د مخالفینو یرغلونه په زابل، ارزګان، بامیان او غور کې زیات شول.

د مې په ۲۳ حکومتي ځواکونو د هرات ښار د جنوب لوېدیځ په دیرش کیلومترۍ ترۍ کې پراخ عملیات ترسره کړل. هلته له دوو زرو زیات مخالفین راټول شوي وو. د جګړې په لړ کې ۶۰ کسه له منځه لاړل او ۱۳۰ دښمنان اسیر شول. یوه ورځ وروسته په غزني او پکتیا کې خونړۍ جګړې پېښې شوې. ۶۰ تنه له منځه یووړل شول او ۳۹ یاغیان اسیران شول، دغه راز د هرات ښار په جنوب لوېدیځو برخو، د «وازې» په سیمه او بامیانو کې دانقلاب ضد مرکزونو د ړنګولو عملیات روان وو. له سلو زیات کسان ووژل شول او (۸۰) مجاهدین د حکومتي قواو لاس ته ورغلل.

## «ګازي بمونه نه د رلېږو ...»

دنورو پوځي مرستو خبره وڅیړل شوه. دشوروی اتحاد دپلان جوړولو دولتي
كميټې او بهرني سوداګرۍ وزارت ته لارښوونه وشوه چې د دوو مياشتو په اوږدو
کې د ۱۵۰۰ موټرو دورکړې په هکله دافغانستان دديموكراتيک جمهوريت
غوښتنه وڅيړي. څو ساعته وروسته کابل ته دغه شفري تلګرام مخابره شو.

«اشد محرم

ځانګړې دوسيه.

کابل. شوروی سفير ته

ن. م. تره کی ته ورشئ او زموږ پر لارښوونه داستناد له مخې ورته ووایاست
چې دافغانستان ديموكراتيک جمهوريت ته دنورو پوځي مرستو دورکولو په
هکله، دافغاني مشرتابه غوښتنې په غور وڅیړل شوې.

ورته ووایاست چې مسکو په افغانستان کې دارتجاعي ځواکونو دانقلاب ضد
فعاليتونو دچټکتيا له امله دافغاني مشرتابه په اندیښنو پوهیږي. شوروی
حکومت، دافغانستان په ديموكراتيک جمهوريت کې دحالاتو د ثبات په خاطر
په راتلونکي کې هم دانترناسيوناليستي مرستو دورکولو په باب پرخپل هوډ
ولاړ پریکړه وکړه چې د ۱۹۷۹ - ۱۹۸۱ کلونو په اوږدو کې د ۵۳ ميليونو
روبلو په اندول دځانګړيو وسايلو وړيا مرسته وکړي. په دغو وسايلو کې (۱۴۰)
توپونه او هاوانونه، (۹۰) زغره وال ګاډي (له دې ډلې ۵۰ يې په بيړې سره)، ۴۸،

دارو-درمل او طبي سامان آلات وراستول کيږي. دغه راز دچتيکې مرستې په توګه په سږني «مي» کې سل اوربلوونکي ټانکي (اوراچوونکي بمونه) او (۱٦۰) ديوځلي استفادې بمې کستونه ورکول کيږي. دغير زهري ګازي بمونه درکول ممکن نه دي.

ترکومه چې دافغانستان ديموکراتيک جمهوريت ته له شوروي پيلوټانو سره يوځاى دهليکوپټرو او ترانسپورتي الوتکو په درلېږلو او په کابل کې زموږ دکوماندويي قطعې دپلې کولو په احتمال پورې اړه لري، بايد وويل شي چې له شوروي پوځي قطعونه دګټې اخيستنې موضوع پخوا، مسکو ته دروان کال دمارچ په مياشت کې د ن. م. تره کي دسفر په ترڅ کې په هراړخيزه توګه څېړل شوې ده. داسې اقدامات به په پوره باورسره نه يوازې په کورني سياست، بلکه په نړيوال ډګرکې هم غټې ستونزې راپيدا کړي او له هغونه به تر هرڅه لومړي، دښمن قوتونه دافغانستان ديموکرات جمهوريت دګټو او داپريل انقلاب دبرياو خلاف ناوړه ګټه واخلي، ددې لارښوونو داجرا په هکله تلګرامي خبر راکړئ.»

## دپيښو نښته ليک

دمي په ۲۸ دياغيانو خلاف په کندهار کې سخته جګړه روانه وه. په پکتيا او غزنې کې هم جګړه وه، دغزني ګارنيزيون شپږو جزو تامونو دکوچنيو کليو دبيا خلاصون لپاره بريالي عمليات وکړل. دګرديز - خوست لاره اوس هم دياغيانو په لاس کې وه. دخوست پوځي قطعې دمخالفو وسله والو ډلو خلاف په درنده جګړه

دمی په ۲۹ نیټه دشاه ولی کوټ په اولسوالۍ کې یوه مخالفه ډله له منځه یوړل شوه. خوست ته څېرمه په لژه، لندر، میدان خولې او سیدخیلو کې سختې جګړې همداسې روانې وې. دره صوف دډبرو سکرو کانونه او هغو ته څېرمه کلي دپخوا په څېر دمخالفینو په لاس کې وو.

دمی په دیرشمه په کندهار او ارزګان کې جګړو دوام درلود، یاغیانو داسمار په ګارنیزیون بریدوکړ. دخوست دلویدیځ په شل کیلو متري کې یو می - ۲٤ ډوله هلیکوپتر راوغورځول شو.

دپکتیا او غزنی په غرنیو سیمو او کلو کې حکومتی پوځونو د «پاکولو» عملیات ترسره کړل. دلوګو ولایت په ګردنهٔ دیوال کې دهلیکوپترو دیرغل له امله دیاغیانو دتولیدویو مرکز دړی وړی شو. دننګرهار په ولایت کې مخالفو وسله والو ډلو دخده خیلو دسیمې دنیولو هڅه وکړه. یرغل په شا وتمبول شو.

په بامیانو کې دجون په پنځمه یاغیانو دلویدیځ لورته په شاتګ پیل کړ. دغزنی جنوب لویدیځ ته ۵۹ لمبر پلی غنډ دمجاهدینو له ناڅاپي برید سره مخامخ شو. دغنډ دوه کنډکه دړی وړی شول. دهرات او نیمروز په ولایتونو کې دمخالفو ځواکونو دراټولیدو نښې نښانې ترلاسه شوې.

دجون په شپږمه دپکتیا حالات لا هماغسې خړ پړ وو. له دغه ځایه دمنګلو او ځدرانو دیاغی قبیلو د ځواکونو دراټولېدو او فعالیدو خبرونه ترلاسه شول.

د «چ» شبیه *

دشفاهي امر له مخې تر ديرشو زيات دايركتيفونه (پوځي لاربښوونكي اسناد) صادر شول. دهغو له مخې دمنځنۍ اسيا او تركستان په پوځي حوزو كې نږدې جزوتامونه، قطعې او موسسې راجوړې او د پرسونل له پلوه بشپړې كړاى شوې. دځلوېښتم لښكر قوماندانۍ راجوړه او درې موتوريزه فرقې، ديرغليز ديسانت يوه لواء، مستقل موتوريزه غنډ، يوه يوه توپچي او دهوايي مدافعې راكټي لوا او دغه راز دبيلا بيلو پوځي مسلكونو بيلا بيلې قطعې او دلوژستيكي تأميناتو مؤسسې سمبال كړى شوې. دنوى جوړ شوي پوځ د پرسونل دكمال لپاره داحتياط دورې تر پنځو سو زرو زيات افسران، واړه ضابطان او سرتيري احضار شول، داقتصادي مؤسسو له خوا دپوځ داړتيا دليرې كولو لپاره نږدې اته زره موټرې وركړى شوې.

ددغو دواړو پوځي حوزو لپاره په تېره نيمه پيړۍ كې داترټولوستره سفر برى وه. دپوځ دننه او په پوځي كميساريو (دمكلفيت په مديريتونو كې) په ډاډ سره ويل كېدل چې دايوه عادي تفتيشي سفر برى ده. يوازې ددسمبر په ٢٤ دشوروي اتحاد ددفاع وزارت دمشرتابه په غونډه كې داخبره په ډاګه شوه چې شوروي اتحاد، افغانستان ته دپوځونو دليږلو پريكړه كړې ده.

دا هغه وخت دى چې دځلوېښتم پوځ نوې جوړې شوې بيلابيلې قطعې ددندې داجرا لپاره چمتو شوې دي. په دغه غونډه كې هغه جزوتامونه او قطعې مشخصې

خاوره کې ځای پرځای شوی وای. ان له پولې نه د تیرېدو تېک وخت په ګوته شوی

و. د ۱۹۷۹ د دسمبر د ۲۵ ورځې دماز دیګر دری بجې.

شوروی سفیر لا مخکې ح. امین ته خبر ورکړی وچې شوروی مشر تابه دوست افغانستان ته د مرستې پریکړه کړې ده. دهمدې اطلاع له مخې ح. امین دوسله وال پوځ ستر درستیز ته لاربښوونه وکړه چې له شوروی لښکر سره هر ډول مرسته وکړی. د دسمبر د ۲۵ ورځې په سهار د څلویښتم لښکرو قوماندان تورن جنرال ی. و. توخارینوف په کندز کې دافغانستان دوسله وال پوځ دستر درستیز داوپراسیون له رئیس تورن جنرال بابا جان او دافغانستان دخلکو دیموکراتیک ګوند دمرکزی کمیټې دعمومی منشی له مشر وړور عبدالله امین سره دوه کتنې وکړې. په همدغه وخت کې دشوروی پوځ داستحکام جزوتامونو د «دوستې پله» پرځای چې وروسته بیا شوروی لښکرې دهغه له پاسه له افغانستان نه راووتلې، دشپیتو ټنو په وزن دیوه موقتی استحکامی پله په جوړولو لاس پورې کړ. عمومی نقشه داسې وه چې شوروی لښکرې به له دوو لارو افغانستان ته ننوځی او ډیر مهم ولایتی مرکزونه به دکمربند په توګه راګیروی: یو د ترمز - کابل - غزنی له لارې او بل دکوشک - هرات - کندهار له لارې، تاکل شوې وه دهمدې کړی دننه شوروی پوځونه په جلا جلا ګارنیزونو کې داسې ځای پرځای کړای شی چې په افغانستان کې دعادی ژوندانه شرایط برابر شی، خو دپوځونو له لیرلو.

څو شیبې مخکې په دې پلان کې ځینې اصلاحات راغلل: دهغې پلې موتوریزه فرقې قوماندان ته چې ترټولو لومړی باید د ترمز په سیمه کې له پولې څخه تېره شوی وای، امر وشو چې ځان کندوز ته ورسوی، دکوشک په سیمه کې دبلې ورته فرقې حرکت یو څه نور هم وځنډول شو.

د دسمبر د پنځه ویشتمې ورځې په دریو بجو د ۱۰۸ لمبر موتوریزه فرقې دکشف مستقل کنډک دافغانستان او شوروی له ګډې پولې ...

دیسانت د (۱۰۳) لمبر فرقې جنگي وسایل او نور پرسونل افغانستان ته په لیږدولو پیل وکړ. دغه فرقه د کابل په هوایي ډگر کې پلې کړی شوه. د پوځونو د لیږلو په پیل کې د شوروی اتحاد د دفاع وزیر مرستیال مارشال س. ل. سوکولوف او د ترکستان د پوځي حوزې قوماندان ډگر جنرال ی. پ. ماکسیموف د ځلوېښتم لښکر په قوماندانۍ کې حاضر وو. پوځیانو له گمرکي کنترول پرته، دهغو لیستونو له مخې چې دجروتامونو قوماندانانو تصدیق او لاسلیک کړی وو او استحکامي پله ته له ورتیریدو مخکې (شوروی) سرحد دارانو ته سپارل کیدل، دافغانستان خاورې ته دورتیریدلو اجازه موندله. د دیسانت قطعو لستونو په هغو هوایي ډگرونو کې چې دهوایي قواو ترانسپورتي الوتکو په کې دوروستي ځل لپاره تیل اخیستل، دهوایي ډگر سرحدي کارکوونکو ته سپارل کېدل.

د ی. و. توخارینوف په وینا دسېرلومړی زیان (له یرغل) دوه ساعته وروسته پیښ شو. درهره داری د کمربند دبدلون له امله مارش دشپې په تیاره کې ترسره شو. یوه غزره وال گاډي چې غوښتل یې افغاني موټر ته لار خوشې کړي، ولویده او پر بل مخ واوښت. (۱۰) تنه ځای پرځای مړه شول. ۱۰۳ لمبر هوایي دیسانت فرقې د کوزولو په وخت کې هم غم لړلې پېښه منځ ته راغله. د مسکو په وخت د ماښام په اووه بجو او دری دیرشو دقیقو (په افغانستان کې داوخت توره شپه وه) کابل ته څېرمه له غره سره دلگیدو له امله د پوځي حمل ونقل ایل-۷٦ ډوله الوتکه چې سرتیري او جنگي وسایل په کې باروو، وغورځېده. (٤٤) کوماندویان مړه شول.

ددسمبر په ۲٦ ی. و. توخارینوف له مارشال س. ل. سوکولوف سره یوځای له هوانه د (افغانستان په لور) د روانو پوځي کتارونو نندارة وکړه. دراتلونکې ورځې تر نیمایي بگرام او کابل ته دهوایي دیسانت دفرقې او دپراشوتي دیسانت

عادي خلکو دشوروي لښکرو ورتګ ته ښه راغلاست وو ايه. وروسته معلومه شوه چې ددمې په وخت کې هغوي زموږ دپوځونو په وړاندې له پرتو دندو خبر شوي وو او دهغو په نسبت يې مثبت نظر ښوده. البته يې فوق العاده پيښه هم نه وه. يو شمېر هغه موټرې چې له خپل کتارنه وروسته پاتې شوې وې، تر ډزو لاندې راغلې. په تېره بيا له خاروګ نه فيض آباد ته دمستقل پلي موتوريزه غنډ دتېرولو په وخت کې يو ناوړه حالت منځ ته راغی. البته دا حالت ځکه منځ ته راغی چې دافغانستان په شمال ختيځو سيمو کې ډيرشمېر پخوانيو باسمچيانو (دشوروي دحاکميت ضد دمنځنۍ آسيا دمقاومت نهضت روسانو په دغه نامه ياداوه- د. ج.) او دهغوي وارثانو ژوند کاوه.

ددسمبر له ۲۷ نه د ۲۸ تر شپې په کوشک او تخته بازار کې ځای پرځای شوې پنځم لمبر پلې فرقه دهرات خواته روانه شوه. دهمدغې فرقې ځينې جزوتامونه وروسته دهرات په جنوب او شينډنډ کې ځای پرځای شول او بيا د دغې فرقې دمسؤوليت ساحه تر کندهاره را اوږده شوه.

ددسمبر د ۲۸ تر سهاره ۱۰۸ لمبر پلې فرقه په بشپړه توګه دکابل په شمال ختيځ کې ځای پرځای شوه او د ۱۰۳ لمبر هوايي ديسانت له فرقې سره يې لاس يو کړ. په تېرو ځو لسيزو کې دا لومړی ځل وچې په ژمي کې دې دسالنګ په څېر له يو سخت غاښي نه پلي فرقه تېره شي. غرنۍ لارې کنګل شوې وې.

یوازې دموټرو لپاره په پام کې نیول شوی و، د ټانکونو او نورو زغره والو ګاډو د تېرېدو په وخت کې دلوګیو د تولیدلو له امله یو خطرناک حالت منځ ته راغی. سرتېرو ته دګاز ضدماسکونه واغوستل شول. یوازې په دې ترتیب د تلفاتو مخنیوی وشو.

دهوایي دیسانت جزوتامونه په کابل کې ترپلې کیدو وروسته، له افغاني لورې سره په تفاهم کې دمهمو دولتي مؤسساتو خواته وخوځېدل، لکه: دافغانستان دخلکو دیموکراتیک ګوند دمرکزي کمیټې ودانۍ، ددفاع وزارت، دکورنیو چارو وزارت، دملي امنیت وزارت او دمخابراتو وزارت. دغه تأسیسات دشوروي پوځونو په کنترول کې راغلل. دغه راز مهمې لویې لارې هم دشوروي پوځونو تر کنترول لاندې ونیول شوې لکه: کوشک-هرات، شینډنډ-ګرشک-کندهار، ترمز-کابل، کابل-جلال آباد، پلخمري-کندز-فیض آباد او دغه راز دافغان شوروي دګډې همکارۍ هغه مؤسسات چې مسلکي شوروي سلاکارانو او کارپوهانو په کې کار کاوه. په دې ډله کې دغه تأسیسات راتلل: په شمال کې دجرقدق او شبرغان دګاز ایستلو تأسیسات، دسروبي، نغلو، پلخمري او کابل دبریښنا فابریکې، په مزار شریف کې دکیمیاوي سرې فابریکه او داسې نور.

د ۱۹۸۰ کابل تر نیمایي پورې، افغانستان ته دځلویښتم لښکر داساسي برخې انتقال بشپړ شو. د افغانستان خاورې ته پنځم او ۱۰۸ لمبر موتوریزه فرقې، دهوايي دیسانت ۱۰۳ لمبر فرقه، دیرغلیز دیسانت ۵٦ لمبر مستقله لواء، ۸٦۰

انتقال او ځای پرځای شول. دهمدغه کال په لومړي نیمایي کې د دغو پوځونو دلاتقویې لپاره پوځونو شمېر په دغه هیواد کې د سیاسي او پوځي حالت دانکشاف له مخې بدلون مونده.

دجنوري په میاشت کې دا پوښتنه رامنځته شوه چې افغانستان ته لیږل شوي پوځونه باید په کوم نامه یاد کړی شي؟ دغه پوځ لا هماغسې د ترکستان د پوځي حوزې برخه ګڼل کېده، خو هغوی یوازې دځلوېښتم لښکر په نامه یادول هم سم نه برېښېدل، ځکه چې پر دغه لښکر سربېره یو شمېر قطعې او جزوتامونه له مرکز څخه هم لیږل شوي وو. دشوروي اتحاد ددفاع دوزیر مارشال د. ف. اوستینوف په وړاندیز پردغو پوځونو «په افغانستان کې دشوروي محدود قطعات» نوم کېښودل شو.

## «او پر لارښوونه داستناد له مخې...»

«اشد محرم

ځانګړې دوسیه.

ټولو شوروي سفیرانو ته،

(له برلین، وارسا، بوداپست، پراګ، صوفیې، هاوانا، اولانباتور او هانوی پرته) بې له ځنډه دحکومت له مشر (یادبهرنیو چارو له وزیر اویا دهغه له کفیل) سره وګورئ او د شوروي حکومت پرلارښونه داستناد له مخې ورته لاندې مراتب ابلاغ کړئ:

موده کیږي چې له وسله وال ځواک نه کار اخیستلو په ګډون د افغانستان په کورنیو چارو کې لاس وهنه ، روانه ده. ښکاره ده چې د دغو لاس وهنو مقصد ، د هغه دیموکراتیک نظام ړنګول دي چې د ۱۹۷۸ کال د اپریل انقلاب له برې وروسته ټینګ شو . افغان اولس او د هغوی وسله وال پوځ د دیموکراتیکو بریاو . خپلواکۍ او د نوی افغانستان د ملي شرافت خلاف د اتیري په میړانه شنډوي ، خوله بهرنه تیري نه یوازې روان دي ، بلکه ډیر پراخ شوي هم دي؛ له بهرنه د وسله والو باندونو او وسلو رالیږل دوام لري.

په داسې شرایطو کې د افغاني دولت مشرانو د بهرني تیري د دفع په چاره کې د مرستې لپاره پر شوروي اتحاد غږ وکړ . شوروي اتحاد ، په امنیتي برخه کې د افغانستان او زموږ د هیواد د ګډو اړیکو په پام کې نیولو سره چې په خپل وار د ۱۹۷۸ کال د دوستۍ ، ښه ګاوندیتوب او ګډې مرستې په تړون کې یې هم انعکاس موندلی دی ، او د غه راز د نړۍ په دې سیمه کې د سولې د ساتنې په غرض د افغاني مشرتابه دې غوښتنې ته مثبت ځواب ووایه او د هغو مسألو د حل لپاره یې ، چې د افغانستان مشران یې غوښتنه کوي ، پریکړه وکړه چې افغانستان ته محدود پوځي ټولګي ولیږي . په دې کار کې شوروي اتحاد د ملګرو ملتو د منشور په ۵۱ ماده استناد کوي چې د انفرادي او ډله ییزې دفاع له لارې د تیري د دفعې او د سولې د ټینګښت له پاره د هیوادونو حق تضمینوي.

ورکېدو سره شوروی اتحاد چمتو دی، خپلې قطعې د افغانستان له خاورې نه وباسي.

شوروی اتحاد یوځل بیا ټینګار کوی چې د پخوا په څېر یې، یوازینی هیله دا ده چې افغانستان دیوه خپلواک او مستقل هیواد په توګه ووینی چې د ښه ګاونډیتوب د سیاست پر لاره روان دی او د ملګرو ملتو د منشور له مخې، خپلې ټولې نړیوالې ژمنې ترسره کوی. کولای شئ، د دې اعلامیې متن مقابل لورې ته ورکړئ.

«د هغې د اجراء په برخه کې تلګرامی رپوټ ورکړئ.»

«اشد محرم»

ځانګړې دوسیه.

نیویارک

دشوروی اتحاد استازی ته

که څوک هڅه وکړی، د امنیت په شورا کې په افغانستان کې زمونږ اقدامات مطرح کړی، زیات ټینګار وکړئ چې د ملګرو ملتو د امنیت شورا د غونډې په اجندا کې د دې مسألې د شاملولو مخه ونیول شي. ټینګار په دې وکړئ چې دا د افغانستان او شوروی اتحاد ترمنځ د دوه اړخیزو اړیکو خبره ده او دوی به په خپله د هغې د هواری هڅې کوی. یادونه وکړئ چې د افغانستان د ډیموکراتیک

لپاره په نړیواله سطحه منل شوی حق لري.

که دا موضوع بیا هم دامنیت شورا دغونډې په اجندا کې شامله شي، نو بیا دې لاندې اعلامیه چپره کړی شي: «څرنگه چې ټولې نړۍ ته او په دې لړکې دامنیت شورا دغړیو هیوادونو حکومتونو ته څرگنده ده، اوږده موده کیږي چې له بهرنه دوسله وال تیري په گډون، دافغانستان دديموکراتیک جمهوریت په کورنیو چارو کې لاس وهنه روانه ده. ښکاره ده چې ددغو لاس وهنو اصلي مقصد، دهغه ديموکراتیک نظام رنگول دي چې د ۱۹۷۸ کال داپریل انقلاب وروسته منځ ته راغلی دی. افغان اولس او د هغوی وسله وال پوځ دديموکراتیکو بریاو، خپلواکۍ او دنوی افغانستان دملي شرافت خلاف داتیري په میړانه شنډ دي، خوله بهرنه تیری نه یوازې روان، بلکه ډیر پراخ شوی هم دی؛ له بهرنه دوسله والو باندونو او وسلو رالیږل دوام لري.

په داسې شرایطو کې دافغاني دولت مشرانو، دبهرني تیري ددفعې په چاره کې دمرستې لپاره پر شوروی اتحاد غږ وکړ. شوروی اتحاد په امنیتي ډگر کې دافغانستان او زموږ دهیواد دگډو اړیکو په پام کې نیولو سره »چې په خپل وار د ۱۹۷۸ کال ددسمبر د پنځمې نیټې ددوستۍ، ښه گاونډیتوب او گډې مرستې په تړون کې یې هم انعکاس موندلی دی، او دغه راز دنړۍ په دې سیمه کې دسولې دساتنې په غرض، دافغاني مشرتابه دې غوښتنې ته مثبت ځواب ووایه او دهغو مسألو دحل لپاره یې، چې دافغانستان حکومت یې غوښتنه کوی، افغانستان ته

په دې ځای کې ددې خبرې یادول ضروري دي چې شوروي اتحاد او افغانستان دملګرو ملتو دمنشور د ۵۱ مادې له مخې دځان دانفرادي اوډله ییزې دفاع له حق نه کار اخیستی دی. لکه چې ښکاره ده، د نړۍ ډیرو هیوادونو او په دې ډله کې دملګرو ملتو دامنیت شورا غړیو دنړیوالې سولې او امنیت دټینګښت لپاره له خپل دغه روا حق نه بیا بیا کار اخیستی دی.

شوروي حکومت دغه راز ددې خبرې په ډاګه کول ضروري ګڼي چې له شوروي اتحاد نه دافغانستان ددې غوښتنې او ورسره جوخت دشوروي اتحاد ددې اقدام دمنځ ته راوړونکو شواملو، له منځه وړلو وروسته، شوروي اتحاد هوډلري چې خپل پوځي ټولګی په بشپړه توګه دافغانستان له خاورې نه وباسي.

شوروي اتحاد یوځل بیا په ډاګ وایي چې دپخوا په څیر یې یوازینۍ هیله داده چې افغانستان یوه خپلواک او مستقل دولت، دښه ګاونډیتوب دسیاسیت پر لاره روان او دملګرو ملتونو دمنشور له مخې نړیوالو ژمنو ته پابندو وینی.»

که چیرې لازمه شي، هغو وینااوو ته چې مقصد یې زموږ پرسیاست، زموږ پردغه اقدام او د افغان - شوروي پر دوستۍ او ګډې مرستې سیوري غورځول وي، کلک او مدلل ځواب ورکړئ.

دخبرو اترو او خبرنو په وخت کې په پورتنۍ اعلامیې او دغه راز په هغو اسنادو استناد کوئ چې یا زموږ او یا دنوي افغاني مشرتابه له خوا خپریږي».

## «دمرکزی کمیټې له نامه ورته وواياست ... »

«اشد محرم

ځانګړې دوسيه

بې نوبته

شوروی سفير

ددوستو (ګوندونو) مشرانو له استازو سره وګورئ او د شوروی اتحاد دکمونيست ګوند مرکزی کمیټې له نامه ورته لاندې مراتب ووایاست:

ګرانو ملګرو!

له هغه دود سره سم چې زموږ د ګوندونو ترمنځ وجود لری، دشوروی اتحاد دکمونيست ګوند مرکزی کمیټه غواړی، ستاسې له ګوندی مشرتابه سره دافغانستان د وروستيو پيښو په اړوند دخپلو نظريو او ارزيابيو په هکله دزړه خواله وکړی.

تاسو خبرياست چې د ۱۹۷۸ کال داپريل انقلاب نه وروسته په افغانستان کې نوی ملی مترقی نظام منځ ته راغی. په هيواد کې دمستبد پاچايی نظام دړنګولو، دانقلاب خواته دخلکو د پراخو پرګنو د راماتولو لپاره پراخې هڅې ترسره شوی. دزمکو اصلاحات ترسره شول او يوه زياته اندازه زمکه زيار کښو بزګرانو ته ورکړل شوه. دولور ورکړه منع شوې او دخلکو په ګټه داسې نوربدلونونه منځ ته راغلی دی.

له سخت مقاومت سره مخامخ شو. پاکستان، ایران او چین په پله پسې ورانوونکو اقداماتو لاس پورې کړ، د پخوانی رژیم پاتی شویو، له خپلو زمکونه بې برخې شویو زمکه والو، د پخوانی پاچاهی نظام لاس پوڅو او د اسلامی روحانیت یوې برخې هم په خپل وار د انقلابی نظام خلاف مبارزه پیل کړه.

دې اورته په تېره بیا د حفیظ الله امین تیروتنو او کړنو بې پردې وویل شی، دهغه استبدادی اوله دکتاتورۍ ډکو کړنو سخته لمن ووهله دهغه له خوا ډیر ابتدایی قانونی نورمونه تر پښو لاندې شول، هغه د ټولو ناراضیانو او په تیره بیا دهغه »چا خلاف له ترټونکو او ځبونکو عملونو نه کار واخیست چې اوږده کلونه یې د پاچاهی نظام خلاف مبارزه کړې او د اپریل په انقلاب کې یې فعال ګډون درلود.

په دې وروستیو کې حفیظ الله امین د خلکو دیموکراتیک گوند عمومی منشی او د افغانستان جمهور رئیس ن. م. تره کی له منځه یوړ او په ټګۍ سره یې د بشرپالنې او قانونیت دعوې پیل کړې. په افراطی انقلابی ویناوو یې خوله پرانیستله او داسې نور، خو عملاً یې ډله ییزو وژنو ته دوام ورکړ او د انقلابی رژیم بنسټ ته یې زیان رساوه.

په دې توګه بهرنیو لاسوهنو او د خلکو ګټو او انقلاب ته دوفادارو کادرونو خلاف له اختناق نه کار اخیستلو، دهغه څه د محوه کولو خطر رامنځته کړ چې د اپریل انقلاب له برکته د افغانستان په نصیب شوی و.

د حفیظ الله امین او دهغه د نږدې ملګرو د ناروا او ناجائزه اعمالو له امله په

زور وره ځپه راوخوځېده او ورسره جوخت دارتجاع ورانوونکو اعمالو زور واخیست
او له بهرنه دراليږلو شويو وسله والو ډلو فعاليتونه چټک شول.

له دی ټولو څخه بهرنيو ارتجاعی ځواکونو ګټه اوچته کړه. هغوی دډيره وسله
والو ډلو راليږل (په تيره بيا دپاکستان له خاورې نه) چټک کړل. بيلا بيلې وسله
والې ډلې يې په پيسو اووسلو سمبال کړې او داسې نور. لنډه دا چې هغوی دتير
نظام دبيا دټينګولو او امپرياليزم پورې دافغانستان دټړلو لپاره لاره هواروله.
ددغه سياست لوی محرکين دامريکا امپرياليزم او سی. آی. ای او دغه راز دچين
مشران دی.

خو په افغانستان کې داسې ځواکونه پيدا شول چې په غوڅه توګه يې دحفيظ
الله امين خلاف پاڅون وکړ. هغه يې له واکه ليرې او دهيواد او ګوندی لارښوونې
نوی ارګانونه يې منځ ته راوړل. په دې ډله کې هغه شخصيتونه شامل دی چې
اوږده کلونه يې دپاچاهی نظام خلاف مبارزه کوله او له تره کی سره يې يوځای
داپريل انقلاب بری ته رسولی و.

دګوند او دولت مشری ببرک کارمل په غاړه واخيسته. دهغه دوينا او
دافغانستان خلکو ته دخطاب مقصد دافغانستان دملی خپلواکی، دخلکو ديو
موټی والی، دمترقی او ديموکراتيک سياست دپلی کولو، دقانون درعايت،
دټينګ قانونی نظم دراوستلو او دخلکو په وړاندې دبشر پالونکی چال چلند

ديموكراتيک گوند او دافغانستان مترقي ديموكراتيک جمهوريت پياوړی کړي.

نوي گوندي او دولتي مشرتابه له شوروي اتحاد نه دسياسي او مادي مرستو او په دې ډله کې د پوځي ملاتړ غوښتنه وکړه.

شوروي اتحاد دغسې مرستې دکولو پریکړه کړې ده. شوروي او افغاني حكومت په دې اړوند د ۱۹۷۸ کال ددسمبر د پنځمې نیټې په تړون باندې اتکا لرله چې شوروي اتحاد او افغانستان لاسلیک کړی دی. ددې تړون په څلورم فصل کې ویل شوي دي: «دواړه لوړې موافقه کوونکې خواوې به، ددوستۍ او ښه گاونډیتوب داصل پر بنسټ او دملگرو ملتو دمنشور په پام کې نیولو سره، د دواړو هېوادو دامنیت، خپلواکۍ او دخاورې دبشپړتیا دتأمین لپاره یوله بل سره سلا مشورې کوي او ددواړو غاړو په موافقه به وړ گامونه اوچتوي. ددواړو لوړو موافقه کوونکو خواو ددفاعي وړتیا دپیاوړتیا په غرض به دواړه غاړې په پوځي برخه کې خپلو گډو مرستو ته دوام ورکوي.»

شوروي اتحاد افغانستان ته دځه مودې لپاره دکم شمېر پوځي ټولگیو دلېږلو په اړه افغاني حكومت ته دهوسرو خوځاوه. په افغانستان کې به دهغو شته والی دبهرنیو غلیمو ځواکونو (په تیره بیا دپاکستان له لورې) دیرغلونو او دکورني انقلاب ضد عناصرو دهځو دمخنیوي ضمانت وکړي.

شوروي پوځي ټولگۍ به دحالاتو له ثبات او دهغو عواملو له ورکاوي وروسته سمدلاسه بیرته راوایستل شي چې ددغه عمل دترسره کولو اړتیا یې رامنځته کړي.

دشوروی اتحاد دکمونیست گوند دمرکزی کمیتې ددغې پریکړې دنیولو په وخت کې دامپریالیستي دولتونو او دهغو دډله ییز ارتباط دوسایلوو احتمالی منفی عکس العمل په پام کې نیولی و، خو دطبقاتي او ایدیالوژیکي غلیمانو گوابنونه باید شوروی اتحاد او ددې هیواد کمونیست گوند دې ته اړنه باسي چې دافغاني مشرتابه غوښتنه ونه مني.

دشوروی اتحاد دکمونیست گوند مرکزی کمیته داډ لري چې ستاسې گوند به هغه انگیزې ښې درک کړی شي چې دیموکراتیک افغانستان ته يې ددغه ډول مرستې دکولو اړتیا رامنځته کړې اوله دې اقداماتو څخه به ملاتړ وکړی.

له کمونیستي درناویو سره

دشوروی اتحاد دکمونیست گوند مرکزی کمیته

دغیر سوسیالیستي هېوادو دهغو کمونیستي او کارگری گوندونو

لست

چې دشوروی اتحاد دکمونیست گوند دمرکزی کمیتې لیک ورته استول کیږی

- داتریش کمونیست گوند

- دالجزایر مخکښ سوسیالیستي گوند

- دارجنتاین کمونبست گوند

- دبنگله دېش کمونیست گوند

- دبلژیک کمونیست گوند

- دبرازيل كمونيست گوند

- دونزويلا كمونيست گوند

- دانگستان كمونيست گوند

- دالمان كمونيست گوند

- ديونان كمونيست گوند

- ددنمارک كمونيست گوند

- داسرائيلو كمونيست گوند

- دهندوستان كمونيست گوند

- دعراق كمونيست گوند

- دايران تودې گوند

- دآيرلند كمونيست گوند

- دهسپانيې كمونيست گوند

- دايټاليې كمونيست گوند

- دكاناډا كمونيست گوند

- دقبرس كارگرى مترقي گوند

- دكولمبيا كمونيست گوند

- دلبنان كمونيست گوند

- دلوكزامبورگ كمونيست گوند

- دمکسیکو کمونیست گوند

- دهالند کمونیست گوند

- دناروی کمونیست گوند

- دپیرو کمونیست گوند

- دپرتگال کمونیست گوند

- دریون اون کمونیست گوند

- دسان مارینو کمونیست گوند

- دسوریې کمونیست گوند

- دامریکې دمتحدو ایالاتو کمونیست گوند

- دترکیې کمونیست گوند

- دیوروگوای کمونیست گوند

- دفلیپین کمونیست گوند

- دفنلاند کمونیست گوند

- دفرانسې کمونیست گوند

- دچیلی کمونیست گوند

- دسویس کمونیستی کارگری گوند

- دسویډن دکمونیستانو کیڼ لاسی گوند

«ستاسو د خبرو بڼه له اعتدال نه وتلې ده، ښاغلی جمهور رئیس...

دامریکا جمهور رئیس دهغو لومړیو کسانو په ډله کې وچې افغانستان ته يې دشوروي لښکرو دورتګ په وړاندې عکس العمل وښووده. دمخامخ مزي په مرسته د ج. کارتر پیغام دد سمبر په ۲۹ مسکو ته راورسید. په هماغه ورځ د ل.ا. بریژنف ځواب هم واشنګټن ته مخابره شو.

«اشد محرم

ښاغلی محترم جمهور رئیس،

ستاسو دد سمبر د ۲۹ نیټې د پیغام په ځواب کې دلاندې خبرو کول ضروري ګڼم:

دافغانستان په دیموکراتیک جمهوریت کې دروانو حالاتو دارزیابۍ په هکله ستاسو له نظر سره موافقه نه شم کولی. په مسکو کې مو ستاسې دسفیر له لارې، امریکايي لوري او شخصاً تاسو ته په خصوصي توګه ددغه هیواد د حالاتو او دغه راز دهغو عواملو په هکله په حقایقو بنا توضیحات مخکې درکړي دي چې موږ يې افغانستان ته دمحدودو پوځي ټولګیو دلیږلو په برخه کې، دافغانستان دحکومت غوښتنې ته په مثبت ځواب ویلو اړ کړو.

ستاسو په پیغام کې، افغانستان ته دشوروي پوځونو دغوښتلو په هکله

دشته والي یا نشتوالی منل یانه منل، د پیښو اصلي بهیرنه تاکي، د پیښو اصلي واقعیت داسې دی:

دافغانستان حکومت د دووکلو په اوږدوکې څوځو ځله له موږ نه دغسې غوښتنه کړې ده. د یادونې وړ ده چې ورته غوښتنه ان د روان کال د دسمبر په ۲٦ هم شوې ده. په دې خبره هم شوروي اتحاد خبر دی او هم افغاني لوري چې دا غوښتنه یې کړې ده.

یوځل بیا ټینگار کوم چې افغانستان ته د شوروي محدودو پوځي ټولګیو لیږل یو مقصد لري او هغه د بهرني تیري په له منځه وړلو او دفع کې مرسته او لاس کول دي چې له اوږدې مودې روان دي او اوس یې ډیره پراختیا موندلې ده.

ستاسو په لیک کې دا یادونه هم دمنلو وړنه ده او له واقعیت سره سمون نه لري چې ګواکې شوروي اتحاد دافغانستان حکومت نسکور کړی دی. غواړم په قاطعیت سره یادونه وکړم چې په افغاني مشرتابه کې بدلون، خپله دافغانانو کار دی او یوازې دهمدوی په لاس ترسره شوی دی. په دې هکله دافغانستان له حکومت نه وپوښتئ.

ستاسو په لیک کې دافغانستان د پخوانیو مشرانو د کورنیو د غړیو د برخلیک په هکله راغلې خبرې هم له حقیقت سره سرنه خوري. زموږ په لاس کې موجود معلومات، تاسو ته په درسیدلو اطلاعاتو د ناسمې کربنه باسي.

دغه راز باید دا خبره هم درته په ډاګه اعلان کړم چې شوروي لښکرو دافغان

نیت هم نه لرو.

تاسو په خپل لیک کې دانیوکه هم کړې چې افغانستان ته د پوځونو له لیږلو مخکې مو باید له تاسو سره دافغانستان دحالاتو په هکله سلا مشوره کړې وای. اجازه راکړئ وپوښتم، هغه وخت چې تاسو دایران په سمندري غاړو او دفارس په خلیج کې خپل سمندري پوځ ځای پرځای کاوه او یا په داسې نور وحالاتو کې لږ ترلږه مونږ ته یې دخبر راکولو غوښتنه کوله، تاسوله مونږ سره مشوره کړې وه؟

ستاسو دلیک دمتن او روحیې په پام کې نیولو سره، ضروري گڼم یوځل بیا ځرگنده کړم چې دافغانستان دحکومت غوښتنه او دشوروي اتحاد له خوا دهغې منل، دا کاملاً دشوروي اتحاد او افغانستان خپل منځې خبره ده، چې خپله، خپل دوه اړخیزې اړیکې تنظیموي او له بهرڅخه هیڅ چا ته په دوه اړخیزو اړیکو کې دلاس وهنې اجازه نه ورکوي. دوي دواړه، دملگرو ملتو دبل هر غړي هیواد په توگه ددغه سازمان دمنشور د ۵۱ مادې له مخې چې شوروي اتحاد او دامریکې متحدو ایالتونو په خپله طرح کړې ده، دانفرادي او ډله ییزې دفاع حق لري. دغه حق دملگرو ملتو د سازمان دټولو غړو هېوادو له خوا په رسمیت پیژندل شوی دی.

شک نه شته چې ستاسې دا دعوه چې گواکې په افغانستان کې زمونږ فعالیتونه سولې ته زیان رسوي، هیڅ بنسټ نه لري.

ددې ټولو خبرو په رڼا کې، ستاسو دلیک دځینو برخو غیر معتدله بڼه هم

سره، په کراري ددې خبرې جاج اخيستی وای؟

ترکومه ځايه چې ستاسو په «مشورې» پورې اړه لري، موږ تاسو ته خبر درکړی او دادی يوځل بيا اعلانوم چې کله له شوروی اتحاد نه دافغانستان دغوښتنې رامنځته کيدونکی عوامل، له منځه لاړل، نوموږ به هم سمدلاسه ددغه هيواد له خاورې نه خپل پوځي تولګي راوباسو.

او زموږ مشوره تاسو ته داده: امريکايي لوري ته په کار داده چې دافغانستان په چارو کې له بهرنه دلاسوهنو په بندبست کې خپله ونډه ادا کړی.

زه دا خبره ردوم چې ګنې دشوروی اتحاد او امريکې ترمنځ دلا ټينګو او اغيزمنو اړيکو دټينګښت لپاره ټوله خواری په سين لاهو شوه، مګر داچې امريکايي لوری دهغې غوښتونکی وی. موږ دغسې يوشی نه غواړو، فکر کوم دا خبره دامريکا دمتحدو ايالاتو په ګټه هم نه ده. زموږ باور دادی چې دشوروی اتحاد او امريکا ترمنځ داړيکو دځرنګوالی تاکل، دوه اړخيزه خبره ده، زموږ په عقيده، دغه اړيکی بايد د جانبی عواملو او پيښو تراغيز لاندې زيانمن نه شی.

په نړيوال او اروپايي سياست کې دنظر له اختلافونو سره سره چې موږ ټول پرې ښه پوهيږو، شوروی اتحاد ددې پلوی دی چې له دې وروسته دی هم ټولې چارې دهغو تړونونو او سندونو پر بنسټ ترسره شی چې دواړو غاړو دسولې، برابرې همکاری او نړيوال امنيت په ګټه منلی وو.

## « تروسه وسه دې د دې خبرې له رسوا کولو نه ډډه وشي ... »

دنوی ۱۹۸۰ کال دجنورۍ په لومړیو ورځو کې ، مسکو دافغانستان دبهرنیو چارو دوزیر شاه محمد دوست راتګ ته سترګې په لاره و ، خو هغه په ټاکلې نیټه رانغی ، ځکه چې دجنورۍ په دریمه ببرک کارمل د افغانستان دخلکو دیموکراتیک ګوند دمرکزی کمیټې دعمومی منشي او ددولت دمشر په توګه خپل لومړنی مطبوعاتی کنفرانس جوړکړ چې دافغانستان دیموکراتیک جمهوریت دبهرنیو چارو وزیر هم برخه په کې درلوده .

په بهرکې دافغانستان دیپلماتیکو نمایندګیو ته لارښوونه وشوه ، ټولو هغو بهرنیو ژورنالیستانو ته دې بې ځنډه دنوتلو ویزې ورکړي چې دغه هیواد ته دورتګ هیله لري . داپریکړه دشوروی اتحاد په غوښتنه شوې وه . د « پرانستو دروازو » سیاست ایله څو اوونۍ دوام وموند . دهغه مخنیوی هم د مسکو په لارښوونه وشو .

داپریل دانقلاب له بری نه دکابل رژیم ترړنګیدو پورې دافغانستان دخلکو دیموکراتیک ګوند او دافغانستان دحکومت ټولې کړنې دشورویانو تر کلکې څارنې لاندې وې . ددې خبرې یو ښه مثال دملګرو ملتو دامنیت شورا دغونډې په درشل کې ، په مسکو کې د ا.ا. ګرومیکو او ش.م. دوست کتنه دد. ئمه وه چې

دافغانستان دیموکراتیک جمهوریت دبهرنیو چارو له وزیر ش. م. دوست سره

دا. ا. گرومیکو دخبرو اترو داصلی محتوا دغنډو ټکو یادداشتونه

گرومیکو : ... په زړه پورې ده چې اورو دافغانستان دیموکراتیک جمهوریت
نوی مشران د شوروی لوری مشورې او نیکې هیلې په غور سره اوری. له دې سره
سره غواړم یادونه وکړم چې دبیلابیلو مسألو په اړوند دوروستي پریکړې حق
یوازې افغانی لوری، یوازې تاسې لرئ.

ملگری وزیر غواړم دامنیت په شوراکې دمنځ ته راغلی حالت او په راتلونکې
غونډه کې ستاسو دوینا د څرنگوالی په هکله در ته خپل نظر څرگند کړم.

شک نه شته چې دا نظریې دوروستي پریکړې بڼه نه لری، خو په هر حال،
دافغانستان او دهغه د شاو خوا پیښو په هکله زموږ دهیواد او دشوروی مشرتابه
دریځ څرگندوی.

لومړی: لویدیځو هېوادو، ترټولو لومړی دامریکې متحدو ایالاتونو دشوروی
اتحاد او دنوې ټولنې دجوړښت په لاره دروان انقلابی افغانستان خلاف پراخه
تبلیغاتی مبارزه پیل کړې ده. امپریالیزم پریکړه کړې چې «دزړه براس وباسی».

په دې شریرو تبلیغاتو کې دحیرانتیا کومه خبره نه شته. دحیرانتیا خبره به هله
وای چې امپریالیزم په افغانستان کې دروانو انقلابی بدلونونو په وړاندې نیک
... وای، هله به نو موږ فکر کولی چې هه، څه خراب کار مو کړی چې

دوهم: دامنیت شورا په غونډه کې دافغاني هیئت دمشر وینا باید څه بڼه ولري (لحن یې باید څه وي).

تاسې ملګری وزیر، پوره حق لرئ چې د تورن په توګه نه، بلکه د یو څارنوال په بڼه خبرې وکړئ. فکر کوم د دې کار لپاره پوره دلایل هم شته. له دې امله مهمه نه ده چې له ځانه څنګه دفاع وکړئ، بلکه غوره داده چې څنګه برید وکړئ او په څه ډول دامپریالیزم دسیسې بربنډې کړئ.

دریم: باید په ځانګړې توګه په دې ټکي ټینګار وشي چې افغانستان ته دشوروي محدودو پوځي ټولګیو لیږل، له شوروي مشرانو څخه دافغانستان دیموکراتیک جمهوریت دمشرتابه دبیا بیا غوښتنې په ځواب کې شوي دي. دغسې غوښتنې هم د ن.م. تره کي له خوا مسکو ته دهغه دسفر په ترڅ کې او هم د ح. امین له خوا مخکې مطرح شوي دي.

کارتر غواړي داخبره په خلکو ومنې چې شوروي اتحاد یوازې دافغانستان دنویو مشرانو له خوا دغه هبواد ته دعسکرو دلیږلو غوښتنه ترلاسه کړې ده. (تاسو ته) په کار ده چې دا جعلیات په غوڅه توګه رد کړئ او احتمالاً د نیټو په ذکر سره څرګنده کړئ چې دافغانستان په کورنیو چارو کې دبهرنیو ځواکونو دپرله پسې لاس وهنو له امله، هغوی اړشول چې څوځله له شوروي اتحاد نه دپوځي ملاتړ په ګډون، دمرستې غوښتنه وکړي.

دغیلي و بنا به دې برخه کې دامنیت شورا غ... ته د ملګ... اتحاد ... ش

ترمنځ ددوستۍ، ښه ګاونډیتوب او همکارۍ تړون وړ په یاد کړئ.

څلورم: په کارده، په دقیقه توګه وویل شي، چې شوروي محدود پوځي ټولګي، افغانستان ته یوازې او یوازې دهغو بهرنیو ځواکونو دناپایه تیري کوونکو اعمالو ددفعې په کارکې دمرستې لپاره غوښتل شوي چې دپاکستان له خاورې نه، تیري کوي. په هغه هیواد کې، دامریکې، نورو لویدیځو هیوادونو او چین په زیار دکډوالو کمپونه، دګڼ شمېر وسله والو باندونو د روزنې او افغانستان ته دصادرولو په مرکز بدل شوي دي.

پنځم: دافغانستان دیموکراتیک جمهوریت دمشرتابه بدلون بیخي دافغانستان کورنۍ خبره ده او په خپله په افغانانو پورې اړه لري. هیڅوک حق نه لري، افغانانو ته په ګوته وښیي چې څه شي وکړئ او څنګه چال چلند کوئ.

دلویدیځو هیوادو استازي، په تېره بیا تاچر هڅه کوي، دافغانستان دمشرتابه بدلون او دغه هیواد ته دشوروي پوځي ټولګیو لیږل، دوه موازي اعمال وښیي. هغو وایي ګواکې دغه دوه پیښې سره تړلې دي، خو تاسو پردې خبره هم ځانګړې ټینګار وکړئ او ووایاست چې دلته کومه علنی رابطه وجود نه لري، داهسې دپیښېدو دوخت له پلوه یو تصادف و.

ښه به وي که تاسو دې ټکي ته هم پام ولرئ چې دامریکې دمتحدو ایالتونو او دنورو لویدیځو هیوادو رسمي استازیو ان د ن. م. تره کي او ح. امین په وخت کې

گواکي شوروی اتحاد خپل پوځونه د دسمبر له ۲۷ نه مخکې افغانستان ته لیږلي چې دافغاني مشرتابه تعویض یې رامنځته کړ.

شپږم: ښه به وي که یوځل بیا وویل شي چې شوروي محدود پوځي ټولګي به هله سمدلاسه دافغانستان له دیموکراتیک جمهوریت نه وځي چې په افغانستان کې دهغوی دحضور دلایل له منځه لاړ شي. له بهرنه وسله وال یرغلونه او تیري کوونکي لمسونونه بند شي او په افغانستان کې امنیت تامین شي.

اووم: دوتلو اسلامي مشرانو دوژنو او په افغانستان کې داسلام دین دتهدید په هکله لویدیځ شورماشور پورته کړی دی. عجیبه داده چې دا ډول «افسوسونه» دامین داعمالو، دهغه دخپل سریو او وژنو په هکله نه، بلکه دوا ک له ګدۍ نه دافغانستان دخلکو ددغه قاتل دنسکورولو له امله څرګندیږي.

دهمدې ټکي په پام کې نیولو سره دافغاني هیئت مشرته په کار ده، دببرک کارمل په مشرۍ دافغانستان دیموکراتیک جمهوریت دنوي حکومت مثبتې کړنلارې او داسلام او مسلمانانو په وړاندې دهغه ددریځ په هکله ټینګې او غوڅې خبرې وکړي.

اتم.: په کار ده چې دیو دکتاتور او دافغانستان دټول اولس خلاف دوژنو او ډله ییز ترور له لارو چارونه دکار اخیستونکي په توګه د ح. امین څېره رسوا کړی شي. حقایق او شواهد دې راوړل شي. دهغو شمېر ډیر دی.

نهم: ګټوره او له ارزښته ډکه خبره به وي که وویل شي چې دافغانستان

ایران او پاکستان سره دښه گاونډیتوب عادي روابط ټینگ کړي، او دا کار دافغانستان دیموکراتیک جمهوریت په داسې حال کې کوي چې پاکستان دافغان اولس په کورنیو »چارو کې له گوتو وهلو څخه لاس نه دی اخیستی. له پاکستان نه افغانستان ته دوسله والو ډلو رالیږل هماغسې روان دی یعنې دا چې تیری لا

اوس هم روان دی.

لسم: له دې امله چې امریکا، پاکستان ته دوسلو دورکولو دچټکتیار پریکړه کړې، په کار ده داسې نظریه څرگنده شي چې یو شمېر بهرنی ځواکونه، په تیره بیا امریکا، په سیمه کې دآرامۍ دراوستلونه، بلکه برعکس د کړکیچ دزیاتولو دستونزمنو حالاتو دراپیدا کېدلو غوښتونکی دی. په کار ده غوڅ اعلان وشي چې په امریکایي وسلو « ترغاښونو » دپاکستان سمبالول، دافغانستان دیموکراتیک جمهوریت بې تفاوته نه شي پرېښودی، ځکه چې له دې امله به دپاکستان له خوا پر افغانستان دپوځي یرغل دایمی خطر منځ ته راشي، دافغانستان دیموکراتیک جمهوریت به اړشي چې په داسې شرایطو کې هم دخپل امنیت غم وخوري.

یوولسم: دنورو اسلامي دولتونو خلاف دافغانستان د درولو هڅې بېځې ښکارد دی، په دې هکله دې وویل شي چې افغانستان ټولو اسلامي هېوادونو، ان هغه چاته چې دامنیت شورا دغونډې دجوړیدو غوښتنلیک یې لاسلیک کړی هم دی، ددوستۍ لاس غزوي. په کار ده ټینگار وشي چې دافغانستان دیموکراتیک

دافغانستان دقانوني دولت خلاف ونه دريږي، مجازات به نه شي.

داخبره دې زموږ په خپل منځ کې وي، ملګري وزير، موږ ته اطلاعات را رسيدلي چې سعودي عربستان هڅه کوي خپل شپږ ګاونډي اسلامي هېوادونه وهڅوي چې دافغانستان له ديموکراتيک جمهوريت سره خپلې اړيکې پرې کړي.

دولسم. مهمه به وي که يادونه وشي چې دامنيت شورا د رئيس په نامه تر ليږل شوې ليک لاندې چې چالاسليک کړي دي، ددغو هېوادو حکومتونو دافغانستان له خلکو سره ددښمنۍ لار غوره کړې ده. افغانستان دانقلابي بدلونونو په لاره ټينګ روان دی او هيڅ داسې ځواک نه شته چې هغه له دې لارې راستون کړي. په عين وخت کې دې دا خبره هم وشي چې دافغانستان ديموکراتيک جمهوريت نوی حکومت له ټولو هېوادو، ان له هغه چا سره چې دغه ليک يې لاسليک کړی دی، دهمکارۍ غوښتنه کوي. دافغانستان ديموکراتيک جمهوري حکومت به په راتلونکي کې هم دنا پييلتوب په غورځنګ کې فعاله ونډه اخلي.

دوست: زه په خپل وار ملګري وزير، دامنيت شوراې غونډه کې زما دوينا د څرنګوالي په هکله ستاسو له درنو او ګټورو مشورو نه د زړه له کومې مننه کوم.

مانه يوازې هغه په غور واورېدې، بلکه په مفصل ډول مې دځان لپاره يادداشت هم کړې. ستاسې له خولې راوتلې هيلې به دامنيت په شورا کې زما دوينا اصلي محور وي. يوځل بيا دازادو او له ملګرتيا ډکو خبرو له امله مننه کوم.

ګروميکو: ما يوازې هغه نظريي درته عرض کړې چې زموږ په فکر کيدی شي،

دکمبود له امله هغه په لنډتنګ شکل تیارې شوې وې، خو همدا له ملګرتیا د ک
وړاندیزونه او نظریې په روښانه توګه، داړوندو مسألو په هکله دشوروی اتحاد
دریځ ځرګندوې ستاسو دغوښتنې له مخې مو دامریکایي پوځي اډو په هکله
مطالب تیار کړي دي. دغه مطالب و. س. سافرانچوک له ځانه سره نیویارک ته
وړي. نوموړی ستاسو دغوښتنې له مخې په ځانګړي ډول ستاسو دمشورتی
مرستې لپاره نیویارک ته لیږل کیږي.

کله چې تاسو افغانستان ته دشوري پوځونو دننوتلو له امله ترحملې لاندې
راځئ، نو کولای شئ دخپل ځان په دفاع کې له دې قانع کوونکي حقیقت څخه هم
ګټه واخلئ چې دامریکې تیری کوونکي سیاست په کې رسوا کیږي: دامریکا
متحدا ایالتونه دکیوبا دحکومت او ددغه هیواد د خلکو له بیا بیا غوښتنې سره
سره دګوانتانامو په ټاپوکې دخپلې پوځي اډې ساتلو ته دوام ورکوي. دادیوه
خپلواک هیواد په چارو کې دامریکا دمتحدو ایالتونو ځرګنده لاسوهنه ده.

دیوه ملګري په توګه تاسو او ستاسو دهیئت نورو غړیو ته روحي غوړیدل او
دخپل دریځ په دفاع کې په ځان ویسا او ټینګښت غواړم. په غونډه کې دګډون
کوونکو دولتونو له استازیو سره ډیرې کتنې کوئ او په افغانستان کې دروانو
حالاتو اصلي ماهیت ورته په زړورتیا روښانوئ. حقیقت ستاسو او زموږ پرلور
دی.

ترکومه ځایه چې د و. س. سافرانچوک او له هغه سره ستاسو دکتنو خبره ده،

په وخت کې له لازم احتیاط او هوښیارۍ نه کار واخلې. لیدنې کتنې او دافکارو راکړه ورکړه کیدای شي وار په وار په ملګرو ملتو کې دشوروي دنمایندہ ګۍ په دفتر کې او یا هم په شوروي جنرال قونسلګرۍ کې ترسره کړئ. ښه به وي، که داخبره ډېره خپره نه شي چې و. س. سافرانچوک له تاسو سره دمرستې لپاره نیویارک ته راغلی دی. دهغه داستولو لپاره رسمي پلمه دملګرو ملتو دعمومي اسامبلې په روانه غونډه کې دشوروي دنمایندہ ګۍ هیئت دغړي په توګه ګډون دی.

۱۹۸۰.۱.٤ »

## لومړنی سفر

## نوې دنده

په ۱۹۷۹ کال کې زه په شمالي قفقاز کې دیوې فرقې درستیزوال وم.

افغانستان زما لپاره هومره ارزښت درلود، څومره چې یې د نورو خلکو لپاره لاره. له هغه ځایه را رسیدلي تلویزیوني رپوټونه، زما په نظر د نړۍ د نورو پیښو په هکله د رپوټونو په څیر وو او کومه ځانګړې پاملرنه مې ورته نه کوله.

د تره کي، امین او نورو افغاني سیاسي شخصیتونو نومونه که څه هم بیا بیا تکراریدل، خو بیا هم زما لپاره نامأنوس وو، خو یقین لرم چې له افغانستان سره په پوله کې لوړ رتبه افسرانو او جنرالانو د آمو سیند اخوا تیریدونکې پیښې له مسلکي پلوه په غور سره تعقیبولې. چې کله به مې په تلویزیون غنم رنګې څیرې او بې غمه افغاني ماشومان لیدل، د دسمبر د میاشتې واورو، باران او د خیلي

د فرقې د درستیزوال په توګه مې کافي کارونه درلودل. تقریباً ټوله ورځ به مې په پوځي کارونو تیریده. لنډه دا چې هغه وخت اصلاً د افغانستان په فکر کې نه وم. هغه وخت لا په دې نه پوهیدم چې د افغانستان په بیړه بدلیدونکي حالات به نه یوازې زما بر خلیک تریوې اندازې ټاکي، بلکه د یو ناسور ټپ په توګه به زما د سلګونو زرو هیوادوالو په یاد کې ژوندي پاتې کیږي.

د دسمبر په ۲۸ زه له نورو افسرانو او جنرالانو سره یو ځای د پوځي حوزې له قوماندانۍ نه د کلنۍ دودیزې جاج اخیستنې وروسته راستیندم. د دون پر څنډه پراته د رستوف ښارنه د خپلې د ندې ځای ته د الوتلو په وخت کې مو هغه معلومات څیړل چې تر دغه وخته یې لاس ته راوړل ممکن شوي وو. چا وویل چې تیره شپه زموږ پوځونه له پولې نه د افغانستان خاورې ته ورواوښتل. داسې ښکاري چې په بهرکې زموږ یو بل پوځي ټولګي د ځای پر ځای کېدو په حال کې دی. د تل په څېر دا ځل هم د پوځونو د لیږلو دلایل په مبهمه بڼه یاد شوي وو: له بهر نه د تیري په رفع کولو کې د دوست هیواد له خلکو سره مرسته او د خپلو جنوبي پولو ساتنه.

دې خبرې نه زه او نه هم نور افسران حیران کړل. یقین مو درلود چې د عسکرو د لیږلو لپاره کافي دلایل شته لنډه دا چې هغه وخت له موږ سره په الوتکه کې د ناستو افسرانو له ډلې نه څوک په دې خبره پوهیده؟ نه شم ویلی چې ولی، خو

۱۹۸۰ کال پیل شو. مطبوعاتو، راډیو او تلویزیون پر له پسې د شوروي پوځونو له ورتګ وروسته، په افغانستان کې د را غلیو بدلونونو کیسې کولې. هغه وخت مې له ځانه پوښتل: دا به تر څه وخته وي؟ هیڅوک د دې پوښتنې په ځواب نه پوهیده. د فرقې افسران خو لا څه کوې، ان د پوځي حوزو زیاتو قوماندانانو په افغانستان کې د محدودو شوروي ټولګیو د جوړښت او د ندو په هکله تصور او په دغه اړوند هر اړخیز او تر ټولو مهم حقیقي معلومات نه لرل. په داسې یو حالت کې موږ یوازې کولی شول په «بهرنیو راډیویي خپرونو» او آوازو تکیه وکړو. «مایکوپ» ته چې هغه وخت زما د دندې ځای و، د سر د لومړنیو زیانونو او زموږ د سریترو په وړاندې د وسله والو باندونو د ځناورتوب په هکله د اطلاعاتو بهیر را روان شو. دا زما لپاره بیخي د پوهیدو وړ نه وه، احتمال دا ډنډ وره غږیده چې افغانان زموږ دوستان دي....

د جنورۍ په ۱۶ د هغو دوه ورځینو پوځي تمرینونو په تیارۍ بوخت وم چې سبا سهار وختي پلیدونکي وو. د مازیګر د پنځو بجو په شا او خوا کې راته د قول اردو قوماندان تلفون وکړ. هغه داسې په وچ غوندې آواز وویل چې د دفاع وزیر دامر له مخې زه په کابل کې د میشتې یوې فرقې د درستیزوال په توګه ټاکل شوی یم. ما ته لارښوونه وشوه چې په څلورو ورځو کې باید ځان د ترکستان پوځي حوزې ته ورسوم او وروسته د تاشکند له لارې کابل ته والوزم. «خوځیږه، بریالیتوب دې غواړم» ، دا یې وویل او د تلفون غوږی یې کېښود.

پوښتنه مې ونه کړه، په نوې دنده زما د ټاکلو دليل څه دی؟ پخوا به چې کوم افسر په څه دنده گمارل کيده نو په بيلابيلو ذريعو به ورته معلومات رسيدل. ما ته هم داسې په نظر راغله چې خپل نږدې لرليد را ته روښانه بريښي.

زما دنده بده نه وه. البته برياوې او ناکامۍ يې هم درلودې، خوله دې سره سره مې د م.ف. فرونزې په نامه د پوځي اکاډيمۍ تر بشپړېدو وروسته د کنډک له قوماندانۍ نه د فرقې تر درستيزوالوسۍ پورې لار وهلې وه. ښايي له دې امله چې دومره اوږده لارمې په داسې کم وخت کې ووهله، يو وخت آوازه شوه چې زه گنې هسې ساده افسر نه بلکه د دفاع د وزير د يوه مرستيال وراره يم. هر څه چې وو خو مادې ته زړه ښه کړی و چې يوه ورځ به مې غواړی او راته وايي به چې د فرقې قوماندانۍ دې مبارک شه. ما ته ان خبر رارسيدلی و چې داسې پريکړه شوې ده، يوازې د فرمان صادر يدل پاتې دی. په دې خبره هک حيران شوم چې اوس داو سنی څوکۍ معادله څوکۍ او هغه هم خدای خبر په کوم ځای کې راکړی شوې ده.

دا ولې؟ که ريښتيا ووايم، دې خبرې په مابد ااغيزه کړې وه.

د شپې چې کورته راغلم، ښځې ته مې د نوې دندې خبر ورکړ. نه پوهيدم څه وخت به راستنيږم: مياشت وروسته که شپږ مياشتې. ويل شوي وو کورنۍ به له ځان سره نه بيايي او داخبره د هر افسر پر ښځه يو ډول اغيزه ښندي. له هماغه پيله، د افغانستان په هکله خبرو اترو، هلته له تگ نه ډير خوند درلود. چمتو والی

پرتاشکند د حقیقي ژمي وزرخور و . په هوايي ډګر کې ترکوزیدو درې ساعته

وروسته د ترکستان د پوځي حوزې دقوماندان ډګر جنرال یوري پا ولوویچ

ماکسیموف په دفترکې حاضر وم. هغه به سړه سینه او کراری ، په افغانستان کې

زما د ماتلونکي دندې هکله خبرې سل کړې. له خبرو یې برېښیده چې متین ،

روښانفکره او د پوره عقل خاوند سړی دی. دا لومړی ځل و چې داسې لوی

قوماندان مې پرنوروافسرانو مهربان، غمخور او د زیاتې اندازې صمیمي لیده ،

زما په نظر دا هغه چالپاره چې نامعلومې خوا ته روان دی له ارزښته ډکه خبره وه

د پوځي حوزې په قوماندانۍ کې مې د یوې ورځې په نرخ کې هڅه وکړه خپله نوې

فرقه ښه وپیژنم او د افغانستان په دیموکراتیک جمهوریت کې د حالاتو جاج

واخلم. د هیڅ شي په پوهیدو بریالی نه شوم، خو یوه خبره راته روښانه شوه: په

افغانستان کې بلا ستونزې دي او هلته خدمت کول له شوروي نه ډیر توپیر لري. د

حوزې په دهلیزونو او دفترونو کې له ما سره داسې خبرې کیدې لکه چې دا مو

وروستي کتنه وي ، که څه هم چا ښکاره اعتراف نه کاوه خو دا احساسیده چې ډیر

ژر به د سر او جنګي تخنیک زیانونه پیل شي. یعنې دا چې مخې ته جګړه پرته ده.

ما ټول هغه څه چې په افغانستان پورې یې اړه موندله، بې اختیاره د مرګ او

ژوندانه تر منځ یومنځني شي، یو منځنی مفهوم ګڼانه. کابل ته له الوتنې په

مخکې شپه مې په ښارکې د چکر وهلو پریکړه وکړه په کوڅوکې سرګردان

سرشوم، د کورونو ننداره مې وکړه

پوځیانو تر ټولو د مخه د کنډوالو په راسپړلو لاس پورې کړی و. هڅه مې وکړه، ځان په دغسې یوه منظر کې تصور کړم، خو ونه شوه:

زما د فکر مارغه د افغانستان د پاسه الوتنه کوله.

## تاشکند - کابل

سبا سهار زه په کابل کې وم. د جګړې ډګر ته لومړۍ الوتنه تل په یاد کې ژوندۍ وي. هغه پوځي هوايي ډګر چې وروسته وروسته یې د جنګ ځپلي افغانستان او زموږ د هیواد ترمنځ د هوايي پله د چوړولو اصلي بار پر اوږو ولوید، تاشکند ته څېرمه پروت دی. زموږ موټر د الوتکې د ځغاستې پر لیکه ودرید. دلته نور نږدې شل افسران هم الوتنې ته د چمتو الوتکې تر څنګ ولاړ وو. تقریباً ټولو یا تمانچه او یا ماشینګن درلوده، یوازې زما په ګډون څو تنه نوی د خپلو دندو لور ته تلل او ځکه نو بې وسلې وو. د ډګر په په کالو کې د چا رتبې نه معلومیدې، خو زه د ډګروالۍ په کالیو کې په بالا پوش کې نغښتی او له ګردې عسکري خولۍ سره له موټره کوز شوم. سمدلاسه مې خپل نامناسب حالت ته پام شو او ترکومه چې ممکن وه په پټه مې ګرده عسکري خولۍ لیرې او د ډګرخولۍ پر سر کړه. که دا خلک په دې پوه شوي وای چې زما لوی بکس کې لا جشني یونیفورم هم شته نو....

هیڅ پاسپورت او ویزه نه لرل. افغانستان ته تګ د بود لست له مخې تلل. په هغه اړې ګړۍ کې چې په لومړۍ سر کې موجود و، همدا ډیر بنه کار و. ځکه نو خو

همدې لست له مخې چې یو نقل یې په زمکه کې پاتې کیده، بې له ځنډه کیدای شول، د وژل شویو هویت مشخص کړای شي. ان اوس هم د هیواد دننه د هوا له لارې له یوه ځایه بل ته د پوځي ټولګیو د لیږدولو په وخت کې همدغه ډول په پام کې نیول کیږي. د لست له مخې، افغانستان ته د لیږلو طریقه تقریباً د ( ۱۹۸۰ کال) تر اپریله پر ځای وه، خو وروسته بیا پوځیانو، له شوروي پولې نه د تیرېدو په وخت کې ټول نړیوال منل شوي نورمونه په نظر کې نیول.

دا لومړی ځل و چې په ایل - ۱۸ ډوله طبي الوتکه کې مې سفر کاوه. په هغې کې د څوکیو پر ځای عادي طبي تذکرې ایښې وې. تقریباً ټول غلي ناست وو. یو نیم غړ به هم دا نجونو په شورماشور کې ورک شو، ځینو یوه سترګه خوب هم وکړ، یو نیم ساعت وروسته زموږ الوتکه په بګرام کې کوزه شوه. وروسته راته معلومه شوه چې دلته د کابل د شمال په شپیته کیلومترۍ کې د افغانستان دموکراتیک جمهوریت د هوایي ځواکونو تر ټولو لویه اډه پرته ده. د څلویښتم لښکر پیلوټانو هم وروسته له دې هوایي ډګر نه اساسي ګټه اخیستله.

زموږ الوتکې باید په بګرام کې له یوه ساعت زیات ځنډنه وای کړی. دالوتکې په خوله کې چې لا موږ ترې بهرنه وو راوتلی، جګړې زموږ هر کلی وکړ، هوایي ډګر ته بیخي څیرمه د سپکو او درنو ماشینګنو د پر له پسې ډزو آوازونو انګازې کولې. هیڅوک نه وو چې د ډزو علت ترې وپوښتو. ما دې خوا اخوا دیو امن ځای لټون پیل کړ چې د احتمالي یرغل په وخت کې ورته پناه یوسم، خو ډېرې نږدې

نوی زور له سره ونښتي، دلاسي بمونو د چاودلو آوازونه پورته شول. د دې ګونګ سرنوشت او بې دفاع حالت سخت ځورولم. موږ پاتې شو تنو چې باید الوتنې ته مو دوام ورکړی وای، اوس یوازې څلور ټمانچې او یو ماشینګن درلودل.

لږ وروسته د الوتکې پیلوټان چې د الوتنې د اجازې غوښتلو ته تللي وو. راستانه شوی. ویې ویل چې نن کابل ته د الوتلو اجازه نه شته. شپه باید همدلته تیره کړو. د الوتکې کشاف وویل: تیره شپه همدې ځای ته ځیرمه دښمنانو د یوې مخابراتي دستګاه د ټولو کارکوونکونه سرونه پرې کړي دي. ما د دې لپاره چې له لومړنیو انتباهاتونه مې ځان خلاص کړی وي د تیارې په خپریدو سره په هوایي ډګر کې د قدم وهلو نیت وکړ، خو ونه شوه: درې سوه متره لا له الوتکې نه ووم لیرې شوی چې یوه لوحه مې تر سترګو شوه: وړاندې تګ منع دی. ماینونه ښخ دي! راستون شوم او د الوتکې له قوماندان نه مې وپوښتل چې شپه به چیرته تیر وو؟ زړه مو نه غوښتل شا و خوا پرتې کومې شوروی قطعې ته لاړ شو. له بلې خوا چیرته مو هغه لټولې وای. دغه راز کیداې شوای سبا هره شېبه د الوتلو امر وشي. یو ښایسته دنګ افسر، په سرد تذکرو خوا ته اشاره وکړه، ویې ویل: ښه به وي د ننه په الوتکه کې، خو مخکې له مخکې خپله غاړه خلاصوم چې بالاپوش د یخنې چاره نه شي کولی.

رینښتیا هم الوتکه په لږ وخت کې سړه شوه. پیلوټانو د ځان لپاره بالښتونه او

په څه کيږي.

نږدې دوه ساعت وروسته پريشانې يووړم، خو ناڅاپه مې د چاچيغې تر غوږ شوې. چې يو پاڅوې، بل پاڅوی او زما نوم اخلې. معلومه شوه چې کله زموږ د فرقې قوماندان د الوتنې له ځنډيدو خبر شوی و نو په ما پسې يې له کابله زغره وال گاډی راستولی و.

ما د سترگو له کنج نه ساعت ته وکتل او نږدې وو چې ښکنځل وکړم: زغره وال گاډی، بې بدرگې و د شپې په غرونو کې، له دې نه (د غليم د ډزو لپاره) بل ښه هدف شته. امر مې وکړ د فرقې قوماندان ته خبر ورکړی چې سبا په الوتکه کې ځان وررسوم.

له دې وروسته خوب له سترگو کډه وکړه. له بلې خوا د هوايي ډگر له شاو خوانه له يو لنډ ځنډ وروسته ډزې له سره پيل شوې. زه ښه پوهيدم چې له راليږل شوی تورن سره د نه تگ له امله که ډارن راته و نه وايي نو بې هوډه خوبه مې خامخا بولي، خو اوس هم دا گڼم چې ما سم کار کړی و. د بلاخولې ته ځان ورکول، د څه لپاره؟ وروسته مې هم په افغانستان کې د پنځه نيمو کلو په لړ کې هيڅکله داسې نا سنجولې او عاجل تصميم و نه نيوه چې زما ماډونانو او خپله ما ته په کې د مرگ خطر وی.

په افغانستان کې لومړی شپه په ما بې خوبه تيره شوه. يخنې پر له پسې يرغل

راتاو شوي غرونه نه وولیدلی. سهار چې له الوتکې ووتلم، د هغو عظمت ته گوته په غاښ پاتې شوم. دراختونکی لمر په زرینو وړانگوکې د هغو ننداره زړه راښکونکې وه. دا له افغانستان څخه زما تر ټولو ژوره او تلپاتې خاطره ده: ددواړو برستن، غرونه، بیسارې پاکه هوا، سکون او د سباوون خاموشی، د تیرې شپې اندیښنو او د بې خوبۍ احساس په خپله کډه وکړه. زړه مې غوښتل ژوره ساه و باسم او له دې هر څه سره سره له ژوندد خوند واخلم.

وروسته څو ځله بگرام ته لاړم، خو د هغې ورځې احساس بیا هیڅکله راستون نه شو. ښایی لومړنی خاطرې مې ځکه د اوږدې مودې لپاره په ذهن کې حک شوې چې د طبیعت ښکلا را نه عقل وړی و. څو ورځې ورسته ما همدا غرونه څیړل، خو د یوې وسیلې په توگه: هغه مې د دې لپاره په کا رو چې عسکر او پوځی وسایل په کې ونغاړم او تر وسه وسه یې پټ کړم، څو کې یې لاندې کړم او د دښمنانو د ډزو مخه ونیسم.

... د الوتکې قوماندان راغی، ویې ویل چې په پای کې یې مونږ ته د الوتلو اجازه راکړه. ډیره موده انجن همداسې چالان و، خو الوتکه له ځایه نه شوه خو ځبدلای. ځکه بیگانی یخنی د هغې ټایرونه په زمکه پورې کلک نښلولی وو. په داسې حال کې چې پر ځانو خندل، بیرته له الوتکې راکوز شو او له پیلوټانو سره مو له ټایرونو نه د کنگل په جلاکولو کې مرسته وکړه. اىله څلویښت دقیقې وروسته هوا ته پورته شو.

قرارگاه ته لاړو. په لاره مې په شوق سره دنا اشنا ښار ننداره کوله. دواړې دواړو غاړو ته خړ خړ یو پوړیز کورونه ودان وو او کله کله به کومه ښکلې ماڼۍ یا کور په نظر راغلل. هرې خواته تود بازار پرانیستی و. ډیرو خپل شیان سم په مخکه غوړولي وو او په ختیځو حرکاتو یې خلک پیرودلو ته رابلل.

ماشومان په نظر راغلل چې ډیرو یې بې جرابو کلوشې په پښو کړې وې، لکه چې هغوی دا احساس نه کاوه چې په واوروکې گرځي.

په لومړي سرکې راته ښکاره شوه چې په ښارکې اصلاً ترافیکي قواعد نه شته. دوه ځلې نږدې وو ټکر وکړو: یو ځل له یوه ټیوټا موټر سره چې شپږ تنه په کې ناست وو او بل ځل له یوې لارۍ سره چې په یوبل پورې نښتې نږدې پنځوس بزگران په کې سپاره وو. پر کابل له تیریدو وروسته دامین ماڼۍ ته ورسیدو.

ددسمبر دجگړو په ترځ کې دې مجللې درې پوړیزې ودانۍ ته ښه زیات زیان رسیدلی و. ترهغو چې زموږ سرتېرو دامانېي او ورسره جوخت یو دوه پوړیزه سراچه چې وروسته په کې دتلفون سوچبورډ ځای پرځای کړای شو، ترمیمول، دپوځ قرارگاه په موټرو او حکومتي ماڼۍ ته څېرمه دیوې مصنوعي غونډۍ په لمن کې په پرانیستل شویو خیمو کې ځای پرځای شوه. که دصحرایي ژوندانه ستونزې په پام کې ونه نیول شي، نو دا زموږ لپاره ډیر مناسب ځای و. دافغانستان ددفاع وزارت همدلته د دارالامان په ماڼۍ کې دموټر په مزل پنځه دقیقې لرې موقعیت درلود.

ته پیاوړی کیده. په لومړی سر کې له زغره والو ګاډونه جوړو څوپوستو دادنه د په
غاړه درلوده، خو دڅلویښتم پوځ پرقرارګاه ددښمنانو دلومړینو یرغلونو په وخت
کې چې دمارچ په میاشت کې وشول، څرګنده شوه چې قوماندانی او مخابراتي
وسایل پوره په امن کی نه دی.

په ډیروشیانو بیا یوځلی کتنه وشوه. په یو پراخ ډګر کې چار چاپېر له لیرې
کنترولیدونکی ماینونه وکرل شول او په منځ کې مو کوچنی کوچنی خوښې سمبال
پوځی چونی راجوړې کړې. دڅارنې لپاره موځانګړی سیستم جوړ کړ. له قرارګاه
نه څو ساتونکی کمربندونه راتاوشوی وو. یو لوی بهرنی کمربند وچې دمحدودو
پوځی قطعاتو تولو قوماندانی یې په غیږ کې رانیولې وه او نور دننني کمربندونه
وو چې هرې ودانۍ ته نږدې په پام کې نیول شوی وو.

دمحدودو پوځی قطعو قوماندانۍ ته دننوتلو په وخت کې به دپیژندنې پاڼې په
غورکتل کیدې. مخکې له دې چې دڅلویښتم لښکر دقوماندان تورن جنرال یوری
ولادیمیروویچ تورخارینوف دفتر ته چې په یوه واګون کې ځای پرځای شوی و،
ننوځم، له راسره ملګری افسرنه مې وپوښتل چې چیرته کولی شم ډیره وخریم.

له قوماندان سره زما خبرو له پنځلسو دقیقو نه زیات وخت ونه نیوه او هغه
دخبرو له هغه چوکاټه ونه وت چې معمولاً دنوی راغلی افسر لپاره په پام کې نیول
کیږی. هغه به کله کله بلې خواته پام اړاوه: یا به یې په تلفون کې خبرې کولې

ځړیدې او هم پر میزو نوخپرې وې. دقوماندان سترګی پړسیدلې وې او داسې بریښیده چې ډیر لږ خوب کوی.

دجنرال توخارینوف ځیره دسړی ژر په یاد پاتې کېده. دی چې په ځوانۍ کې یې دنګه او نری ونه درلوده، په پنځوس کلنۍ کې بیخی کړوپ شوی و. هغه وخت چې زما پیژندګلوی ورسره وشوه، دی ډېر خوار او ظاهراً دون کیشوت ته ورته و.

له قوماندان سره زما لومړنۍ خبرې ناڅاپه غوڅې شوې. هغه له مانه پوښتنې شروع کړې چې ولې دانضباط ټولی قوماندان چې هوایی ډګرته زما مخې ته راغلی و، دومره ډیر شراب څکی. زه په دې خبرو حیران غوندې شوم او غوښتل مې اعتراض وکړم، ځکه چې ما لا په خپله فرقه کې یو دقیقه هم نه ده تیره کړې، خوبیا مې فکر وکړ، قوماندان هم تریوې اندازې حق وایی. وروسته چې به کله داخبرې رایادې شوې نو په خیال کې به مې له جنرال تورخارینوف نه مننه وکړه چې زه یې په هماغه پیل کې «زمکې ته راکوز کړم»

کله چې دموټر خواته بیرته راستنیدم نو خپل دلارې ملګری ته مې لاندې باندې وکتل. ددې تورن لا په خیال کې هم نه ګرځیدل چې زه یې له ګناهونو نه وختی خبر شوی یم. یو داوونۍ وروسته ما دانضباط دټولی دغه قوماندان بیرته شوروی ته راوشاړه.

جنرال تورخارینوف، افغانستان ته دشوروی پوځونو دلیږلو تروخته دترکستان دپوځی حوزې دقوماندان دلومړی مرستیال په توګه دنده ترسره کوله.

په پلانونو کې موجود و. تاکل شوې وه که دغه لښکر عملاً منځ ته راځي نو قوماندانی به یې د ده (د پوځي حوزې د قوماندان د لومړي مرستیال) په غاړه وي. په نظر کې وه چې اداري پرسونل به یې هم د پوځي حوزې د قرارگاه له افسرانو نه غوره کیږي.

جنرال تورخارینوف د څلویښتم لښکر د تشکل په سخت پړاو کې، چې افسرانو ایله اوس د حقیقي جګړې له شرایطو سره اشنایي پیدا کوله، د هغه قوماندانی په غاړه لرله. هغه مجبور و د پوځ د لارښوونې پیچلی میکانیزم له هیڅ نه راجوړ او دقیق فعالیت ته یې اړم کړي.

توخارینوف د جون ترمیاشتې په افغانستان کې پاتې شو. دا نو هغه وخت دی چې موږ سم په جګړه ورگډ شوي یو او ماهم څوځو ځله په هغو کې برخه اخیستې ده. د مارچ په میاشت کې مې لومړی «جګړه ییز فعالیت» د همده په امر ترسره کړی و. په میدان ښار کې مو دوسله والو ډلو له لاسه ورغ بده وه. دا ښار د کابل د جنوب په اووه (ښایي اویا وي؟) کیلو متری کې پروت دی. له دغه ځایه تل د څلویښتم لښکر قرارگاه او د ښار جنوب لویدیځې څنډې تراوړ لاندې راتلې. توخارینوف د قوماندانی پرڅوکی، په یو وخت کې د څو عملیاتو لارښوونه کوله او د هر قوماندان کړه وړه یې ډیر سخت څارل. کله کله به داسې جزئیاتو ته هم ورننوت چې د قوماندان لپاره اصلاً په کار نه دی. مثلاً میدان ښارته لانه یو ننوتی او د عسکرو

– هله ژرشه دنقشې له مخې راته ووایه: دتوپچي مخکنی لیکه چیرې دد؟ لومړنی ټولۍ چیرته ځای پرځای کوئ، دوهم؟...

په کار وه چې ټول کوردینات ورته وویل شي. په لومړي سر کې مو دده داقیمومیت ښه نه ایسیده، خو چې بیا وروسته ورسره بلد شو، نو افسرانو به له مخکې دده لپاره بشپړ توضیحات راټولول.

جنرال توخارینوف په داسې کولو سره سمه لار نیولې وه. پرته له دې به زموږ دسرزیانونه په هماغه لومړي سرکې څوځله زیات وای.

د ۱۰۸ فرقې قرارگاه چې زه په کې مقرر شوی وم، دځلویښتم لښکر دقرارگاه په مقابله څنډه کې وه. په شوروي کې مې عادت کړی وچې هره قرارگاه، په تیره بیا دفرقې، باید وځلیږي. خودلته موله څو زړو خیمواو موټرو پرته چې دغره په لمن کې په ډیره نامناسبه بڼه خواره واره ولاړ وو، نور څه نه لرل.

قوماندان له خپلو څو مرستیالانو سره په لاري موټرو پورې تړلو واگونونو کې ژوند کاوه. په هغو کې ځانگړې دستگاوې لگیدلې وې. نور افسران په کیږدیو کې اوسیدل. په دغسې یوه کیږدۍ کې ماهم واړول. کله چې مې وپوښتل کوم کټ وزگار دی: ماته یې په دې خاطر چې نوی راغلی یم، په دویم پوړ کې ځای بیل کړ. بیخي دکهنه گیانو او نوکیانو قاعده ټینگه وه. مجبور شوم نظم ټینگ کړم: یو ډگرمن (زما پرځای) وزگار کټ ته ولږدیده. لرگی نه وو، ځکه مو بخاري په تیلو تودوله. ځان ته په هنداره کې له کتاب څخه ...

په لومړيو دريو څلورو مياشتو کې مو اساسي خواړه کانسروه وه. که چيرې به کتار روغ رمتې راورسيد (معمولاً داسې کتارونه تر يوې نيمې اوونۍ په لاره کې پاتې کيدل) او موږ ته به يې له ترمز غوښه راوړې وه، نو په موږ به اختر جوړ شو. په ځينو خيمو کې دلوړ رتبه افسرانو، ورو صاحب منصبانو او سرتيرو لپاره ميزونه هم ايښودل شوي وو. په يوه ديگ کې دټولو لپاره پخلى کيده او دټولو خواړه يو ډول وو.

زموږ دفرقې قوماندان ډګروال واليري ايوانوويچ ميرونوف و، موږ دسوورف دحربي پوهنتون ددورې ټولګيوال وو. يوبل موله پخوانه پيژندل او يو دبل په نيمه خبره پوهيدو. کله چې مو په کابل کې سره وليدل، نو ښه شيبه يوبل ته ورغاړې وتو.

دهمده له خولې نه مې په عمومي ټکو کې، افغانستان ته دپوځونو دليږلو څرنګوالي اوريدلى و. ګواکې يو کال ددې لپاره تياري روان و. څوځله دترکستان دپوځي حوزې پرسونل ته دتيارسئ او دکوشک پنځمې او دترمز ۱۰۸ لمبر فرقې ته دلومړۍ درجې احضاراتو امر شوى و. ددغې حوزې په درستيزوالي پورې مربوطو تأميناتي قطعو لکه توپچي، استحکام، مخابرې او کشف دجګړې دوخت په شرايطو کې ژوند او کار کاوه. يوه ډيره ستره پوځي حوزه په خوځيدو راوستل شوې وه. وار په وار داحتياط له دورې نه زرګونه کسان بيا احضاريدل. له بلې خوا سرتيري له ځانګړي وخت نه زيات په قطعو کې ساتل کيدل او دا دهغوى

کار له سره پیل شو. ځو ځله همداسې وشول.

دنوامبر په میاشت کې بیا دتیارسئ امر شوی و. قطعې له معمول نه اوږده موده همداسې تیارسئ پاتې کیدې. د دسمبر په ۲۵ شپه (چې سبایې ۲٦و) له پولې نه دتیریدو امر وشو. دقواو له لیږلو څو ورځې مخکې له ځو افسرانو سره په ډیره پټه توگه ځانگړی تمرینات ترسره شول. له سیمې سره دبلدتیاله پاره دفرقې دقطعو قوماندانانو په هلیکوپترو کې دشپې له تیارې نه په گټې اخیستو سره، له پولې هاخوا دافغانستان خاوره او هغه لارې څیړلې چې باید لښکرې پرې تیرې شی. په خپله اصلی عملیات په بیړه را پیل شول: ۱۰۸ او پنځم لمبر فرقې دترمز او کوشک له لورې او ۱۰۳ لمبر کوماندویی فرقه دهوا له لارې سوق شول.

د ۱۹۷۹ کال ددسمبر تر پایه افغانستان ته دنږدې سرتیرو زیاته برخه داحتیاط له دورې نه راټوله شوې وه. دغسې ضد او نقیضې پریکړې زما په نظر څو دلیله درلودل: افغانستان ته دلیږلو لپاره دمکلیفیت ددورې سرتیرو، وړوضابطانو او افسرانو زیات شمیر په کار و، خو دترکستان پوځی حوزیې لا له پخوا نه په دې برخه کې زیات کمبود درلود. دشوروی اتحاد ددفاع وزارت ته یو ځل بیا وخت ورکړ شو چې په افغانستان کی زموږ دشته والی موده دوروستی ځل لپاره په دقیقه توگه وټاکی. که چیرې هماغه له پیله مسلکی افسران او سرتیری افغانستان ته لیږل شوی وای، نو هغوی به سمدلاسه دپوځی خدمت دترسره کولو دمقرراتو دتطبیق غوښتنه کوله لکه: مادی امتیازات، په پوځ

ورکړې نه عاجزو.

داحتیاط ددورې سرتیرو او افسرانو په افغانستان کې خپله ښه پوځی وړتیا وښودله، ټول د پاخه عمر خلک او د کډو او بچو خاوندان وو. داحتیاط ددورې پوځیان، دمکلفیت ددورې په انډول تجربه لرونکی وو او ډیر ښه پوهیدل چې هلته دتمرینا تو لپاره نه دی تللی، بلکه اوضاع ښه نازکه ده، موږ باوری وو چې ددغې دورې هیڅ سرتیری به د پهرې په وخت کې نه ویده کیږی او خپله قطعه به نه خوشې کوی.

پرځلو یښتم لښکر دمخالفینو گوزارونه دوخت له مخې یوځه شاته وغورځیدل او لومړنی یرغلونه د ۱۹۸۰ کال د پسرلی په پیل کې شروع شول. افغانانو زموږ دلومړیو قطارونو تود هرکلی وکړ. شوروی تاجکو او ازبکو هره خوا سیمې له وګړو سره خبرې کولې. هغوی چې څومره کولی شول، داخبره روښانوله چې افغانستان ته دجګړې لپاره نه دی راغلی. په دې خبرو به باور هم کیده، خو کله چې خلک پوه شول، موږ داوږدې مودې له پاره بستره هواره کړې ده، دخلکو چال چلند له موږ سره بیخی بدل شو.

داحتیاط ددورې دسرتیرو وروستیو ډلو، په موټرو دیرغلونو، کلابندیو او ډزو خوند ولیده. دفبرورۍ په پیل کی دښمنانو دګزمې یوموټر چې له کابل نه بهر دیوې لارې څارنه یې کوله، په ډزو سوری سوری کړ. په موټر کې ناست لس سرتیری، چلوونکی او یو افسر چې دڅو اوونیو لپاره داحتیاط له دورې نه جلب

احتیاط والا کورته په شوق ستنیدل. ددوی وروستی ټولګی دوه میاشتې وروسته له افغانستانه ووت. دا په دغه هیواد کې زموږ دحضور ترټولو آرامه دوره وه.

## لومړنی جګړې

د ۱۹۸۰ کال جنوری په څلویښتم لښکر نسبتاً ارامه تیره شوه. دکال له پیله دافغانستان ټول عمده ښارونه، چې زموږ پوځی چونی په کی اباد شوې وې او لویې لارې لکه: ترمز - سالنګ - کابل، جلال آباد، ګردیز او کوشک - هرات، شینډند - کندهار (په لویدیځ کې) دشوروی لښکرو تر کنترول لاندې راغلې.

خو دمیاشتې تر پای اوضاع په خرېدو شوه. ددې خبرې یو علت شوروی ضد تبلیغاتو، چې په مهارت سره دافغانستان په ټولو خلکو کې ترسره کیدل. په هر کلی او ښارګوټی کې خلک زموږ خلاف لمسول کیدل. کابل هم دمخالفینو لپاره په ټرلې سیمه بدل نه شو. سره له دې چې انقلابی حکومت دلته واکمن و. سربیره پر دې په کابل کې شوروی ضد احساسات لازیات پیاوړی و.

د «ملحدانو» خلاف تبلیغات په بې ساری توګه اغیزمن وو. ان دجنوری په دریمه لسیزه کې شوروی پوځونه ترلو مړنیو بریدونو لاندی راغلل، که څه هم هغه نه ډیر منظم اونه ډیر پیاوړی وو.

هغه خوب چې افغانی مشرتابه لیده او دغه راز دځلکو له خوا دانقلاب دملاتړ او دشورویانو دحضور په مرسته دهغه دپایښت هیلې هسې سراب راوختلې.

لپاره نااشناوو ، ولېږل شو . ډېر وخت په کار و چې مونږ مثلاً ددوی له ملي ځانګړنو
سره بلد شو . داسې ګڼل کېده چې افغانستان له لويديځ او شمال پر ته د پښتنو وطن
دی چې په ټوله دغه خاوره کې د کوچيتوب ژوند تيروی. پښتانه دافغانستان د
۱۷ يا ۱۹ ميليونو وګړو اصلي برخه جوړوي. خوشکلرم چې له چا سره دې په دې
هکله دقيق ارقام موجود وي ، ځکه وروستی سر شمېرنه دلته نږدې سل کاله
مخکې ترسره شوې او د نوې ترسره کېدل اوس بيخي شونې نه دی.

پښتانه قبايل په دوو برخو دافغانستان د ويشونکې غرنۍ سلسلې - هندوکش
جوړ ته هست دی ، دوی د دغه هيواد په حالاتو تل ژوره اغېزه لرلې ده. همدا
پښتانه وو چې د مقاومت غورځنګ يې پيل او وسله والې ډلې يې سمبال کړې.
زمونږ د محاسبې له مخې هر دريم مجاهد چې د خلق پښتم لښکر خلاف جنګېدلې ،
پښتون و . پښتنو د خپل خوځند ژوندانه له برکته چې دوی ته ې دډېر وشيانو
دليدلو ، اوريدلو او پوهيدلو وس ورکاوه ، د نورو وګړو مثلاً دافغاني ازبکو او
ترکمنو په تناسب ، دهيواد د حالاتو د ناڅاپي بدلون په وړاندې ډېر چمتو والی
درلود .

وسله والې نښتې د جنورۍ په وروستيو ورځو کې پيل شوې او له يوې اوونۍ نه
يې بلې ته زور اخيست . زمونږ څنګ ته يوازې حکومت او سيمه ييز واکمن يعنې
دببرک کارمل له خوا ټاکل شوی خلک ولاړ وو .

دمخالفينو فشار ، خبر د ی ځای ته ورسوله چې دفبرورۍ په شلمه په کابل کې

پرتې چونې دسیمې دوګړو له خوا کلابند کړای شوې. په تیره بیا دشپې حالات ډیر خرابیدل. دپیښو ترټولو سخته ورځ دفبرورۍ ۲۳ وه. پرکابل راګرځیدلې شوروی قشلې او پوستې دمخالفینو تر پرله پسې ډزولاندې وې. دسالنګ دلویې لارې په ګډون ټولې اطرافی لارې بندې شوې او دخوړو رسول په ټپه ودریدل. دننه په پایتخت کې موټرې په بل مخ اړول کیدې، اور ورته اچول کیده او دمور چلو جوړیدل روان وو. له دغو اغتشا شونو نه دشوروی پوځونو دحضور په وړاندې دسیمې دخلکو کرکه ښه ثرګندیده.

حالات له دې امله نورهم خرابیدل چې (ثلویښتم) لښکر په سلو کې داتیا پرسونل په لرلو سره چې د احتیاط له دورې نه جلب شوی وو، نه شول کولی فعالو اقداماتو ته لاس واچوی، دجنورۍ په پای کې دهغوی ځای مسلکی پوځیانو ته ورکول شروع شول. دننه په خپل هیواد او په بهر کې دشوروی پوځونو په منځ کې ښه تکړه مسلکی کادرونه غوره او سمدلاسه افغانستان ته لیږل کیدل. دکشف په ګډون دثلویښتم لښکر یوشمیر ځانګې چې موقتاً دترکستان دپوځی حوزې له افسرانونه راجوړې شوې وې، غیر فعالې وې. دجاسوسانو شبکه همدا اوس دجوړیدو په حال کې وه، نو ځکه ددې پر ځای چې غوځ حقایق او معلومات په لاس کې وی، مجبور وو دافغانستان دحکومت له خوا په تیار و شویو ګونګو او مبهمو معلوماتو بسنه وکړو.

لومړی داخبره په ډاگه کړه چې محدود پوځی قطعات په « دوستانه چاپیریال » کې نه بلکې دهغې پرضد محیط کې پراته دی. په جنوری او فبروری کې زموږ دسرتیرو مرگ دځلوینښتم لښکر مشرتوب اړ کړ چې دقطعو امنیت دحقیقی جگړې له شرایطو سره سم سمبال او تأمین کړی.

دې مسألې په لومړی سر کې په هغو کسانو پورې اړه پیداکوله چې له قشلونه بهر دافغانستان د لویو لارو په ساتنه بوخت وو. ددغو لارو په اوږدو کې دکشف څو ډلوته دنده وسپارل شوه چې دپوځی علومو دټولو قواعدو په پام کې نیولو سره زموږ دپوستو دځای پرځای کولو لپاره ډیر مناسب ځایونه غوره کړی. په ځانگړی ډول دهمدې لپاره دکوبیشوف په نامه دپوځی اکاډیمی غوره جنرالان او افسران او دغه راز ډیر ماهر پوځی انجنیران له مسکونه راوغوښتل شول. څو تنو راغلو ډگروالانو دپوهاندی رتبې درلودې. له دوی سره اوږه په اوږه دهغو قطعو افسران په کار بوخت شول چې د لارو بیلا بیلې برخې یې دمسؤولیت په ساحه کې وې. دیوې ډلې مشری زما په غاړه وه. موږ له کابله تر سالنگه او له هغه ځایه دشوروی اتحاد په لور نوره سل کیلو متره لار ووهله. دختیځ لوری لپاره دلارې همدا برخه اساسی گڼل کیده.

دکابل له څنډونه مو له بیلابیلو برخو دلارې څیړنه پیل کړه، ځکه چې دلارې په همدې برخه کې څوځو ځله په قطارونو ډزې شوې وې. په کار وه چې پوستې ښې

شیله کې پرته ده، اړبه شو چې په ړندو سترګو ډزې وکړو. دیوې اوونۍ په ترڅ کې مو دخپلې لارې په اوږدو کې ټولې لوړې اوژورې وکتلې او دکارپوهانو په مشوره مو دپوستې دجوړولو او دډرانده ماشینګڼ دځای پرځای کولو لپاره مناسب ځایونه غوره کړل.

دځلوینښتم لښکر قوماندان جنرال توخارینوف زموږ رپوټ په غور ولوست او تائید یې کړ. په یوه میاشت کې دمحافظ سیستم جوړیدل پای ته ورسیدل. له تیږونه مو پوره قوي تأسیسات جوړ کړل. دسرتیرو لپاره کوچنی کاغوشونه داسې جوړ کړل چې ان دتوپ دګولۍ دمخامخ لګیدو په وختکې هم څوک زیان من نه شي او خپله کاغوش ته په کې هم کوم زیان ونه رسیږي. په ځینو ځایونو کې دځان لپاره دکوچنیو حمامونو په ودانولو بریالي شولو. که دصحرایي پخلنځي دجوړولو امکانات به نه وو، نو خواړه به موله بل ځایه ۰ (پوستو) ته وروړل.

په تېرو، کې دمور چلو جوړول ډیر ګران کار و. دهرډلګۍ یا ټولۍ دمسؤولیت په ساحه کې دپرتې لارې دامنیت دساتنې لپاره مو داسې لارې چارې وموندلې چې سرتیرو ته په کې له مورچلونه دبهرو تلو اړتیا نه پیدا کیدله. موږ هغه دچا خبره په غرونو کې ورننوتلو او دبنیادم دونې په اندازه مو په کې خندقونه وویستل. په دې خندقونو کې دځغاستې په وخت کې سرتیری بې له دې چې دښمن یې ولیدلی شي، له پوستې نه مورچل ته رسیدلی شول. له ترمزه تر کابله د «ژوندانه په لاره» اصلي

کې چې د تېرو کیندل ممکن نه وو ، نو مورچلې به له ډېرونه داسې جوړېدې چې له چت
نه یې هرې خواته د ډزو لار خلاصه وي. دجګړې په وخت کې به سرتیرو خپلو
هاوانونو ته ځان رساوه او ځارونکو به ورته دقیق کوردینات په ګوته کول. غالباً به
سیمه له مخکې نه په ډزو سورې سورې کېده او یو – دوه دقیقې وروسته به
د (هاوانونو) ډزې پیل کېدې. دلارې لیرې پرتې څنډې په اوږده واټن
ویشتونکو توپونو ساتل کیدې.

البته وروسته وروسته دجګړې په لړ کې (په دې نقشه کې) لازمې سمونې
راغلې. دراتلونکې کال په ترڅ کې مو خپلې خطاوې درک کړې، خو دټولو شیانو
له سره جوړول شونې نه وو. دښمنانو خپله غیر معموله یرغلیزه طریقه درلوده.
هغوی به زیاتره له هغه لورې یرغل کاوه چې لږ به ورته پام ساتل کیده. دوخت په
تیریدو سره مو دنورو ټانکونو ، زغره والو ګاډو او وګړو په مرسته ځینې پوستې
پیاوړې کړې او هغه پوستې مو بیخی له منځه یووړې چې دسرتیرو دسرساتنه په
کې ممکنه نه بریښیده خو بیای هم دلارې دساتنې اساسی سیستم له ځینو بدلونو
سره سره دټولو نهو کلو په لړ کې داډمن کارکاوه.

حالات له یوې ورځې نه بلې ته خرابیدل. دجنورۍ په پای کې دزمکنیو پوځونو
لوی قوماندان سترجنرال پاولوفسکی کابل ته راغی. هغه د ۱۹۷۹ کال له جولای
نه تر دسمبره پورې څو واره کابل ته تللی او راغلی و او هروار چې به مسکو ته

دود په افغانستان کې زموږ د حضور تر پایه په پام کې نیول کیده. همدا
پاولوفسکي وچې لومړی ځل یې موږ ته ( په ډاګه کړه ) چې د څلویښتم لښکر مخی
ته په افغانستان کې جنګیدل پراته دی. هماغه وخت د جګړې لپاره چمتو والی
پیل شو: داحتیاط د دورې سرتیرو او دوسلو زړو ډولو خپل ځایونه نویو ته
پریښودل. افغانستان ته ننوتلو فرقوته د ت- ٥٥ ډوله ټانکونو پرځای ت- ٦٢ او
ت- ٦٤ ډوله ټانکونه او دغه راز نوې سپکه وسله را روانه شوه. په دوی کې ا. ګ
. س- ١٧ ډوله توغندي ویشتونکي هم راتلل چې وروسته ترې د شوروی اتحاد په
کورنیو شخړو کې پراخه ګټه اخیستنه پیل شوه. دا لا هغه وخت دی چې موږ نه
پوهیږو، چیرته باید په جګړه کې ونښلو، خو دامو احساسول چې جګړې به ډیر ژر
پیل کیږی.

د پاولوفسکي له راتګ یوه میاشت وروسته د فبرورۍ په پای کې د فرقې
درستیز والي ته رسماً امر وشو چې د فرقې د مسؤولیت په ساحه کې د پلان شویو
جګړه ییزو عملیاتو د سرته رسولو لپاره چمتووالی ونیسی.

مخالفینو په یوه لنډه موده کې د حیرانتیا وړ ستر کارونه ترسره کړل. تقریباً ټول
افغانستان نه یوازې د «ببرک کارمل د رژیم»، بلکه په هیواد کې د میشتو شوروی
سرتیرو خلاف ودرید. د ١٩٨٠ کال په پیل کې له شورویانو سره د اوږه پر اوږه
کارکوونکو افغانانو له منځه د جاسوسی داسې پیاوړې شبکه جوړه شوې وه چې
اوږده کلونه یې بې ځنده کار کاوه. د مخالفینو د جګړې ...

هیڅ پریکړه نه کوله. موږ پوهیدو چې که ددوی لاس ته هر سند ورغی، سبایې خامخا دښمنانو ته سپاري، خو موږ له دې کاره، ناچاره وو. په مقابل کې مو هڅه کوله (دوی ته) داطلاعاتو دورکولو شمیر ترمخکنې اندازې راټیټ کړو. بله چاره نه وه: پرته له دې به دافغانستان دټولو ستونزو پړه پر موږ راپریوتې وای.

دببرک کارمل درژیم او زموږ دلښکرو لپاره لوی خطر هغو مخصوصو باندونو پیدا کاوه چې له پاکستانه راليږل کیدل. دهغوی له خپل هیواد نه ددفاع په ترڅ کې، دخپلو هغو هیوادوالو په بیرحمانه وژلو سره، چې یوازې د نظرله پلوه دانقلابي رژیم او یا شوریانو پلویان گڼل کیدل، خپل هیواد ته له ځانه سره وینې هم راوړلې، نو ځکه په غټو ښارونو کې دپوځي چوڼیو، لویو لارو او دبگرام او شینډنډ دهوایي اډو دساتنې ترڅنگ موږ اړ شو چې دافغان-پاکستان پوله هم ترپوې اندازې وتړو. دا اسان کار نه و: ددغو هیوادو تر منځ حقیقي پوله نه وه او نه شته. «دډیورنډ فرضي کرښه» چې په غرنیو سیمو کې تېره شوې او دپښتنو کوچیانو دبې خنډه تگ راتگ سیمې یې سره ویشلې، دپولې په نامه یادیږي. ډیر ځله دیوې قبیلې دوې برخې په دغو هیوادو کې یوله بل جلا کړای شوې دي. سره له دې چې پاکستان له ختیځ، جنوب او یو څه هم له جنوب لویدیځ لوري دافغانستان خاوره احاطه کړې ده، خو دشوروي پوځیانو دحضور په وخت کې له جلال آباد نه دپولې خواته عملاً یوې لارې فعالیت لاره چې هغه دتورخم لاره وه.

دخولینښتم لښکر دقوماندانۍ لارښوونه ترلاسه کړه، ددې عملیاتو موخه دا وه چې موږ باید دجلال آباد له شمال ختیځ لوری دافغانستان - پاکستان دګډې پولې په اوږدوکې دیوه پیاده غنډ په ملګرتیا دکوچنی ښارګوټی اسعدآباد پرلور دهغه ځای دیوازینی سړک پرسرتېر شو. په دغه ښار کې پرته چونۍ او دغه سړک له کلا بندۍ نه خلاص او دوسله والو مخالفو باندونو خلاف جګړییز عملیات وکړو.

دجګړییزو عملیاتو په سیمه کې یو هوایی ډګر - دجلال آباد په ښارکې - پروت و، چې یوازې د ان ۲۶ ډوله الوتکو په څېر کوچنۍ الوتکۍ په کې کښیناستلی شوې. موږ اړ وو چې ښه ډیر دسون مواد، مهمات او نور شیان له ځانه سره ولیږدوو. په قطارونو کې دهغو رسولو څکه امکان نه لاره چې ددې کار لپاره ډیر ځواک او ساتونکو ته اړتیا وه.

دغې جګړې ته کلک تیاری پیل شو او زیاته تکیه په هغو شیانو کیده چې موږ ته یې په پوځی ښوونځیو او اکاډیمیو کې رازده کړی وو. دجاسوسی شبکې هم فعالیت پیل کړ. تردغه وخته موږ هم دافغانانو په منځ کې خپل سړی پیدا کړی وو خونه شم ویلی چې دجاسوسۍ کومه پراخه شبکه موګنۍ تر دغو شیبو رامنځته کړې وه. هوایی اکتشافاتو له موږ سره پوره مرسته وکړه: له هوا څخه په اخیستلو شویو عکسونو کې دهغې لارې پر سر پراته خنډونه روښانه بریښیدل چې موږ پرې باید تېر شوی وای، خوله څو ورځو وروسته چې جګړه ښه توده شوې وه، روښانه

فصل یوازې په لویدیځه برخه یا اروپا یی سیمو کې په درد خوري. دلته په افغانستان کې موږ ډیر شیان په تګ – تګ کې زده کړل. له تجربو او تیروتنو سره ورو ورو پرمخ روان وو.

دبیلګې په توګه: دپلی نظام په جوړولو کې یوه برخه ده چې دحرکت دتأمینوونکې ډلې په نامه یادیږي. دا عمدتاً داستحکام چیانو ډله ده چې دټانکستانو او یا پلی ځواک په ملاتړ دځانګړیو وسایلو په مرسته مخې ته ځي، لارې ګودرې پاکوي او دغلیم کوچنی کوچنی ډلې له منځه وړي. نور اساسي ځواک په هغوی پسې ترشا روان وي. دافغانستان په ځانګړتیاو او ددښمنانو په تاکتیک دنه پوهیدلو له امله موږ دقطار په سر کې یولوي بې زغرو ګاډي روان کړي و، ټول شیان مو دعلم له مخې ترتیب کړي وو، مګر له یوه شي پرته: موږ په دې نه پوهیدو چې دښمنان په لوی لاس دلارې په تنګه برخه کې خنډونه جوړوي، کله چې موږ دغه لومړني خنډ ته ورسیدو، دښمنانو دغه ګاډي وویشت او له کاره یې وغورځاوه. موږ دخپلې تخنیکي وسیلې له لاسه په تنګه لار کې ایسارشو. دهغه ځنګ ته دتیریدو هیڅ لار نه وه. مجبور شو درې ته ورکیوزو.

داهم راته معلومه نه وه چې مجاهدین کولی شي، دپنځوسو مترو په اوږدو، په لاره دهسک شوي غره یوه برخه داسې وچوي چې تابه ویل (لاره نه وه) او دا همداسې دغره ادامه ده. دتیریدو لاره ورکه شوه او شک نه شته چې ټول قطار

لومړی سر کې تقریباً موږ ټول نه پوهیدو چې په داسې یو حالت کې څه کول په کار دي، له دغو ترخو تجربو وروسته به بیا موږ له ځانه سره ځانګړې چاودوونکې ګولۍ وړلې چې دهغو په مرسته په ورانو شویو ټروکې ځان ته له سره لارجوړه کړو.

له دغو لومړنیو عملیاتو نه مودا زده کړه چې دغرونو په لمنو کې، پرهرې غرنۍ لارې تیریدل، له پاسه ددواړو غاړو حفاظت ته اړتیا لري. قوماندانانو ځان ته داسې ځانګړې روزل شوې ډلګۍ اوحتی ټولۍ راجوړل کړل چې دنده یې دټړو له پاسه له قطارنه مخکې تګ و. سربیره پردې هلیکوپټرو اوبم غورځوونکو الوتکو هم له قطار سره مرسته کوله او سمې به زموږ پر سر روانې وې، خو داهر څه وروسته وسنجول شول.

دلومړنیو نښتو په وخت کې لاموږ هوایي ځواکونه (داړتیا په وخت کې) مخابرې له لارې مرستې ته رابلل. دمرستندویې هوایي قوې زیاته برخه هلیکوپټرې اوبم غورځوونکې الوتکې وې. هوای ځواک پیاوړې وسیله ده خو (سمه) لارښوونه ورته په کار ده. له هر قطار سره دهوایي ځواکونو لارښود نښه ویشتونکی هم تلل، خو هغو (ددښمن) دډزو منبع نه لیدلی شوه او نه ترې خبروو. له دې امله په پیل کې موږ مجبور وو، هوایي ځواکونه پریوه ټاکلې سیمه ګوزار ته راوبولو، یا هرڅه پیلوټ ته ورپریږدو چې که غلیم یې لیده نو دهغو ګوزارونه پرې وکړي. کله کله به هوایي ګوزارونه زموږ دعسکرو پرسرهم لګیدل، ځکه له ډیرې لوړې ارتفاع نه دخپلو او پردو بیلونه ګرانه وه. دوه داسې پیښې زما دسترګو په

وسايلو پرسروشوي او يا څنګ ته ولګيدل.

پسرلنيو جګړو محدودو پوځي قطعوته ډيره تجربه ورپه برخه کړه. موږ په ډيروشيانو بيا نظر وکړ. دحرکت لپاره دسرتيرو له چمتووالي او سمبالښت نه نيولې، له هوايي ځواکونو او توپچي قواو سره ترهمکارۍ او دهغو تر لارښوونې پورې (ډير شيان مو) له سره په نوي ډول ترتيب کړل. که به مو دلوا اتلس توپونه دلارې په اوږدوو کې ځاى پرځاى کړل، نوسمدلاسه به له دې ستونزې سره مخامخ شو چې افسران هدف نه شي ليدلى، يوازې له کومې لورې نه دهغه ليدل ممکن وو. له همدې امله مو په افغانستان کې سمدلاسه دتوپچي قواوو لپاره دنښه ويشتنې دسمونکو روزنه پيل کړه. دغه ډله او دغه راز دهوايي ګوزارونو لارښوونکي، زموږ لپاره هغه دچا خبره دزرو په بيه وو او ځکه خو هغوى تل دساتونکو ډلو تر سيورى لاندې خپل کار کاوه او دهغوى امنيت له هر قوماندان نه ښه نيول کيده.

تقريباً په همدغه وخت کې توخارينوف ماته دکابل په شاوخوا کې دجګړيزو عملياتو دسرته رسولو امر وکړ. دخيرآباد له سيمې نه پرله پسې ډزې کيدې او دکشف مسوولينو رپوټ ورکړى وچې د (څلوينښتم) لښکر پر قرارګاه ديوه زورور يرغل لپاره تياري هم نيول کيږي.

توخارينوف زده وروغوښتم او په خپله يې راته په خريطه کې دغه سيمه راوښوده. دغرونو پرسر مخامخ له کابله ترهغه ځايه تقريباً اوود کيلومتره لار ده، خو سړک يې له کابله څه دپاسه شل کيلومتره داوږدو.

ځواک راته بيل کړل چې داړتيا په وخت کې مې ترې د مرستې غوښتنه کولی شوه، ددې مانا داوه چې پيلوټان په هوايي ډگر کې چمتو ناست وو، خو چې کله به يې مرستې ته اړتيا پيدا شوه نو ډير ناوخته به رارسيدل.

په هغو ورځو کې د «لارې په اوږدو کې ديرغليزو عملياتو» اصطلاح دهرچا دژبې پرسر وه. يوه يا دوو کنډکونو دبيلابيلو لارو پر سر گزمې کولې. دلارو شااوخواته پرتې سيمې به يې پاکولې او دمخالفينو وسله تونونه به يې يا نيول او يا به يې له منځه وړل، له دې کار وروسته به بيرته راستنيدل. دغسې يوه دنده موږ ته هم راوسپارل شوه. غليم مو عملاً هيڅ نه پيژانده. ځکه چې دکشف ځواکونو په دې هکله ډير لږ معلومات راکړي وو. يوازې دومره معلومه وه چې په خير آباد کې «يوڅوک شته» او بايد داسيمه «پاکه کړی شي»، په بله وينا که موږ د تصادف له مخې په مجاهدينو وربرابر شو نو بايد له منځه يې يوسو.

دغه عمليات مې دفرقې ددرستيزوال په توگه ترسره کړل. په هغو کې روسلان اوشف «*» هم گډون لاره. په همدې وخت کې مې دوارخطا يې ناوړه احساس پر وجود خپور شوی و. موږ ديوې غرنۍ څوکې خواته ورنږدې شو چې هاخوا ترې يوکلی پروت و او موږ گومان کاوه چې هدلته دښمنان پټ دي. ترغاښې پورې لا درې کيلو متره نور نه وو ورلنډ شوي چې قطار مو ودراوه، دکشف او امنيت ډلې مو پلې او مخې ته کړې. په ځانگړې موټر کې دساتونکو له يوې کوچنۍ ډلې سره ماهم حرکت وکړ. بايد ځای پرځای دکلي دنيولو لاره چاره سنجول شوې وای.

وروسته يې کيسې وکړې، په هغه شيبه کې يوډول احساس لاره. لومړۍ ډزه سړی روحاً په بشپړه توګه له ښنبو غورځوی او دا په داسې حال کې چې ته په زړه کې دې ته چمتو يې چې هره شيبه دډزو دپيل احتمال شته دی، سربيره پردې ته په خپلو ښنبو دخطر پرلور ګام اوچتوې (خو سره له دې هم) لومړنی ډز دسړی دننه، دسړی په شعور کې يو هيبت راخوځوی.

زه ښه پوهيدم چې دمخابرې ښه وسايل راسره شته او خواته مې پوځ هم پروت دی. توپونو ددښمنانو د مورچلو خواته خولې پرانستې وې او رابلل شوې هليکوپترې درارسيدو په حال کې وې، خوله دې سره سره پوره لس دقيقې هسې وچ کلک پاتې وم اونه مې شو کولای چاته کومه لارښونه يا امر وکړم. نه پوهيدم څه وکړم. هلته پر زغره وال ګاډی دګوليو باران دی او شرنګايې خېژی اوله هر ترنګ سره سړی فکر کوی چې دابله خامخا زغره پرې کوی او دننه به ترې تيريږي. همدلته ده چې دسړی خوله بې اختياره دزغره وال ګاډی جوړوونکو ته په کنځلو خلاصيږي چې ولې يې زغره يو څه پنډه نه جوړوله. دغه راز دې زړه غواړی دمخابرې جوړوونکو ته (کنځلې وکړې). کله چې ما په مخابره کې دټوليو ر کنډکونو پاتې قوماندانان راوغوښتل، نو دنورو ورته پيښو په څير هيڅ ځواب رانه کړ.

دډزو باران داسې ناڅاپه ودريد چې زه په لومړی سر کې پوه نه شوم چې ولې.

داسې ښکاريده او وروسته تائيد هم شوه چې دښمنانو ځان ايستلی و. يوازې يوې

سپکې کړې وې، ځکه چې موږ ی له کابل د وتلو په وخت کې ښه لیدلی وو، په ما کې چې لږه ساه وغړیده نو له زغره وال ګاډي نه را کوز شوم. سړی خپله داسې احساس کاوه چې دښمنان په شاشوی دی. په داسې یوحالت کې چې کله له کوچنوټي غاښې ورواوښتو او کلی ته ورکوز شو، هیڅوک مو ونه موندل کلی تش و.

دهغو جګړه ییز عملیاتو په لړ کې چې ما په کې مخامخ ونډه لرله، هڅه موکوله، دلارو دکلا بندۍ او غاښې ته په ځیرمه لارو کې دپوستو په اچولو سره دقطار امنیت تأمین کړو، خو په هر ګام کې مو احساسوله چې دمکلفیت ددورې سرتیری خولاځه کوې چې زیاتو افسرانو په غرونو کې دجګړو کافي تجربه نه لرله. په یوه سیمه کې لاره د دوو زرو مترو په لوړ ووالی تیره شوې وه. موږ یوکیلومتر له لارې پورته، دکشف یوه ډله افراز کړه چې کولی یې شول دې لارې ته راغزیدونکی ټول ګوډرونه ووینی. هغوی دغه ځای ته په ورپورته کیدو ډیر وخت تیر کړ، ان تر شپږو ساعتو پورې. دغره ټولې لمنې مومخکې له مخکې په توپو ویشتلې او دکشف ډله موټر هغو چې خپل ځای ته نه وورسیدلې، دډزو په مرسته وساتله، هلیکوپترونه هم دکشف ډلې دجګیدو تر وخته دهغو پرسر ګرځیدل.

هغوی په خیر سره غره ته جګ شول، خو هلته یې له یوې نیمې ورځې زیات طاقت ونه کړای شو. بې تجربه والی خپل کار وکړ. هغوی ته ویل شوی وو چې دشپې له خوا هلته ډیر ساړه وي، نو یوازې ژمنی ټودې جامې یې له ځانه سره د

گران وو. ځکه نو د کشف ډلې له پنځو سو دقیقو مزل وروسته، په داسې حال کې چې په خولو کې ښه ډوب شوی وو، خپل ډیر شیان او په دې ډله کې تاوده کالی د تیرو په منځ کې پټ کړل. کله چې څو کې ته پورته شول، هوا سړه وه، خو دوی ریوټ ورکاوه چې د تحمل وړده ناڅاپه په غره کې باران پیل شو. په لمنه کې باران نه و. سړی پوهیږي چې د دریو زرو مترو په ارتفاع کې باران یعنې څه؟ له هغه وروسته سمدلاسه زمکه یخ وهی. سهار مجبور شو د دغې ډلې د تلف کیدو او یخ وهلو د مخنیوی لپاره سملاسی تدابیر ونیسو. شپه، پر هغوی ډیره سخته تیره شوې وه. دورځې لمر راښکاره شو او ورسره جوخت د دغې ډلې زړه هم ولګیده.

لږ وروسته د دغې ډلې خواړه او اوبه پای ته ورسیدل. هغوی اړ شول، واوره په اورویلی کړي. هلیکوپتر هم ددیرې لوړتیا له امله نه هلته کیناستلی او نه په ځورنده توګه دریدلی شو. هغه څه چې به ورته له هوا نه غورځول کیدل، د پوستې هاخوا دې خوا به پریوتل او سرتیرو ته په لاس نه ورتلل. ډیر وخت وځوریدو خو وروسته هغوی خپله د کوزیدو اجازه وغوښته. د یوه تن روغتیایي حالت خراب شو: دارتفاع اختلاف او د اکسیجن کموالي یې پر زړه ناوړه اغیزه کړې وه. دوه تنه والګی نیولی وو او وروسته ډاکټرانو دهغو د سږو د پړسوب تشخیص وکړ. لنډه داچې هغوی مو راکښته کړل او که دقیقه ووایم، هغوی خپله راکوز شول. مخې ته مو سړي ورولیږل، خو لکه چې په نازکو حالاتو کې تل پیښیږي، په لاره کې سره وړاندې وروسته شوي وو.

شوې وه، چندان بریالی نه وه. موږ یوازې لږ شمیر وسله او مهمات کشف او لاس ته راوړل، خو په کار وه چې د تل په څیر مو د سترو بریاو رپوټ ورکړی وای. څرنګه چې عملیات کابل ته څیرمه روان وو، ما توخارینوف ته هره ورځ په مخابره کې رپوټ ورکاوه، د دغو تولو لسو ورځو په لړ کې او بیا وروسته د جاج اخیستنې په وخت کې د عملیاتو د پایلو له امله، د قوماندان ناخوښي له وړایه بریښیده. موږ ته له دې امله چې د سون ډیر مواد او غرونه غرونه مهمات مو لګولي وو، ګوته نیول کیده. ریښتیا هم خبره همداسې وه: په لومړي سر کې چې به څرګنده شوه، ډزې له کومه ځایه کیږي، نو د دښمنانو دیوه ډز په بدل کې به له هرې خوا پر هماغه ځای د بیلابیلو وسلو د ګولیو باران جوړشو، خو پایله به هیڅ وه. موږ نه شو کولی، د استخباراتو له رپوټونو سره سره د مهماتو سترې زیرمې کشف کړو، هغو اصلاً وجود نه درلود.

یوازینۍ مثبته پایله دا راووته چې دښمنان له خیر آباده په شا شول او ورسره جوخت د څلویښتم لښکر پر قرارګاه ډزې هم د څه مودې لپاره بندې شوې، خو موږ یوازې غلچکي ډلې د کابل له شاوخوانه وشړلې او له دې نه زیات موځه ترلاسه نه کړای شول. له دغو عملیاتو درې میاشتې وروسته چې موږ ته د دریو تنو د سر په بیه تمام شول (یو بریدمن په ګولۍ ولګید او دوه سرتیري په ماین والوتل) پر پایتخت یرغلونه له سره ونښتل. په لومړیو کلو کې د لاس ته راغلیو بریاونه ساتنه د دې سبب کیده چې موږ به څو څله په هماغه یو ځای کې د عملیاتو سرته

غوښتل چې موږ دې اغېزمن عملیات ترسره کړو. یوازې دګوتو په شمیر دغسې مشرانو هڅه کوله په «پاکو شویو اولسوالیو» کې خپل ځان ټینګ کړي او واک وچلوي. ښکاره ده چې هغوی پوهېدل، داجګړه به ژر یا وروسته پای ته رسیږي او له هغوی پرته به بل څوک دځواب ویلو پاتې نه وي.

## داتیا یم کال سور دوبی

د ۱۰۸ موټوریزه فرقې لپاره په افغانستان کې لومړی دوبی دومره سخت و چې دسیمې معموله (٤٠) درجې تودوخه یې په انډول په دوهم ځای کې راتله. که په لومړیو میاشتو کې موږ یوازې په افغانستان کې دخپلو پاتې کېدو دمودې په هکله تخمینونه کول، نو دمې په میاشت کې هرڅه بېخي روښانه شول. دهمدغې میاشتې په وروستیو ورځو کې دځلوېښتم لښکر قوماندان ته په محدودو پوځي قطعاتو کې دافسرانو دخدمت د شرایطو په هکله دشوروي اتحاد دډفاع وزیر امر راورسېد. ددغه امر په یوه ماده کې راغلي وو چې افسران به دوه کاله وروسته بدلیږي. اوس نو دلمرغونډې روښانه شوه چې موږ دکال – یونیم کال یا یوې میاشتې لپاره نه یو راغلي: ځلوېښتم لښکر به په افغانستان کې داوږدې مودې تیرولو ته اړشي. همداسې هم وشول.

دپلان له مخې دجګړه ییزو عملیاتو دسرته رسولو ترڅنګ موږ دپوځ دځای پرځای کولو کارته هم ملا وتړله او په لومړي ګام کې مو دپوځي چونیو په جوړولو لاس پوري کړ. دیو افسرانو لا دېخوا په څېر په هغو خیمو او موټرو کې ژوند کاوه

پراته تأسیسات هم په چټکۍ سره د محدودو پوځي قطعاتو داړتیا دلیرې کولو
لپاره چمتوکېدل. شوروي پوځي کارپوهانو دبګرام او شینډنډ دهوايي ډګرونو په
څېر له تأسیساتو څخه بهر بېخي وتل نه چې ډېر ژر هغه د څلوېښتم لښکر
دپیلوټانو داستفادې لپاره (چمتو کړی شي).

داتیا یم کال په دوبي کې مخالفینو په سترو ښارونو، په تېره دبیا پایتخت کې
زموږ پرقطعاتو دهغوی په عقیده دقاطع ګوزار کولو پرېکړه وکړه چې موږ له
افغانستان نه وتلو ته اړکړي. دغه وخت زموږ دفرقې اساسي ځواک: یو توپچي،
دری موتوریزه غنډونه اویو دکشف کنډک په کابل کې و. ټولې قطعې مو دښار په
څنډه کې پرتې وې، نو ځکه دسرتیرو او افسرانو ژوند ډېر سخت و. دکوماندو
قطعاتو حالت هم همداسې و. وروسته د ۱۰۳ لمبر هوايي کوماندويي فرقې
کنډکونه په ولایتونو وویشل شول. هغوی معمولاً تر ټولو لیرې پرتو سیمو ته چې
د «ټینګې اولسي واکمنۍ» دملاتړ لپاره په کې شوروي سرتیري ته اړتیا لیدل
کېده (استول کېدل). او څومره چې به ددغو سرتیرو شمېر ډېرو هومره به دواکمنو
لپاره په زړه پورې وه.

نږدې هره ورځ زموږ پوستې او مورچلې تر سختو ډزو او برغلونو لاندې راتلې.
په کونړ کې پسرلنیو عملیاتو تریوې اندازې دڅلوېښتم لښکر امنیت، هغه هم
دیوې نیمې میاشتې لپاره تأمین کړ. له هغه وروسته ورانکاری له سره پیل شوې.
چې هري یوې یې تر ټولو بدې پایلې لرلې، دمې په پای کې ۱۸۱ لمبر غنډ چې

لاندې ونيول شو. دسرتيرو خيمې په هوارډاگ کې هسکې وې او له پوې عادي غونډۍ نه دورغوی په څير ليدل کيدای شوې. سربيره پر دې څنگ ته مو پوځي پوليگون پروت و چې دټانک يوې افغاني لوا ، ترې کار اخيست. دحکومتي پوځ دټولو قطعو په څير ، دلته هم ډيرو کموکسانو شوروی عکسروته په ښه سترگه کتل، خو دا چې دهغوی له ډلې نه چا پر موږ ډزې وکړې ، تراوسه پوره ښکاره نه ده ، اوس هم گرانه ده وويل شي چې په کومو وسلوپرموږ ډزې وشوې ، ځکه هغه وخت دښمنانو درنده وسله ، په تيره بيا توپونه نه لرل. دهغوی معمولي درنه وسله هاوانونه وو. پرغنډ بريد ډير ښه سنجول شوی‌و. ډزې په رڼا ورځ او دځليدونکي لمر په روښنايۍ کې پيل شوې ، چې گرانه وه ، دهغوځای تشخيص کړای شي.

که دشپې له خوا دگولۍ دالوزولو او دډزو دشيبې معلومول کيدای شي ، نو دورځې له خوا دا کار عملاً ناممکن دی. دډزو په پايله کې دغنډ دمهماتو نږدې ټولې ډيپوگانې او دخوړو زيرمې هواته پورته شوې او نږدې وو چې « پوځي جنډه » يې هم له لاسه ورکړې وای. يو افسر او پنځه عسکر ووژل شول. هغوی ټانکونو ته ورمنډې کړې چې داور له لمبونه ځانونه وژغوري ، خو نجات يې ونه مونده.

څرنگه چې زموږ دفرقې په سلو کې اتيا جزوتامونه دسالنگ پر لويه لاره ، له کابله تر دوشۍ خواره-واره پراته وو او دا دوه سوه کيلومتره لاره کيږي ، موږ اصلاً دمانور د سرته رسولو لپاره وزگاره قطعه نه لرله. يوازې په دې مو بسنه کوله چې

ځیرمه سیموکې کوچنی عملیات سرته رسول. مثلاً موږ (سالنګ نه دکابل او جلال آباد له لارې دکونړ په لور دخپلې استوګنې دایمی ځای ته دتګ په وخت کې د ٦٦ لمبر موتوریزه مستقلې لوأ امنیت نیولی و.

دتګ دغه لاره ډیره خطرناکه وه او نږدې هره ورځ کوچنی متقابلې ډزې او کله کله له دښمنانو سره جګړې پیښیدې، خو له دې سره سره لوأ په خیر سره خپل ځای ته ورسیده او دپاکستان پر لور دلویې لارې امنیت یې ونیو او دهغې په شا اوخوا کې یې پوځی عملیات پیل کړل. باید ووایم چې دافغانستان په سطحه ښکلی او شنه ښار جلال آباد کې شوروی کارپوهانو له جګړې نه مخکې ډیر کارونه سرته رسولی وو. دسیند له پاسه دنغلو او سروبی دبریښنا بندونه جوړ او داوبو رسولو یو بیساری کانال فعال و.

په کابل کې دامنیت دساتنې لپاره ډیر ځواک بیل شوی و. ۱۰۸ لمبر فرقې له کوماندویانو سره دابار نیم په خپلو اوږو واخیست. په کابل کې دټولو شوروی موسسو دامنیت ساتل چې شمیرېې هغه وخت تر دیرشو اوښته او په دې ډله کې دشوروی سفارت او دسوداګری نماینده ګی کار کوونکی هم راتلل، زموږ فرقې ته سپارل شوی و. د افغانستان حکومتی ودانۍ، دخلکو دیموکراتیک ګوند دمرکزی کمیتې مانۍ او دببرک کارمل دفتر چې په یوه ځای کې واقع وو، دکوماندیانو له خوا ساتل کیدل. سره له دې چې دامنیت بهرنی کمربند له افغانی پوځیانو نه جوړ و، خو په نازکو حالاتو کې اصلی تکیه په شوروی عسکرو کیده.

افغانستان کې زموږ دحضور په ټولو نهو کلونو کې دامین په ماڼۍ کې دپاراشوټي کوماندویانو یو غنډځای پر ځای وچې نه یوازې یې دحکومت ساتنه کوله، بلکه هماغلته اوسیده هم.

موږ اوږده موده د مرکزي راډیو تلویزیون ودانۍ او دغه راز د کابل پرسیند دولس پلونه هم ساتل. دغه سیند د کابل له منځه تیریږي او ښار په دوو برخو ویشي. موږ نه شول کولی د پلونو ورانولو ته اجازه ورکړو، نو ځکه مو د هر پله د ساتنې لپاره یو ډلګی او په بحراني حالاتو کې ان یو ټولی مؤظف کاوه. یو کنډک د څلویښتم لښکر د قرارګاه ساتنې ته مأمور و، دغه راز قطعي مجبورې وې د خپل ځان امنیت هم تینګ کړي.

د ۱۹۸۰ کال په منی کې چې نور نو محدودو پوځي ټولګیو د افغانستان په شرایطو کې د فعالیت پوره تجربه تر لاسه کړې وه، پریکړه وشوه چې د څلویښتم لښکر او دغه راز د هغو د فرقو، غنډونو او کنډکونو ترکیب مشخص کړای شي. په دې ترڅ مثلاً دې پایلې ته ورسیدو چې د ټانکونو غنډونه په افغانستان کې په درد نه خوري او په کار وه چې د هغو ځای موتر زیزه قطعې ونیسي. ټانکستانونه شو کولی، له خپلو واسطونه په غرونو کې بشپړه او اغیزمنه ګټه واخلي. ټانکونه په شنو ورشوګانو او دوریجو په کروندو کې هسې ښخېدل.

له معمول سره سم، دغه وسایل د تأسیساتو د ساتنې لپاره او دغه راز د کوچنیو عملیاتو په وخت کې په داسې یوه ساحه کې کارېدل چې ټانکونو ته په کې د تاویدو راتاویدو لاره موجوده وي.

د جګړه ییزو عملیاتو د سرته رسولو لپاره د ټانک هغه کنډکونه بس وو چې

د جون په میاشت کې زموږ د پوځیانو لومړنۍ ډلې له کابل لاړې. شوروی اتحاد ته بیرته د دوو فرقو د ټانک غنډونه، د توپچي یوه مستقله لوا او د توغندیو یوه لوا چې په ترکیب کې یې تر شپیته کیلومترو واټن ویشتونکي «لونا» ډوله توغندي شامل وو، ستانه کړی شول. د محدودو پوځي ټولګیو په منځ کې د تاکتیکي توغندیو د دومره ډېر شمېر شته والي ددې خبرې یو بل ښکاره دلیل دی چې افغانستان ته زموږ د پوځونو دلېږلو پریکړه له لازم چمتو والي پرته شوې وه.

د هوایي ضد توغندیو راوتل له غم لړلي پیښې سره ملګري شول، پر هغو دښمنانو یرغل ونه کړ خو د ستیندلو لپاره د ناکافي چمتو والي او دغه راز د لوا د مشر تا به او دهغو افسرانو د واقعاً جنایتکارانه او له خپلو ورسپارل شویو د ندو سره د بې مسؤولیته چال چلند له امله دغه پیښه رامنځته شوه چې د ترکستان پوځي حوزې او د څلویښتم لښکر قوماندانۍ خاص قطعې د وتلو په کار کې د مرستو لپاره رالیږلې وو.

دهوایي ضد توغندیو لوا د شپې له خوا دسالنګ په غاښي تیریدله. ددغه غاښي تونل دنړۍ په ډیرو اوږدو تونلونو کې راځي. ددې لپاره چې کومه پیښه رامنځته نه شي او تونل بیخي ړنګ نه شي، موږ په هماغه پیل کې هغه تر سختې څارنې لاندې نیولی و او له هغه نه دتیریدو لپاره مو ډیر مقررات وضع کړی وو. مثلاً دافغانستان حکومتي پوځونو اجازه نه لرله، له شوروي پوځونو سره یوځای هغه ته ورننوځي. دا کار په وار سره سرته رسیده. له دغه کلک بندیز سره سره

هم تم شوې. افغاني چلوونكو چې خپله ستونزه حل كړه، نو وړاندې تګ يې پيل كړ، خو دشوروي قطار دلومړي موټر چلوونكي دستړيا له امله خوب وړی و. هغوی ته چا دسالنګ په غابني له تيريدونه مخكې داستراحت فرصت نه و وركړی. لومړی موټر ځای پرځای ولاړ و او شاته قطار هم له ځايه نه خوځېده. طبيعي ده چې هيڅا دموټر انجن نه مړ كاوه، خوكله چې عقلونه سر ته راغلل او دمرستې لپاره منډې پيل شوې، نور ناوخته شوی و. دتونل له منځه ټول سر تيري په كش كولو راوايستل شول خو شپاړس تنه چې دموټر په لوګيو مسموم شوي وو، ونه ژغورل شول اوله منځه لاړل. شل تنه نورهم دكوما په حالت كې وو، خو ژوندي پاتې شول.

ددوبي په سر كې امر وشو چې ۱۰۸ موتوريزه فرقه دې بګرام ته كډه وكړي. دځلويښتم لښكرو قوماندانۍ په نظر، زموږ فرقې بايد ترهر څه لومړی دافغانستان تر ټولو ستره هوايي اډه ساتلې وای. له بګرام نه دكابل پر شمالي سيمو، چاريكار او هغه ځای شاوخوا په «شنو سيمو» كې دحالاتو په پرمختګ اغيزه ښندل، خورا اسان كار و. په دې سيمو كې داوبو پريماني او دلويې لارې نږدې والي، ددښمنانو او هغو كسانو پاملرنه را اړوله چې ځانه ته يې ګټې لټولې. سربيره پردې، څنګ ته مو دپنجشير دره او ديو ډير تكړه او غښتيلي قوماندان احمدشاه مسعود قرارګاه پرته وه. پريكړه وشوه چې دغه تر ټولو كړكيچنه سيمه د ۱۰۸ لمبر فرقې په مسؤوليت كې شامله كړي.

ته ورساوه او سمدلاسه مو نوي ځای ته کډه وکړه ، زموږ لپاره دومره په زړه پورې نه وه ، بګرام ته یوازې دفرقې قرارګاه او څو تأميناتي کنډکونه ولیږدېدل ، خو اصلي ځواکونه مو لاهماغسې په کابل کې پاتې وو . ددې لپاره چې سیمه سمه کنټرول شي او پوځي بريالي عملیات په کې ترسره شي ، نو لږ ترلږه دوو جنګي غنډونو ته اړتیا وه ، خو موږ لايو نه درلود . په بګرام کې دټانک يوازيني ځای پرځای شوې قطعه هم په پيل کې بيرته (شوروي ته) ستنه شوې وه ، خو پرځای يې هيڅوک نه وو رالستول شوی . دغسې يونامناسب حالت زموږ دحضور ترپايه په افغانستان کې حاکم و .

د ۱۹۸۰ کال دمسکو دالمپيا دلوبو په درشل کې دځلوېښتم لښکر په ستروګارنيزيونو ، دفرقو او مستقلو غنډونو په قرارګاوو کې او هغه هم په لومړی ګام کې په کابل کې ، ګرځنده تلويزيوني خپروونکې دستګاوې ولګول شوې . دغو دستګاوو تلويزيوني څپې له مصنوعي سپوږمۍ نه اخيستلې او بيا يې نږدې سيموته له سره خپرولې . په لومړي سر کې دغه دستګاوې زموږ په موټرو کې لګيدلې وې او تصوير يې د دريو کيلومترو پورې خپرولی شو وروسته بيا اخذې پياوړې دستګاوې . راوړل شوې چې تر لسو کيلو مترو يې دبيا خپرولو وس لاره .
ترکومه ځايه چې ماته معلومه ده په اوړی کې دځلوېښتم لښکر دپرسونل دبوختتيا لپاره چې اوس يې شمېر سلوزرو تنوته رسيده ، يوه ځانګړې مصنوعي سپوږمۍ هم مدارته توغول شوې وه . موږ د دغه تخنيک په مرسته کوا

**دسمبر**

دمنی له پیل کیدو سره ددښمنانو هڅې هم ګړندۍ شوې. هغوی پوهیدل چې څه موده وروسته غرنۍ لارې په واورو بندیږي او هغه وخت به مجبور وي، یوازې پرپوستو انفرادي یرغلونه او دنظامي قطعو پر قرارګاوو ډزې وکړي. معمولاً دښمنانو په ژمي کې ستر عملیات نه کول، ځکه چې دمانور قدرت یې له لاسه ورکاوه. هر کال همدا کار تکراریده. موږ غوښتل که نه، خپله طبیعت په جګړه کې دلږې ساه ایستلو فرصت راکاوه. هم شوروي عسکرو او هم مجاهدینو له دغه فرصت نه دتیرو کارونو دجاج اخیستلو، پرپښو دبیا دریدلو او د دوبنیو سختو جګړو په وخت کې دلګیدلو مهماتو دبیا اکمال لپاره ګټه اخیستله.

په منی کې زه دګارد دپنځم لمبر موتوریزه فرقې دقوماندان په توګه وټاکل شوم، چې افغانستان ته له لیږلو مخکې په کوشک کې ځای پرځای وه. له جګړې وروسته خپل پخواني ځای ته ورستنه شوه او اوس هم همدلته ځای پرځای ده. تقریباً ټوله فرقه د ۱۹۸۰ کال په منی کې په شینډنډ کې پرته وه. یوازې یوغنډ له خپلو نورو قطعونه لیرې په هرات کې پروت و، هرات دافغانستان ډیر ښکلی او دزرکلن تاریخ لرونکی ښار دی. داسیمه زموږ لپاره له دې امله هم ارزښتمنه وه چې هلته دلویدیځ افغانستان ترټولو ستره او ددې هیواد دویمه هوایي اډه پرته وه.

په نوې دنده دټاکلو پریکړه، دوروستیو وختو خلاف، مثلاً کله یې چې نه یوازې دتلفون په وسیله دکورنیو چارو وزیر دلومړي مرستیال په توګه له ټاکنې نه

(بیلابیلو) فرقو معاینې ته روانیده. هغه ډیر افسران له نږدې پیژندل او د اړتیا په وخت کې به یې د بیلابیلو ستونزو په حل کې مرسته ورسره کوله. یوه ورځ ما هم له هغه نه د یو لنډ رخصت د اخیستلو غوښتنه وکړه. هغه وخت دا ډیره سخته غوښتنه وه. زما په نظر د رخصتۍ لپاره معقول دلیل موجود و: زما دویم زوی اندری په ساراتوف کې زیږیدلی و. داخبره ما ته تاشکند ته له تګ مخکې شوې وه، هغه وخت چې زه او یو بل افسر د خپلو جګړه ییزو پلانونو د لاسلیک او تصدیق لپاره تللو. دغه پلانونه باید د نورو ترڅنګ، خپله لوی قوماندان هم لاسلیک کړی وای. مخکې له دې چې هغه ته ورشم، له نورو هغو کسانو نه مې پوښتنه وکړه چې دده عادتونه ورته معلومه وو: اجازه به راکړي که نه؟ ټولو د نفی په علامه خپل سرونه وخوځول. وروسته له هغه چې قوماندان زمونږ له خوا راوړل شوي ټول سندونه لاسلیک کړل، ماله ځان سره وویل: «زامن خو هره ورځ نه زیږي!» زړه مې غټ کړ او ساراتوف ته د تګ لپاره مې د رخصتۍ غوښتنه ترې وکړه. هغه موافقه وکړه او پنځه ورځې رخصتي یې راکړه. له قرارګاه نه مخامخ هوایي ډګر ته او له هغه ځایه ساراتوف ته لاړم خپل زوی مې ولید او بیرته افغانستان ته ستون شوم.

داسې میاشت نه وه چې جنرال اکسیموف دې څلویښتم لښکر ته نه وی راغلی. دامین د ماڼۍ په دریم پوړ کې ده ځان ته دفتر درلود چې د مخابرې داسې عصري وسایل په کې وو چې دده یې نه یوازې د محدودو قطعو د لارښوونې بلکه (د ننه په شوروی کې) د ټولې پوځي حوزې دا دارې امکان ورکاوه.

په توګه زما دټاکلو خبرد وخيږله. دهغه له خبرو څرګنده شوه چې هغه مخکې «مايکوپ» ته هم تلفون کړی او هلته يې له نورو افسرانو نه په پخوانۍ دندد زما دکار دڅرنګوالي پوښتنه هم کړې ده. ما د دغسې يو شي تمه نه لرله او په نوې دندد دټاکلو خبر زما لپاره هم ناڅاپي او هم په زړه پورې و. ما له قوماندان نه مننه وکړه او چې بګرام ته ستون شوم نو دخپلې فرقې قوماندان ته مې ددې نويو پرمختګونو خبر ورکړ. دوه ورځې وروسته اسناد تيار او مسکوته واستول شول.

له دغو خبرونه يوه مياشت تيره شوه او نږدې وو چې زما له ياده ووځي، خو ددسمبر په پيل کې لوی قوماندان په تلفون کې راته توده مبارکي وويله، زياته يې کړه چې دفرقې دقوماندان په توګه زما دټاکلو سند ددفاع وزير امضاء کړی دی. څو دقيقې وروسته دځلوېښتم لښکر نوی قوماندان تورن جنرال بوريس تکاچ هم راته مبارکي وويله. مخکنی قوماندان توخارينوف بيرته تاشکند ته په پخوانۍ څوکۍ دکارکولو لپاره ستون شوی و. تکاچ امر وکړ چې همدا سبا بايدد لښکر له درستيزوال جنرال والنتين پانکراتوف سره يوځای شينډنډ ته دنوی دندی داشغال لپاره لاړ شم.

شينډنډ ته الوتنې له يونيم ساعت زيات وخت ونيوه. هلته وختی خبر رسېدلی وچې نوی قوماندان پر لاره دی. له جګړې نه وزګارو قطعو زما انتظار ايسته. په يوه کوچنوټی تعليمی ډګر کې (که ممکنه وی ددوو لرګنيو قاغوشونو ترمنځ فاصله په دې نامه ونومول شي) د ۱۰۳ فرقې توپچی غنډ او کوماندو يې کنډک په نظام ولاړ وو.

وروسته دکورنیو چارو وزارت دپوځونولوی قوماندان په توګه وټاکل شو. هغه ډیره موده ان افغانستان ته له استولو ډیر مخکې دپنځمې موتوریزه فرقې قوماندانی په غاړه لرله. څلور ورځې موږ دواړو (دهلیکوپټر په مرسته) هغه ځایونه چې دفرقې جزوتامونه په کې ځای پرځای شوي وو، وکتل او ان په هرات کې مو تقریباً ټولې پوستې معاینه کړې.

هغه زه له افسرانو او دهوای اډې له افغانی مشرتابه سره معرفي کړم. دا یوه خبره زما په نظر دیادولو وړ ده: جنرال شاتالین سهار وختی کوشک ته دځپل کور پر لور والوته. دفرقې له قرارګاه نه تر هوایي ډګره دموټر په مزل پنځه دقیقې لار لانه وه. کله چې موږ هلته ورسیدو، دموزیک باندو، دقوماندان مرستیالانو او د جزوتامونو قوماندانانو زموږ انتظار ایسته. کله چې مومخه ښه وکړه او هر ډول په زړه پورې او تودې خبرې و شوې، دموزیک باندو د «پرشچانیی سلاویانکی»* سندره وغږوله. دهلیکوپټر انجنونه چالان وو. بس دومره پاتې وه چې جنرال شاتالین وروخیژی او وربه ځان پسې وتړي. دغه وخت ناڅاپه دهلیکوپټر یوټایر وچاوده. ټول لږ وارخطا غوندې شول، داځکه چې، لومړی خو داسې پیښې هره ورځ نه رامنځته کیږي او بله دا چې شاتالین ته په مخکې دهغو سیمو له پاسه یوساعت الوتل پراته وو چې ډزې په کې روانې وې، دا له هراته راچاپیره شوې «شنه کړي» وه. دکومې ناوړه پیښې دمخنیوی په مقصد مو دمرستې لپاره دوه نور هلیکوپټره هم ورسره ولیږل.

پنځمه فرقه دژوند دشرایطو له پلوه له نورونه په ښه حالت کې وه. قرارګاه مو له

اداري په شپږو يو پوړيزو بلاکونو کې ځای پرځای شوې وې هر بلاک څلور کوټې، يو يوه بخاري، تشناب او دځان مينځلو تشناب درلودل. دا چونۍ ورروسته وروسته پراخه شوه. دافسرانو له پاره خوړنځی او څو نور بلاکونه هم منځته راغلل. دمخابرې کنډک هم همدلته ځای پرځای شو.

## لوړ کوه

د (نوې) دندې ترمنلو وروسته مې غوښتل، يوځل بيا ټولې قطعې معاينه کړم خو په دې کار بريالی نه شوم. زموږ فرقه دغه وخت دلوړ کوه په نامه دفراه په يوه غرنۍ سيمه کې په جګړو اخته وه. دعملياتو قومانده دجنرال ی. و. شاتالين په غاړه وه، خوشيندنډ ته زما له راتګه يوه اوونۍ مخکې يې دغه ځای خوشې کړی او دجګړه ييزو عملياتو لارښوونه يې خپل لومړی مرستيال ته په غاړه وراچولې وه.

په لوړکوه کې زموږ فرقه له څلورو اوونيو زياته تم شوه او دا زموږ لپاره ډيره موده وه. دسرزيانونه هم منځ ته راغلل. دنوې دندې دپيل په دريمه ورځ دفراه شاوخوا سيموته والوتم، په کار وه چې هرڅه ځای پرځای وڅيړل شي او دعملياتو راتلونکې وټاکل شي.

دا يوه په زړه پورې اوغير معمول غونډې سيمه وه. په بيخې هواره او شاړه ځمکه کې دشپږو کيلومترو په واټن هرې خواته ډبرينې غونډۍ داسمان لوړته هسکې وې. ترټولو جګه څوکه دسمندر له سطحې نه تر دريو زرو مترو زياته لوړه

دوسلو، مهماتو او خوړو ښه لویه زیرمه ځای پرځای شوې وه. دښمنانو ددغې سیمې په یوه نه ایلیدونکې لوړه کې، یو کمپ جوړ کړی و او له هغه ځایه به یې تل په هغه لویه لاره پرله پسې بریدونه کول چې زموږ او افغاني قطارونه به پرې دکندهار خواته روان وو. دغه راز به یې له دغه ځایه داویا یمې مستقلې موتوریزه لوا ء پر قرارگاه هم بریدونه کول.

دفرقې دقوماندې مرکز په هغو څو مخصوصو موټرو کې ځای پرځای شو چې په زمکو کې ښخ شوی او دستر او اخفا په جالیو پوښل شوی وو. دفرقې دقوماندان ټول مرستیالان چې دتوپچی، مخابرې، هوایی، کشف دندو مسؤولیتونه یې لرل هم همدلته دیره وو. دغه عملیات مو دافغانستان له یوې پلې لوا ء سره چې دپرسونل شمېر یې له (۱۱۵) تنو څخه نه زیاتیده، په گډه سرته رسول. ددوی دایمی سوق الجیش همدا دفراه ولایت و، کله کله چې به دگډو عملیاتو دسرته رسولو اړتیا پیدا شوه، نو افغانی پوځیان هم زموږ قوماندانی ته رابلل کیدل.

دوه ورځې مې دهغو افسرانو نظریې واوریدې چې په لوړ کوډ کې یې زیاته موده تېره کړې وه او هر څه ورته ټکی په ټکی معلوم وو. ددې خبرو اترو بهیر ډیر جدی و. موږ هم زړه نازړه وو. زموږ افسرانو ویل چې دجگړې اوږدول او دغې سیمې ته ورننوتل یوعبث کار دی. هغوی وړاندیز کاوه چې راځئ موږ خپله، درې ته ټولې ورغلې لارې په ماینوډ کې کړو او په دې توگه دښمنان دننه ایسار کړو او هر دورځ پرې دتوپچی ډزو ته دوام ورکړو او په دې توگه ورته د «ډالیو» لیږل پرله پسې توگه جاری وساتو.

ورننوځو او دغه زیرمې له منځه یوسو. مانودغه وخت له ځانه سره پریکړه کړې وه، خو بیا مې هم دځان دپوهولو لپاره وپوښتل: «څوک به مخکې (درې ته) ننوځي؟» معلومه شوه چې شورویان باید په سرکې روان شي. لکه چې دافغاني قطعې دقوماندان سیاسي مرستیال ویل، افغانان پوره ځواک نه لري، خو ډیره هڅه به کوي چې له موږ سره مرسته وکړي.

شک نه شته چې دلور کوه زیرمې باید له منځه وړل شوې وای، خو هرځل چې موږ هڅه کړې، یوازې څومتره درې ته ورننوځو، ددښمنانو دسخت او داسې زړور مقاومت سره مخامخ کیدو چې سړی یې اصلاً په علت نه پوهیده. داسې معلومیده چې په کمپ کې یو ډیر مهم شی شته چې ساتل او دفاع یې بیخي فرض وه، کمپ پخوا جوړ شوی او دیوې اوږدې مودې لپاره په پام کې نیول شوی و: دمهماتو او خوړو سترو زیرمو دښمنانو ته دڅومیاشتو مقاومت وس ورکاوه.

مخکې له دې چې درې‌ته ورننوځو، په کار وه چې ټولې لارې له ماینوپاکې کړو، خو دا سیمې ددښمن داور په ساحه کې پرتې وې. دسرله زیان پرته، ددغه کارترسره کول شونې نه وو. دلوړو څوکو دنیولو لپاره مو پر غرنیو لارو خپل کماندویان هم نه شول لیږلی، ځکه چې په هر ګام کې دغلیم دډزوله دیوال سره مخامخ کیدل.

په لور کوه کې مو دهواله لارې هم کوماندویان نه شول پلې کولی، ځکه چې ددې کار لپاره مو کافي ځواک نه لاره. کافي توپچي ځواک موهم نه لاره چې دکوماندویانو له پلي کیدو مخکې ټولې غرنۍ تری وولي او په دې توګه له مقابلې

لپاره پوره شمیر هلیکوپترونه او ددغو هلیکوپترو دملاتړ لپاره نور هوایي ځواک هم نه درلود. بله لویه ستونزه داوه چې موږ نه شوای کولی، کوماندویانو ته، په تیره بیا درې ته دورکوزیدو په وخت کې لارښوونه وکړو. دکوماندویانو سره دمخابراتي رابطې غوښیدل دهغوی دپوپناه کیدو مانالرله. موږ لادغه وخت له هوانه دبیا مخابرې دستګاوې نه درلودې، چې وروسته بیا په هرو عملیاتو کې په هوا کې ځوړندې درول کیدې، (نوځکه) که هغه جګړه ییز عملیات ترسره شوی وای، نوله تلفاتو پرته یې زموږ لپاره بله پایله نه درلوده.

ددې تیکو په پام کې نیولو سره مې پریکړه وکړه چې داعملیات دې نه ترسره کیږي او یوازې په هغو اقداماتو دې بسنه وشي چې دفرقې او پراسیون افسرانو یې وړاندیز کړی و. موږ په دقت سره، درې ته تیولې ننوتلې لارې په ماینو ډکې کړې او بیا موله یوې مخې دتوپونو دګولیو اوروول پیل کړل. دلور کوه دغرنیو تړو او لویې لارې ترمنځ مو داسې غښتلي موانع منځ ته راوړل چې ددښمنانو خنډکیدلی. دې تیولو کارونو پنځه ورځې ونیولې او وروسته زموږ قطعات بیرته خپلو قشلوته ستانه شول. زموږ عملیاتو تیاکل شوې نتیجه ورنه کړه، ځکه چې موږ نه غوښتل تلفات منځ ته راشي. موږ په دې پوهیدو چې څه موده وروسته دې ځای ته بیا راستنیدونکي یو، همداسې هم پیښه شوه.

څو میاشتې وروسته دلوږ کوه کمپ بوځل بیا فعال شو. دښمنانو په دې سیمه کې یوځل بیا پرلویې لارې بریدونه پیل کړل او دخپل کنترول سیمه یې په منظم ډول پراخوله، موږ پوره وسه وکړه چې دښمنان نه یوازې دننه په درد کې ایسار یاتې

يې نور له لاسه وتلي ، هغه تل زمونږ دېرزو لاندې دی او نورنه شي کولای ، هلته آزاد ژوند او فعاليت وکړي. پرغرنۍ سيمه باندې پرله پسې هوايي بمبارۍ او دليرې واټن ويشتونکو توپونو ډزې روانې وې او په لارو کې ايښودل شوی ماينونه وخته ناوخته « تازه کيدل ». خوله دې سره سره مونږ ته خبر راورسيد چې لور کوه لکه دپخوا په څير دمخالفينو دقوماندې دواحد مرکز په توګه کارول کيږي. په دغه ښه ساتل کيدونکي پياوړی کمپ کې دجګړه مارو ډلو د مشرانو جرګو – مرکو (لکه دپخوا په څير) دوام درلود. ترټولو مهمه خبره داده چې زمونږ په پوستو ، دپهرې په سيمو ، دافغاني اردو او ځلويښتم لښکر په قرارګاوو دغليم ديزغل په وخت کې دسرزيانونه رامنځته شول. دپنځمې فرقې قوماندانۍ اړشوه چې غوڅ اقدامات وکړي او دننه په دره کې پټ شوی مجاهدين خنثی کړي. په بله ژبه ، مونږ بايد هغوی له منځه وړي وای او داسې کار مو کړی وای چې په راتلونکي کې اصلاً دلور کوه نوم بيا په خوله وانخلي.

ددغې غرنۍ سيمې دنيولو لپاره په جګړو کې ، له بده مرغه زمونږ دسردزيانونو مخنيوی شونی نه شو. دسردروند زيان افغاني پلی ۲۱ لمبر لواء ته وروړسيد چې په فراه کې ددغې غرنۍ سيمې په ځلويښت کيلو مترۍ کې پرته وه او دلور کوه په عمليا تو کې يې له مونږ سره ګډون درلود. که څه هم مونږ هڅه کوله ، دخپلو تلفاتو شمېر کم کړو ، ځکه پوهيدو چې لور کوه دافغانانو په کارده او نه دځلويښتم لښکر ، خو بيا هم دسرزيانونه رامنځته شول. زمونږ د استحکام چيانو ، پلو او

یوازې د پنځمې فرقې سرتیري او افسران، بلکه پوځي سلاکاران هم له لاسه ورکړل. د یوه پوځي سلاکار، دهوایي ځواکونو د یو پیلوټ برید جنرال و، دخاخالوف مرګ موږ نه یوازې دخپلو عملیاتو چټکولو ته اړ کړو، بلکه وموپیتیله چې له خپل وروستي وس نه کار واخلو.

جنرال خاخالوف دهوایي ځواکونو دلوی قوماندان هوایي مارشال پ. س کوتاخوف په امر دلته راغلی وچې په دغه غرنۍ سیمه کې دبم غورځوونکو سو - ۲۵ ډوله الوتکو دکارونې داغیزمنتوب جاج واخلي. په لومړي سر کې د دغه امر له عملي کولو نه دسرغړاوي لپاره جدي اقدامات پیل شول، ځکه دکوتاخوف دنقشې له مخې، پلي ټولګی مجبور وو، له هرې هوایي بمبارۍ وروسته ځان دلور کوه مرکز ته ورنږدې کړي او په خپلو سترګو ووینی چې ایا بم غورځوونکو الوتکو خپل هدف ویشتلی او که نه؟ د پنځمې فرقې او د ټول ځلوېښتم لښکر دمشرتابه داخبره نه خوښیده، ځکه چې پوهیدل، دغسې پلټنه څه عواقب لري او موږ دسر دزیانونو ترخه تجربه هم درلوده. تراوسه هم لا زه په دې عقیده یم چې دغسې کارونه باید په پولیګونو کې شوي وای، خو بیا هم که دجګړې په ډګر کې مخامخ ددغسې پلټنې اړتیا لیدل کیدای، لکه چې کوتاخوف په پام کې لرله، نو بیا کیدای شول چې په غرنۍ سیمه کې نه، بلکه دهوارډاګ په جګړه ییزو عملیاتو کې هغه سرته رسیدلی وای چې هم سړي په هلیکوپترو کې ورتلای شي او یا دهمدغو الوتکو یا توپونو په ملاتړ کوماندویان سیمې ته (د پلټنې لپاره) استول

دمرستندویانو له ډلې نه یې هیڅا هغه ته په خپل وخت ددې خبرې دکولو جرأت ونه کړ.

جنرال خاخالوف څو ورځې په لور کوه کې و. لکه چې ومې ویل د درې منځ ته مور د هغه دالوتنې مخه نیوله، خو کله چې زه لاړم او دعملیاتو مشری زما مرستیال په غاړه واخیسته او دده له بیا بیا غوښتنې سره سره هغه په خپل سر د درې منځ ته والوت، خاخالوف له هغه ځایه بیرته راستون نه شو. دهغه هلیکوپتر دښمنانو وویشت چې دهغوی دکمپ څنګ ته ورغورځید. له دې پیښې وروسته مور اړ شو چې خپل عملیات پیاوړی کړو او دغروله څوکو او ددوو دروله لارې دغرنۍ سیمې مرکز ته ځان وررسوو. په بیړه دغه پیل شوی عملیات اساساً ددې لپاره کیدل چې که نور نه وی نو دجنرال او له هغه سره په یوه هلیکوپتر کې دسپرو پیلوټانو مړی لاس ته راوړو او هغوی دتوهین کولو لپاره پری نه ږدو. کله چې ددرې زړه ته ورسیدو او دغه پیاوړی مرکز مو ونیوه نو دهغوی دکمپ څنګ ته مو ویشتل شوی هلیکوپتر او په هغه کې دافسرانو مړی وموندل. دا یوه زړه بوږنوونکی صحنه وه. دجنرال مړی چې عسکری دریشی یې په غاړه وه او دنورو پیلوټانو مړی، ددښمنانو له خوا سخت سپک شوی وو. له هغوی نه یې سترګې ویستلې او غوږونه پرې کړی وو...

دغو عملیاتو نږدې یوه اوونۍ وخت ونیو، دهغو په لړ کې اته تنه ووژل شول. دغه کمپ چې یونیم کال یې پر مور خوب حرام کړی و، هغه دچا خبره دانجنیری

موادو اومهماتو دخوندی کولو امکان و . دښمنانو چې نه یوازې شوروی قطارونه ، بلکه عادی افغانان یې هم لوټول ، په لویه لارکې ټول چور کړی مالونه همدغه ځای ته لیږدول. دښمنانو دغنیمت مالونه په کومه ځانګړې ښه نه جلا کول: هلته هم فرانسوی لوښی او هم له کیمیاوی سرې ډک کانتینر او داسې نور ډیر شیان لاس ته راغلل. ښکاره ده چې داکمپ موله ستې وران کړ . غښتلی تاسیسات مو په بمبونو والوزول او سیمه مو یو ځل بیا له ماینونو ډکه کړه او بیا ترې لاړو . زموږ دا عملیات همدلته ختم شول. د یادونې وړده چې ډیره موده وروسته لور کوه یو ځل بیا زموږ پاملرنه ځانته جلب کړه . د ۱۹۸۵ کال په پای کې دلته له سره فعالو شویو باندونو یو ځل بیا د (جګړو) کیسې تازه کړې. ددښمنانو دبیا سرجګولو له امله موږ یو ځل بیا پر دغې سیمې پرله پسې درندې بمبارۍ او هوایی یرغلونه وکړل چې وروسته بیا لور کوه زموږ لپاره کوم خطرنه ګڼل کیده.

## هرات

دپنځمې فرقې قوماندانی دافغانستان په لویدیځو ولایتونو کې دحالاتو دپرمختګ له امله ډیره اندیښمنه وه. دښمنانو دکندهار خواته دغزیدلې لارې دنیولو لپاره غټې هڅې پیل کړې وې. موږ په خپل وارهڅه کوله ، دې مقصد ته درسیدو لپاره ، دهغوی دلارې خنډ شو.

دپنځمې فرقې دجګړه ییزو عملیاتو پر څرنګوالی ، دې خبرې هم اغیزه لرله چې دهغې دمسؤولیت په ساحه کې دافغانستان دریم ستر ښار - هرات پروت و .

د پيښو پر مختګ تياکه.

په هرات کې د مجاهدينو داسې عادي ډلو فعاليت درلود چې غالباً يوله بل سره لاس او ګريوان وې. د پاملرنې وړ ده چې په همدې هرات کې زموږ د فرقې مشر تابه او پوځي سلاکارانو په ګډه دلومړي ځل لپاره له دوو (مجاهدو) ډلو سره تماس پيدا کړ چې مشرانو يې له حکومتي ارګانو سره دهمکارۍ ژمنه وکړه. عملاً، هغوی دانقلابي حکومت لوري ته د رااوښتلو سره خو ځاوه نه شو ويلی چې داګنې دشمير له پلوه کومې غټې ډلې وې مهمه خبره دا وه چې دلومړي ځل لپاره دمخالفينو قوماندانانو نه يوازې له شوروي پوځيانو، بلکه له افغاني حکومت سره د ګډو مرستو پريکړه وکړه.

دې لومړنيو تماسونو ډير وخت اوزيار وغوښت. زموږ هر قوماندان، ان دهغو ډلګيو په سطحه چې له اساسي ځواکونو نه ليرې پراته وو، دنده درلوده، دخپل مسؤوليت دساحې حالات په ټولو جزئياتو سره ځان ته معلوم کړي. افسرانو دشااوخوا جګړه مارو شمير، دهغوی ګوندی تعلق او د قوماندانانو نومونه پيژندل.

په تيره بيا موږ ته دا په زړه پورې وه چې دافغانستان دحکومت او شوروي لښکرو په وړاندې بيلابيلې ډلې څه نظر لري. دهغو دنظر يو تنوع کله کله غوڅ رول لوباوه. ځينو مجاهدو قوماندانانو غوښتل له شوروي پوځيانو سره تماس ونيسي، خو دافغانستان له حکومتي استازو سره يې هر ډول اړيکه ردوله. داسې

سربیره پردې له شوروي پوځي قوماندانۍ سره تماس، تریو حده دا ضمانت هم برابراً وه چې مثلاً دا یا هغه ډله به په نږدې راتلونکي وخت کې له منځه نه وړل کیږي. د فرقې له قوماندانۍ سره تماس د درو د رملو او خوړو د لاس ته وروړلو ښه سرچینه هم ګڼل کیده. ځیني وختونه موږ یو یا څو مجاهد قوماندانان حمایه کول، خو حکومت داسې کارونه نه تر سره کول.

موږ د هرباندې اعمال په دقت څارل. د دښمنانو تقریباً په هره ډله کې د څلویښتم لښکر د کشف د دستګاه له لارې زموږ سړي موجود وو. سره له دې چې د کشف د اداري افسران رسماً زموږ د فرقې پرسونل نه ګڼل کیده، خو فعالیتونه به یې تل د (سیمې) د غټ پوځي قوماندان له ګټو سره برابر وو.

د پنځمې موتوریزه فرقې قوماندانۍ ته د خپل مسؤولیت په سیمه کې د مخالفینو د فعالې ډلې په هکله پوره معلومات وو. موږ غوښتل چې د هرات په ختیځه سیمه کې د حاکمې مجاهدې ډلې له مشرانو سره چې د شوروي پوځیانو د تګ راتګ لوړیه لاره یې خواته غزیدلې وه، تاوده اړیکې ټینګې کړو، خو د ډلې مشر له شوروي پوځیانو سره له هر ډول تماس څخه ډډه وکړه.

کله چې پر هرات د راګرځیدلې «شنې سیمې» حالاتو زموږ لپاره خطرناکه بڼه غوره کړه، موږ هڅې پیل کړې چې په دغه سیمه کې هره فعاله ډله ځان ته ... کړو. وروسته مو غوښتل دا جیر شوي قوماندان له لارې، د مخالف... مشرانو سره اړیکې پیدا کړو.

نازړه والې پوه شوه ، بې له دې چې ځواب ته يې انتظار وباسي ، هغوی ته يې په کمه اندازه دخوړو او دا رو درملو په ورکړه پیل وکړ. طبیعي ده چې نه هغه وخت او نه هم وروسته ددښمنو ډلو دمشرانو دبیا بیا غوښتنو او کله کله اخطارونو سره سره له شوروي پوځیانو نه هغوی یو کارتوس یا یو میل وسله لاس ته نه ده وروړې ( ؟ د. ج)

له یوې نیمې میاشتې اوږدو خبرو وروسته دغه قوماندان له لیدو کتو سره موافقه وکړه. کتنه هرات ته څېرمه ترسره شوه. په دې سره سلا شول چې دښمنان به زموږ ساتونکې پوستې ته راځي چې مستقل ډلګی په کې ځای پرځای وو او د سیمې دکنترول وس يې لاره.

دکتنو سطحې ددې خبرې په پام کې نیولو سره چې دباندېنو مشران زموږ له خوا سپارل شوې دندې څنګه سرته رسوي ، ورو ورو لوړیدې. که دښمنانو له موږ سره تېګی نه کوله ، نو خبرې په لوړه سطحه سر ته رسیدې. ددغو خبرو سطحه له یوې اوونۍ نه بلې ته لوړېده. دیوې دښمنې ډلې له مشرسره دکتلو لپاره ، یوه ورځ خپله دکشف دادارې مشر ورغی ، دانو ترټولو هغه لوړه کچه وه چې دفرقې قوماندانۍ له مجاهدینو سره په کې تماس معقول باله.

دنورو ډلو دمشرانو دراجلبولو کار له ستونزو سره مخکې روان و. دا کار هماغه له پیله زموږ هدف و او دغه تړوله لوبه دهمدې موخې دلاس ته راوړلو لپاره پیل شوې وه. ستونزه داوه چې خبرې دوخت له پلوه ډیرې اوږدې وې ، هره روغه

ستون شوم (شورويانو) نوی په دې پيل کړی وچې دلويديځ افغانستان او دهرات دشاوخوا له يوه ډير قوی قوماندان سره اړيکی ټينګی شی. دکشف او استخباراتو دغسې کارونه په ټول افغانستان او دکابل په شاوخوا کې، زموږ دافسرانو له خوا روان وو. ډير ځله دغو کارونو سترې پايلې هم لرلې دی.

دځو دليلونو له امله، دپنځمې فرقې قوماندانی، دهرات په شاوخوا کې دميشتو جګړه مارو ډلو فعاليت ته ځانګړې پاملرنه اړوله. يو دليل دا هم و چې دښارله منځه زموږ لپاره يو ارزښتمن سړک تيريده. د «شنې سيمې» په شاوخوا او ان دهرات ښار په مرکز کې دکړو وړو ديوالونو له منځه په قطارونو يرغل او دهغو تالاترغی، کول کوم ستونزمن کارنه و. له بده مرغه دغسې پيښې منځ ته هم راغلې دی.

دا خبره هم دځانګړی ارزښت لرونکې ده چې هرات دځو اساسی لويو لارو پر سر پروت و. له «شمال نه جنوب ته» غزيدلې دغسې يوه لار شوروی پوځيانو دموټری قطارونو دتيرولو لپاره کاروله، بله لويه لار چې څه دپاسه شپيته کيلو متره وړاندې پرته وه، دايران خوا ته غزيدلې وه. افغانستان ته زموږ دپوځونو له ورتګ وروسته، دښمنانو له دې ويرې چې موږ به ګنې له دغې لارې هم ګټه اخيستل پيل کوو، په بيړه يې هغه له ماينونو ډکه کړه. بله لار چې دختيځ په لور دچغچران خواته غزيدلې وه، د هيواد دمرکز له ليرې پرتو غرنيو سيمو سره نښلوله. هراتې ياغی ډلو له دغې لارې نه چې دجنوب له خوا دهندوکش دغره په لړی او د شمال له

دډیرو وتلیو افغانی شخصیتونو تاتوبی ګڼل کیږی.

ان که زموږ زړه هم غوښتلای چې له دغه ښاره په څنګ تیر شو، داکار شونی نه و، ځکه چې څنګ ته بله لارنه وه.

زموږ دفرقې دمسؤولیت په ساحه کې دشینډنډ هوایی اډه هم پرته وه. هغه له ایران نه افغانستان ته دټولو رالیږل شویو ډلو لپاره مهم هدف ګڼل کیده، هغوی دځلوینښتم لښکر، دهوایی ځواکونو ددې اډې دړنګولو په اندازه پربل هیڅ شی د بریدکولو دومره شوق نه درلود.

دهوایی اډې دساتلو او امنیت مسؤولیت دحکومتی ځواکونو په غاړه و. تریوې اندازې دپنځمې موتوریزه فرقې ځینی جزوتامونه هم دغه کارته ګمارېدل. دوه ځله، کله چې د (ساتونکو) دهوښیاری اندازه کمه شوې او دهوایی ډګر دساتنې کارته لږه پاملرنه اړول شوې وه، دښمنانو خپل هدف لاس ته وروړی و. په افغانستان کې زما ددویم او دریم ماموریت په وخت کې په دغه هوایی اډه کې ستری ورانکاری سرته ورسیدې. معلومه نه ده چې ولې، خو یرغل پر هغو تم ځایونو کیده چې دحکومتی ځواکونو الوتکې په کې ولاړې وې. خبره دې ځای ته ورسیده چې په لویدیځ افغانستان کې، دافغانستان هوایی ځواک، اصلاً په هوا کې پاتې نه شو: هغه ټول دزمکې پر مخ له منځه یووړل شو.

لومړی ورانکاری د ۱۹۸۵ کال په پیل کی وشوه. هغه په ډیر مهارت سرته رسیدلې وه. دشپې له خوا په بیلابیلو تمځایونو کې په یوه وخت کې دحکومتی

ډيرې ښې ځانګړتياوې هم درلودې. له هغو نه شاوخواته داوړ لمبې خپرې شوې او دلته ميشت (افغاني) هوايي غونډ عملاً تر ستنې پورې په ايرو بدل شو.

ترکومه چې موږ ته معلومه شوه، دا ورانکاري دومره د دښمنانو د لاس محصول نه وه، څومره چې په کې د هوايي اډې (افغاني) مشرانو لاس لاره.

له ورانکاروانو سره مبارزې موږ ډير ستړي کولو. دا هغه ورانکارې ډلې وې چې په لومړي ګام کې له ايران نه راتللې. موږ نه يوازې د ايران په خاوره کې د دښمنانو د روزنې د کمپونو له شمېر نه خبروو، بلکه د هغوى موقعيت هم پوره راته معلوم و. د هغو شمېر دومره ډيرنه و. په افغانستان کې شوروي پوځي قوماندانان تل په دې پوهيدل چې کله او له کومه کمپه ورانکاره ډله راخوځيدلې، دنده يې څه ده او څومره کسان پر لاره دي؟

له بده مرغه د غه اطلاعات موږ ته په لازمه چټکۍ نه بلکه ناوخته رارسيدل. معمولاً له کمپ نه د مجاهدينو د راخوځيدو په څلورمه ورځ، د هغو خبر موږ ته رارسيده، خو دا ډيره اوږده موده ده او د هغې په لړ کې اطلاع خپل ارزښت له لاسه ورکاوه، ځکه چې ورانکارې ډلې نه يوازې په د غه موده کې جګړه کولى شوه، بلکه دا امکان يې هم درلوده چې د خپلې دندې له ترسره کولو وروسته، بيرته ستنه شي.

«پر کټ ولې روجايي هواره نه ده؟»

د ۱۹۸۱ کال په دوبي کې د شوروي اتحاد د دفاع وزارت مشر تابه، افغانستان

و. د ترکستان د پوځي حوزې پر قوماندان سربیره چې تقریباً هیڅکله یې څلوېښتم لښکر یوازې نه پرېښودو ده، (کابل ته) د منځنۍ اسیا د پوځي حوزې قوماندان ستر جنرال د. ف. یازوف، د کارپات د پوځي حوزې قوماندان ډگر جنرال و. ا. بیلیکوف او له قفقاز ها خوا پوځي حوزې قوماندان ډگر جنرال و. ف. کولیشوف هم راغلل. نه پوهېږم چې ولې، خو له دوی سره د مسکو د پوځي حوزې قوماندان ستر جنرال پ. گ. لوشیف هم راغلی و.

له قوماندانانو سره یو ځای د حوزو د لارښوونې اساسي برخې یعنې د کشف، توپچي او هوایي چارو مسؤولین هم کابل ته راورسیدل. په کابل کې هغوی د (څلوېښتم) لښکر په سطحه د حالاتو جاج واخیست او وروسته بېلابېلو عسکري قشلو ته وخوځېدل. هرچا له یو ځانگړي شي سره مینه ښودله: چا د هیواد په لویدیځ کې له ځانگړیو غرنیو او صحرایي سیمو، چا په شمال ختیځ کې د غرنۍ سیمې او د هغې ځانگړي اقلیم او چا د نه تحمل کیدونکي تودوخې او رطوبت په څېړنه لاس پورې کړ، خو شینډنډ هیچا له پامه و نه غورځاوه.

نه غواړم افغانستان ته د دغو راغلو کسانو په مسافرت بشپړه رڼا واچوم. زما په نظر افغانستان ته د پوځي لویو یا وړو قوماندانانو استول، ددې له پاره چې مخامخ د جگړې له تجربو نه زده کړه وکړي، ښه خبره وه، خو له بده مرغه زموږ له جنگي تجربې نه هغه وخت چا گټه وانه خیستله او چې د افغانستان جگړه پای ته ورسیده، بیا خو اصلاً چا پام لرنه ورته ونه کړه.

زموږ لپاره د خپگان ځای دی چې دغه راټوله شوې تجربه د هیچا په کار نه شوه.

لازمه وه، نه پلی کیدې. افغانستان ته ددغو راغلیو قوماندانانو له ډلې نه، له یوې کوچنۍ استثنی پرته، نورو یوازې دقطعو دسوق الجیش، دسر تیرو دخوراک او داسې نورو اړخونو سره مینه ښودله. شک نه شته چې دا مهمې خبرې دي او ان په جګړه کې هم باید کم ارزښت ورنه کړل شي، خو زموږ لپاره تر ټولو غوره موضوع دجګړې له پاره تیاری او دجګړه ییزو عملیاتو ترسره کول وو او داهم مهمه نه وه چې جګړه کنډک، که غنډ یا فرقې پیل کړې ده.

دځلو یښتم لښکر میلمنو افسرانو په افغانستان کې دحالاتو په وړاندې خپل دریغ نه پټاوه. دا یوه سیمه ییزه جګړه وه چې خاصې ځانګړتیاوې یې لرلې او شک دی چې دهغې تجربه دې مثلاً دکاریات دپوځی حوزې پرسونل ته ګټوره واقع شي.

که له اوپراتیفی – ستراتیژیکی نظره دې ستونزې ته وکتل شي، نو دغسې قضاوت سم برېښي. د کورنیو پوځی حوزوله خوا دافغانی جګړې دتجربې کارولو ډیر لږ احتمال درلود. فرقه یا بیلابیل جزوتامونه خو لاپریږده، ان په مجموع کې دځلو یښتم لښکر دټولو عملیاتو اندازه دپوځی حوزو له عملیاتو سره چې دجګړې په شرایطو کې دجلا جلا جبهو بڼه غوره کوي، اصلاً دپرتلې وړ نه برېښي، خو بیاهم هره جګړه، ان ډیره پراخه هم دتاکتیکی عملیاتو په ګډون له څو جوړوونکو برخو څخه عبارت وي. افغانستان ته راغلیو افسرانو او جنرالانو ته په کار وه چې له دې خبرو سره ځان اشنا کړي.

زموږ ځینو قوماندانو بیخی داخبره هېره کړې وه چې جګړه څه ته وایي او ځینو خو بیخې برخه نه وه په کې اخیستې. د (راغلیو) قوماندانانو له ډلې څخه یوازې

درلوده، خو دهغوی تجربې هم اوس بیخی زړې شوې وې، او دهغوی مرستیالانو اصلاً په کومه جګړه کې ګډون نه وکړی، له دې امله افغانستان ته دهغوی راتګ به (دهغوی لپاره) ډیر ګټوروای.

له دې سره سره ټوله اوونۍ په افغانستان کې په دې خبرو تیره شوه چې ایا دسرتیرو بسترې سمې جوړې دی او که نه او ایا دمیز ترڅنګ څپلکې هم پرتې دی او که څنګه؟ که کله به دڅو ساعتو لپاره مخامخ د جګړې ډګر ته هم لاړل نو بیا به یې داسې وړې وړې نیوکې کولې لکه داچې: ولې دعملیاتو دلارښوونکی او مثلاً دکنډک یا توپچی لوا ، دقوماندان ترمنځ دلوډسپیکر په وسیله رابطه نه شته.

دوی داسې ګڼله چې داګنې ی شوروی دی او لګیا دی کوم پوځی تمرین یاښوونیز عملیات کوی. هلته خو د قوماندان مخې ته ښکلی میزونه ایښی وی. په لارو کې تازه شنیلی شیندل شوی او دسرتیرو بنه ښه رنه او په زړه پوری وی. په افغانستان کې خو خبره بیخی بله وه.

په لومړیو وختو کې چې جګړو ایله نوی زور اخیست، دځلوینښتم لښکر دځینو افسرانو زړه غوښتل هغسې عمل وکړی چې په کتابونو کې یې لوستی وو. ځینې (پخوانی) انګیرنې او عادتونه هم لاپاتې وو، خو دافغانستان شرایطو مونږ اړکړ و چې ډیر ژر له دغه شی نه ډډه وکړو او باوری شو چې ځان ښودنه له زیان پرته بله کومه پایله نه لری. له همدې امله مې دیو شمیر راغلیو قوماندانانو دپښتنو د اوریدو حوصله نه لرله. هغوی له دې خبرو سره هیڅ مینه نه ښودله چې مثلاً خوارډه

دقطارونو دامنیت ساتلو ته وګمارو. په پوځي اصولنامو کې په دې هکله یو ټکی هم نه دی راغلی. یوازې دومره ویل شوي دي: ښه دي وساتل شي، خو دا چې داکار څنګه ترسره شي، باید له تجربو موږ ده کړي وای.

(په اصولنامو کې) مثلاً د پلو قطعو او توپچي یا هوایي ځواکونو ترمنځ د همکارۍ د څرنګوالي او اندازې په هکله هم بشپړ معلومات نه وو راغلي، خو د جګړې په ډګر کې باید څنګه داکار ترسره شي؟ چاچې جګړه لیدلې وه، موږ ته به یې ویل (داخبره مې اوس هم په یاد ده خو هغه وخت مې چندان باور نه پرې راته) چې د کنډک قوماندان باید د توپچي جزوتام له قوماندان سره دورور په شان اړیکې ولري. هغوی باید یوځای ډوډۍ وخوري او په یوه حمام کې سره ولامبي. دافغانستان پیښو داخبره یوځل بیا تأئید او د کاني کرښه کړه.

زموږ تجربې ته هیچا پام ونه کړ، هغه یې په ښه ووهله او د پلی کیدو لپاره یې امکان ورنه کړ. فکر کوم داسې ګڼل کیده چې دافغانستان دجګړې په هکله خاموشي ترهرڅه غوره ده، خو زما په فکر، دجګړې د ښلولو علتونه باید پر ارزښتمنې جنګي تجربې ناړوه اغیزه ونه ښندي.

## دوسلو عصري کیدل

دهغو پوځي حوزو له قوماندانانو پرته چې دجګړې ډګرترې ډیر لیرې پروت و، افغانستان ته دمرکزي عمومي (پوځي) ادارو مشران ژر ژر راتلل. عموماً دغو افسرانو حقیقي او غوره کارونه سرته رسول. مثلاً دزغره والو ګاډو دلویې ادارې رئیس ډګر جنرال پوتاپوف بیا بیا افغانستان ته راغلی دی. ترهغو چې زه هلته

معاینې ته راغلی و. دهغه په هیئت کې به تل دټانکونو پیاوړي جوړوونکی او دسترو پوځي فابریکو رئیسان شامل وو، هغوی دې پوښتنو ته ځواب لټاوه چې پرماین دټانک دورختلو په وخت کې څنګه دهغه دعملې ژوند ژغورلی کیدای شي. په پای کې دټانکونو او زغره والو ګاډو دلاندینیو برخو دزغرې د دوه ځله پنډوالی طرحه منځ ته راغله. سربیره پردې، دننه په ټانک کې داسې اضافي او عاریتي برخه په پام کې ونیول شوه چې دتوغندي دلګیدوله امله یې دټانک دورانیدو دمخنیوی امکانات برابرول. داصلي زغرې له پاسه بله زغره داسې ونښلول شوه چې دتوغندي دلګیدو په وخت کې یې دمحرکه غازقوت کمزوری کاوه او پر اصلي زغره داساسي او وروستي ګوزار شدت یې راټیټاوه.

افغانستان ته دنورو عمومي ادارو مشران هم ددې لپاره راتلل چې دخپل تخنیک دعصري کولو لارې چارې ومومي او په دې توګه دسر دزیان اندازه راټیټه کړي. دساري په توګه د ګ. ر. ا. و د ادارې افسران، د پلوځواکونو دتوغندیو او توپچي برخې دمشرتابه غړي، دهوایي ځواکونو استازي او نور څلویښتم لښکر ته راغلي دي. هوایي مارشال کوتاخوف څو واره راغی. سو - ۲۵ ډوله یرغلیزې الوتکې چې هغه وخت نوې ډګر ته راوتلې وې، دهمدغه سړي دلاس محصول دی. دسو - ۲۵ ډوله الوتکو یوازینۍ ډله دشینډنډ په هوایي ډګر کې ولاړه وه او دتولید وونکې فابریکې کارکوونکو، انجنیرانو، کارګرانو او تأميناتي پرسونل دغه الوتکې څیړلې او دجګړه ییزو عملیاتو په وخت کې یې دهغو څارنه کوله.

هلیکوپټرو په وروستي برخه کې او دروازې ته نږدې ا. ګ. س-۱۷ ډوله درندې ماشینګنې او توغندي ویشتونکي ځای پرځای شول. ددې کار پایلې حیرانوونکې وې.

ځینو ماهرانو ځیني داسې عجیب شیان جوړول چې دجګړې په شرایطو کې دهغو له اغیزې نه سترګې پټول ممکن نه دي. دنمونې په ډول: په ځینو زغره والو ګاډو کې هاوانونه ځای پرځای کړی شول. په لومړي سرکې (۱۲۰) ملي متری هاوانونه نصب شول خو پایله یې هیڅ وه، ځکه ډیر درانده وو. وروسته ۸۲ ملي متری هاوانونه سم دګاډي پرسر ولډنګ کړای شول او ګټه اخیستل ترې پیل شول. څرنګه چې جګړه له مارش وروسته پیل کیده او توپچي ته دچمتووالي لپاره، لاپوره وخت نه پاتې کیده، نو په داسې حال کې کیدای شول چې سرې زغره وال ګاډي و دروي او دهاوان خوله ډزو ته چمتو کړي.

دمحاربوي ماشین او دغره وال ګاډي دقُلې پر سر ا. ګ. س-۱۷ ډوله توغندي ویشتونکي ځای پرځای شول. نښه ویشتونکي له لږ تمرین وروسته کولی شول، دخپلې جنګي وسیلې د توپ یادرانده ماشینګن ترڅنګ ددغه هاوان مستقل چلول هم زده کړي. که دقُلې څرخیدل په پام کې ونیول شي نو نښه ویشتونکي دډزو لپاره پراخ امکانات او یو ناپایه ساحه پیدا کوله. وروسته د «واسیلیوک» په نامه هاوانونه هم پیدا شول چې پرتا یرونو سپاره او توپونو ته خورا ورته وو. له عادي هاوانونو سره دهغوی اساسي توپیر په دې کې و چې هغوی پرله پسې ډزې

هغوهاوانونو او درندو ماشینګنو چې مورږ دګاډو پرسرځای پرځای کول، له متحرک حالت نه ددومره زیاتو ډزو وس نه درلود. دغه وسلې ډیر ژر دخوځیدو او جمپونو له امله ورانیدې اوله کاره غورځیدې، له دې کبله دوسلې دکارونې موده کله کله درې ځله راټیټیده. استحکام چیانو هم په تیره بیا دماینونو دکشف اوخنثي کولو په وخت کې عجیبه عجیبه طریقې کارولې. تقریباً داتیا یمې لسیزې ترنیمایی پورې دښمنانو له هر هغه څه نه چې په لاس ورتلل دماینونو دجوړولو لپاره کار اخیست، مثلاً: یو عادي لګن به یې له چاودیدونکو موادو او کانونه ډک کړو چې دچاودنې په وخت کې ترې هرې خوا ته ډیرې ټوټې خپرې شي. له دې نه یو پیاوړی ماین جوړیده چې ډیر ځله له لیرې نه هم اداره کیدای شو، دغسې ماینونه معمولاً دلارې په تنګو برخو کې ایښودل کیدل. دښمنان پوهیدل چې هرجنګی ګاډی مخابره اوهره مخابره انتن لري، نو ځکه هغوی له ماین نه راوتلی سیمان لومړی په زمکه کې پټ بیول، بیا به یې دسړک پرغاړه دولاړې ونې له پاسه دسړک هغې غاړې ته تیر کړل او هلته به یې له بټري سره وصل کړل. دلومړی ګاډی انتن چې به په دې سیم ولګیده نو دبریښنا دشارتې له امله به داسې چاودنه وشوه چې نه یوازې دګاډي پسرلی له منځه تلله، بلکه لاره هم بشپړه دنورو ګاډو پرمخ بندیدله. په همدغه وخت کې به پر بند شوی قطار دډزو باران هم پیل کیده. وروسته به چې کله دلارو تنګو برخو ته رسیدو نوله ټولو ګاډونه به موآنتنونه کوز کړل او هغه نری نری سیمان به مو په غور سره لټول. داستحکام چیانوداسې لارې چارې وموندلې چې د پرسونل دژوند دژغورلو سبب کیدلې. د روسي

شود.

## دهرات «پاکول»

د ۱۹۸۰ کال له نیمایی نه موږ مجبور شو چې دهرات ښار «پاک» کړو. دا په لومړي گام کې له دې امله چې ښار نه یوازې دچارچاپیر شنې سیمې، بلکه دټول لویدیځ افغانستان دمخالف غورځنگ په مرکز بدل شوی و. موږ غوښتل او که نه خو مجبور وو، دښار پاکولو ته وخت په وخت اقدام وکړو. داریښتیا هم تصفیوی عملیات وو او حقیقي جگړه ورته نه شي ویل کیدای. دهغو دترسره کولو ترتیب داسې و.

دجگړه ییزو عملیاتو دپلان کولو له لار، موږ هڅه کوله دښمنان مجبور کړو چې خپل ښه ډیر ځواک دهرات چارچاپیر «شنې سیمې» ته راولي. هغوی له مخامخ جگړو نه ویریدل او هڅه یې کوله تروسه وسه داکارونه کړي. هرکله چې دښمنانو زموږ له خواد کومو پوځي عملیاتو دسرته رسیدلو خبر اوریدلی، نو په بیړه یې خپلې پښې دخطرله سیمونه سپکې کړې دي. مجاهدین یا خپلو هغو احتیاطي مرکزونو ته په شاکیدل چې چیرته لیرې په غرونو کې یې جوړ کړي وو او زموږ چندان پاملرنه یې ځانته نه اړوله او یا به په کومه «شنه سیمه» مثلاً دهرات په شاوخوا کې پټیدل.

دجگړه ییزو عملیاتو په دویم پړاو کې، دځلوېښتم لښکر جزوتامونو «تصفیوی» عملیات سرته ورسول. دعملیاتو لپاره دتیاري په وخت کې دکشف

نیمي دوه اوونیو په لړ کې موږ معلومات ترلاسه کړل چې په سیمه کې پر میشتو باندونو سربیره ، نورې پنځه یا شپږ وسله والې ډلې هم دې ځای ته رارسیدلې دي.

پر ځای ده که ووایم چې په لومړي سر کې دجاسوسانو په خبرو پوره باورسم نه و ، خو وروسته وروسته چې مو دمخابرې له لارې دمعلوماتو د ترلاسه کولو پراخه تجربه پیدا کړه ، نو موږ ته دډیرو دقیقو معلوماتو رارسیدل هم پیل شول ، په لوړیو کلو کې مو دا امکانات ځکه نه لرل ، چې دښمنانو له مخابراتي وسایلونه کار نه اخیست ، په بله وینا ، هغوی دغه وسایل هغه وخت نه لرل. وروسته بیا موږ دهغوی مخابراتي څپې پیدا کړې. نه یوازې مو دهغو محتوی ځان ته معلوموله ، بلکه دمخابرې څپه چې له کوم ځایه خپریده ، نو هغه موهم معلومولی شوه ، دمخابرې له لارې لاس ته راغلیو معلوماتو موږ ته دا وس راکاو چې معلومه کړو دښمنان چیرې دي او په نږدې راتلونکې کې دڅه عمل نیت لري ، دهغو مشر چیرې دي ، څوک امرونه ورکوي او کوم کسان یې سرته رسوي.

د « پاکولو » په وخت کې موږ دمخالفینو نه پخلا کیدوونکې برخه ددې لپاره له نورونه تجریدوله چې هم موږ او هم سیمه ییزو حکومتي مقاماتو ته مزاحمت ونه کړي. دویم پړاو زموږ لپاره ډیر ستونزمن و ، که څه هم ظاهراً داسې بریښیده چې هیڅ مشکل وجود نه لري.

نقشه تل دا وه چې موږ دسترگو په رپ کې نوی شوروي ټولگې سیمې ته رارسول او هغوی هم په بیړه ښار محاصره کاوه ، خو دهرات بشپړه محاصره عملاً ناممکنه وه. دښار گردچار د « شنه سیمه » راتاو شوې وه. له دې امله موږ مجبور

دغسې عملیاتو معمولاً دوه یا درې اوونۍ او کله کله یوه میاشت وخت نیوه.

دڅلوېښتم لښکر ځواکونو لومړی دهرات ښار، دهغه ترڅنډو پورې داسې کلابند

اوه چې هیچا ته یې دوتلو اجازه نه ورکوله. وروسته بیا حکومتي عسکرو یعنې

خپله افغانانو «تصفیوي عملیات» پیل کول. بیا موږ خپل دا پوځي ټولګي بلې

سیمې ته لیږدول، خو دهرات له منځه دتیرې شوې لویې لارې سا تونکې قطعې

موله ځایه نه خوځولې، عملیات په همدې توګه پرمخ تلل.

معمولاً دافغانستان داردو اوولسمې پلې فرقې هم له موږ سره په عملیاتو

کې برخه اخیسته. ډیر وروسته موږ ددغې فرقې له خوا ددندې داجرا کولو

څرنګوالي په خپلو سترګو ولیده. له ښارنه یې دوتلو ننداره ډیره په زړه پورې وه.

مثلاً: دنده ورته سپارل کیده چې پریوه واټ تیره شي، نوځکه هغوی مجبور وو

ټول کورونه، زیر زمیني، بامونه، لنډه دا چې ددغې ساحې ټول شیان وپلټي.

افغانانو معمولاً له ځانه سره دسیمه ییزو مقاماتو استازی او ان ښځې هم ددغو

عملیاتو لپاره بیول، خو کله چې به دغه پلټنه پای ته ورسیده او حکومتي عسکر

به دکوڅې په هغه بل سرکې راووتل، نو هرڅه چې به یې لاس ته ورغلي وو، لکه

کټونه، غوټې او نور شیان له ځانه سره بارول او وړل یې. عملاً دا دهغوی لپاره

قانوني «غنیمت» ګڼل کیده.

له لومړۍ پلټنې وروسته چې کله موږ پوه شو دا کارونه څومره بد عواقب لرلې

شي، نو موږ په دې ډول عملیاتو کې دحکومتي پوځونو له ګډون څخه ډډه وکړه.

البته «تصفیوي عملیات» وروسته هم روان وو، خو بڼه یې لږ څه بدله شوه. موږ

کارکوونکو او گوندي غړيو څخه گټه اخيستسه. موږ هغوی له خپلې سيمې څخه ښارته داسې خوشې کول چې يو به په بل پسې ښارته ورنه کړي، نو ځکه هغوی دغې ښارته له ويرې دخه شي د پټېدلو او زموږ د محاصرې له کړۍ نه د هغو دوړلو جرأت نه کاوه. په لومړي سر کې زموږ دامنسوبه بريالۍ وه، خو وروسته بيا هرڅه هماغه پخوانی رنگ غوره کړ. هغوی چې د هيڅ ډول جزا او کنترول خطر په ځان پسې نه ليده نو دا به ترې هيره شوه چې څوک گوندي دي او څوک خاديست دي او ځکه يې نو د پخوا په څير دخلکو د ښمنيو غلا کولو ته همداسې دوام ورکاوه. چې کله په دې پوه شو، د دغسې «انقلابي» تالان مخه نيول گران دي او شوروي پوځونه په ښار کښې د مستقلو «تصفيوي عملياتو» د سرته رسولو اجازه هم نه لري نو وموپيتيله چې دا «پاکول» دې نور بس او عمليات دې په بله بڼه ترسره شي. د پنځمې موتوريزه فرقې قوماندانۍ له افغاني لوري سره خبره داسې غوټه کړه چې هغوی به د ښار له کلابندې شوې برخې نه له ښځو او ماشومانو پرته نور ټول اوسيدونکي بهربيايي. وروسته بيا ټول نارينه وگړي په يوه پراخ اوښه ساتل کيدونکې ډگر کې راټوليدل. مثلاً په هرات کې ددې مقصد لپاره له ورزشي لوبغالي نه کار اخيستل کيده. وروسته بيا خپله افغانانو ددغې سيمې هر وگړي پلټيه.

په لوبغالي کې د تقريباً هرو پنځو سو مترو په واټن زغره وال گاډي ولاړ وو. نارينه وگړي له کومې خاصې بيرې يا گڼې گوڼې پرته دزغره وال گاډو له منځه

ښودل چې مثلاً کوم سړی د دښمنانو له کومې ډلې سره اړیکې لري. څنګ ته ناستو دافغانستان دامنیتي ارګانونو افسرانو به دهغوی شاهدي ثبتوله.

ډیرو دغسې جاسوسانو نه یوازې دمجاهدینو پلویان په ګوته کول، بلکه خپل شخصي دښمنان به یې هم په ګیر ورکول. هغوی هڅه کوله، له خپلو ګاونډیانو څخه دکومې عقدې له مخې غچ واخلي. دبیګناه خلکو د تورن کولو هڅې له هماغه پیله شنډې وې، ځکه چې له دښمنانو سره دمګرو کسانو نومول او ښودل (یو وارنه) بلکه درې ځله تر سره کیدل.

هغه څوک چې به دحکومت په وړاندې دسرکشۍ په تور تورن شو، دافغانستان دامنیتي ارګانونو لاس ته ورته، اوله هغوی سره به دوی مستقل کار کاوه. زموږ دفرقې قوماندانۍ دهغوی په راتلونکي سرنوشت پسې ډیوه نه ګرځوله، خو کله چې به په هرات کې بیا «دپاکولو عملیات» پیل شول، بیا به مو هغه کسان ترستر ګو شول چې درې یا څلور میاشتې مخکې «له فلترنه تیر شوي وو» نه پوهیږم چې دافغانستان دامنیت وزارت څنګه کار کاوه، ښکاره ده چې افغاني خادیستانو دعملیاتو په ترځ کې نیول شوي کسان بې تحقیقه او بې محکمې خوشې کول. هغوی بیرته خپلو کورونو ته ستنیدل او هرڅه له سره پیل کیدل.

دمحدودو پوځي قطعاتو پرسونل ددغسې عملیاتو په اجرا کې کوم خاص مشکل نه درلود

جزو تامونو څخه د دغو کارونو لپاره ګټه اخيستل مور، ته دومره په زړه پورې نه وو.
دغسې عملياتو يو ښه اړخ درلود او هغه داچې : دسر زيانونه په کې نه پيښيدل.
کـه داسې زيانونه کله منځ ته هم راغلي ، نو علت يې يوازې په بيباکـې کـې دی.
مثلاً: کوم سر تيری نيت کړی چې له لړمانو او نورو ورته عجايبونه ليرې د ټانک
پرسر، سره لمر ته څملی. په دې وخت کې د کوم پټ شوی ښه ويشتونکی ډز هغه له
پښو غورځوی.

# د تورو غرونو څنګ ته

په افغانستان کې د شوروی پوځونو د شته والی په پړاو کې د افغانستان داسې
کلي ، ښار او ولايت نه و چې له پوځي پلوه زمور او افغاني پوځونو لپاره آرام او
مصئون بلل شوی وای. داخبره د افغانستان د دويم ستر ښار کندهار په هکله هم
صدق کوی ، دغه ښار دخپل جغرافيايي موقعيت له امله تل د افغاني مشرانو او
پاچايانو لپاره غټ ارزښت درلودلی دی. پر کندهار لاس بری سړی ته د ټول جنوب
لويديځ افغانستان د کنترول وس ورکوی. په لرغونو زمانو کې څو کارواني لارې
هم دلته ښليدلی او زمور په وخت کې کندهار ته ځيرمه د دښمنانو څو اصلي لارې
تيرې شوې وې. دې ښار له دې امله هم ځانګړی ستراتيژيک ارزښت درلود چې
په جنوبي برخه کې ، دافغانستان ، پاکستان ، ايران او فارس خليج په سيمه کې
د نورو پرتو هيوادونو ښلولونکې کړی بلل کيده.

دغه سيمه غرنۍ نه شي بلل کدای ، ځکه کندهار زياتره په يوه هواره زمکه کې

افغانستان ته د شوروي پوځونو د ننوتلو په وخت کې د پنځمې موتوریزی فرقې له ډلې نه یو غنډ بیل کړی شو چې ورسته د مستقلې موتوریزه لوأ سطحې ته لوړ شو. هغه یې «او یایم» لمبر وټاکه او کندهار ته یې ولیږه. همدا چې او یایمه لوأ کندهار ته ورننوتله نو په داسې سختو جګړو کیوته چې له ډیرو کوچنیو ځنډونو پرته یې له دغه هیواده زموږ د وتلو تر وخته دوام درلود.

د افغانستان په جنوب، په تیره بیا کندهار کې حالات یوازې له دې امله نازک نه وو چې موږ له افغاني حکومتي پوځونو سره اوږه پر اوږه په دې سیمه کې له پرله پسې جګړو سره مخامخ وو. دښمنانو هم دلته د خپلې سیمې د پراخولو او پر کندهار او ټولې دغې سیمې د لاس بری لپاره په خپل منځ کې پرله پسې جګړې کولې.

د ښار په جنوب ختیځه څنډه کې یو وخت امریکایانو نسبتاً لوی هوایی ډګر جوړ کړی و چې اوس په کې یوه کوچنۍ هوایی اډه ځای پر ځای وه. په همدغه ډګر کې د محدودو قطعو قامانداني، د کندهار او د هغه د شاوخوا د څارنې لپاره او یایمه لوأ ځای په ځای کړه. د لوأ د دغه ډول ځای پر ځای کولو اساسي ځانګړتیا په دې کې وه چې زموږ جنګي ګاډو یوازې د ښار له منځه پر تیرې شوې لارې کولای شول، ځان له کندهار نه د شینډنډ، هرات او نورو لویدیځو ولایتونو خوا ته غزیدلې لارې ته ورسوي. بله لار اصلاً نه وه. د ښمنانو هم له همدې حالت نه ګټه او چتوله. داسې ورځ دې خوارده شي چې زموږ پر قطارونو به یرغل نه وي شوی. کله کله به زموږ د سرتیرو او افسرانو د مرګ له امله له دغې لارې نه کار اخستل د څو

کړي.

موږ په خپل وار هڅه کوله چې د کندهار گارنیزیون ته ضروري شیان له ځنډه پرته او په پرله پسې توگه ورسیږي. په اوونۍ کې دوه یا درې ورځې ځانگړې شوې وې چې پر دغه لاره یوازې په خوړو، د سون موادو، مهماتو او د لوا په اړتیاوړ نورو شیانو بار شوروي قطار تیریدلی شو. د قطار د تیرولو لپاره مجبور وو، بشپړ پوځي عملیات تر سره کړو. مثلاً: مجبور وو د لارې محاصره ماته کړو. د هغې په اوږدو کې خپلې پوستې ځای پر ځای کړو او د لارې له شاو خوا نه دښمنان تر ممکنه حده لیرې کیدو ته اړ په دې توگه د خپل قطار امنیت تأمین کړو.

د ۱۹۸۱ کال په پسرلي کې د پلانی عملیاتو له سرته رسولو وروسته مو وکړای شول، د لارې په شا و خوا کې امنیتي سیمه خورا پراخه او دهغې په اوږدو کې خپلې ساتونکې پوستې ځای پرځای کړو. داسې ښکاریده چې اصلي خنډونه له منځه تللي او اوس گیدای شي د کندهار له لویې لارې نه د انتقالاتو لپاره کار واخیستل شي. خو موږ غلیم پوره نه و پیژندلی. دښمنانو وروسته هم پر دغه لاره یرغلونه کول، خو د هغو شدت له پخوانه کم و. پر شوروي قطارونو د مخالفینو دیر غلونو مخنیوی په څو د لیلونو شونی نه شو:

لومړی دا چې غلیمانو سیمه ښه پیژند له اوله دې امله د جگړې په وخت کې پر موږ بر لاسي وو. هغوی په همدې غرورغو کې دنیا ته راغلي او رالوی شوي وو او ځکه نو زموږ په انډول هغوی ته دلته جنگیدل ډیر آسان وو.

تل پر هماغه یو ځای ولاړې وې. لوأ د لارې د ساتلو لپاره له متحرکو ځواکونو نه د کار اخیستلو وس نه درلود، ځکه یوازې د لارې د گز مې لپاره، له هغه څه نه چې اوس مو درلود، درې ځله زیات ځواک په کار و. دومره ځواک له کومه شوی وای؟

دښمنان د لارې په اوږدو کې د جوړو پوستو له موقعیت، د هغو د وسلو له ډول او د کار له څرنگوالي ښه خبریدل، سره له دې چې موږ پرله پسې په هغو کې بدلون راوست او د خپلو پوستو د اورځواک مو له یو ځل نه بل ته پیاوړی کاوه. پوستو ته ځیرمه سیمې مو په اوږده واټن کې په ماینو ډکې کړې وې او د شپې او ورځې په هوا کې استخباراتي الوتکې گرځیدې چې دنده یې دلویې لارې څنگ ته دباندیو نو د فعالیت څارنه وه. دهوایي څارنې له لارې مو په بیړه زموږ پر پوستو د دښمن د توپونو او ریاکتیف توغندیو د ویشتلو ځایونه تشخیص کول. د غه مورچلې تر پیژندنې سمدلاسه وروسته، زموږ له خوا له منځه وړل کیدې. له دې سره سره دښمنانو په بیړه هغه بیرته له سره ابادولې. د (مجاهدینو) قوماندانانو په اعظمي بنیه د پاکستان له خاورې ښه گټه او چتونه چې پر مخامخ لاره یې له کندهاره سل کیلو متره واټن درلود. هغوی له بهرنه بې شمیره وسلې، مهمات او نور ډیر شیان را رسول. دا په کندهار او د هغه په شاوخوا کې د څو کلونو په لړ کې دجگړو د ډیر دوام دریم دلیل دی: داویایم لمبر موتوریزه مستقلې لوأ قوماندانی تر پایه ونه کړای شو، د دښمنانو مقاومت مات او په سیمه کې د هغوی اغیزه پای ته ورسوی.

د کندهار په شاوخوا کې سختو جگړو خپل ځای د ښار د ننه «تصفیوی

وای کړی، نو دغه ستراتیژیکه سیمه مو له لاسه وتلای شوه.

زما ترقوماندانۍ لاندې د پنځمې موتوریزه فرقې جزوتامونه ډیرکم په کندهار کې جګړې ته لیږل کیدل. فرقې یوازې له اویایمې لوا سره د مرستې لپاره په ځینو پیچلو عملیاتو کې برخه اخیستله. دغسې یو جګړه بیز عملیات د کندهار په شمال لویدیځه څنډه کې د ۱۹۸۱ کال د منۍ په پیل کې ترسره شول. پر ښار راګرځیدلې «شنه سیمه» په تیره بیا هغه برخه چې د سړک په خوا کې تیره شوې وه، زموږ لپاره تر ټولو ستونزمن ځای ګڼل کیده. موږ نه یوازې باید «شنه سیمه» «پاکه» کړې وای، بلکه د کندهار په شمال لویدیځ کې میشت باندونه موهم باید له منځه وړي وای. مجاهدینو د تورغره په سیمه کې چې نو موړې لویه لارې په ډیر نامناسب ځای کې پرې کوله، سنګر نیولی و. کله کله هغوی په اوونیو - اوونیو نه کندهار ته اونه هم له کندهاره زموږ موټرو ته د تګ اجازه ورکوله او موږ مجبور وو داویایمې لوا دا ړتیا وړ مواد د هواله لارې ولیږدوو.

کندهار ته څیرمه پوځي عملیات یو نیمه میاشت اوږده شول. د جګړن و. مارتیروسیان ترقوماندانۍ لاندې غنډ د غلیم سختو حملو ته ځان نیولی و. غلمیانو کله کله داسې سخته جګړه کوله، تا به ویل بهرته - له کومه ځایه چې مجاهدین راغلي دي، دبیرته ستنیدو ټولې لارې ورانې شوې دي، خو متل دی چې وایي: کودړی په کودړي ماتیږي. ډیره موده موهڅه وکړه چې هغوی له لارې څخه یو څه په شا او د سړک څنګ ته امنیتي ساحه پراخه کړو. الوتکو پر همدغو سیمو

په همدې کندهار کې زه د لومړي ځل لپاره په ناروغۍ اخته شوم. سخت زېړی (هیپاتیت) نیولی وم. په څلوېښتم لښکر کې هغه وخت داسې یوې ټوکې رواج موندلی و: سرتیري زېړی نیولي دي، افسران د بوتکین په ناروغۍ اخته دي او جنرالان د هیپاتیت تداوي کوي. زه هم د بوتکین په ناروغۍ اخته شوم، خو ختمه مې په هیپاتیت کړه: ځکه د ۱۹۸۲ کال په فبرورۍ کې ماله (ډګروالۍ نه) د برید جنرالۍ رتبې ته ترفیع وکړه. *

زه یوه نیمه میاشت په روغتون کې بستري وم. د ۱۹۸۱ کال په پای کې د زېړي ناروغۍ زموږ قطعې را لاندې کړې: یوازې په پنځمه موتوریزه فرقه کې نږدې درې زره تنه یعنې هر څلورم سرتیري په دې ناروغۍ اخته شوي و. له ما سره یوځای زما ټول مرستیالان او تقریباً د ټولو غنډونو قوماندانان په زېړي اخته شول. یوازې د فرقې درستیزوال ډګروال م. ستریلنیکوف مقاومت کاوه. هغه هم بالاخره ناروغۍ لاندې کړ، خو څه موده وروسته فرقې عملاً خپله جګړه ییزه وړتیا له لاسه ورکړه او جنګېدلی نه شوه.

هرسړی له زېړي نه د جوړېدو (نقاهت) دوره په ځانګړې توګه تیروي. زما حالت مثلاً ډېر خراب و: دوه اوونۍ مې تبه نه ټیټېدله، سر مې ګرځیده او ګومان مې کاوه چې ټول غړي مې مات دي. خوراک، څښاک مې زړه ته نه کېده، ان د سګرټو څکول مې په یاد نه وو. بنایي هغه وخت مې کولی شول پرې یې بږدم!

---

* لیکوال غواړي د طنز په ژبه دیوې ناروغۍ درې نومونه یادکړي. دهغې نوم دسرتیري له پاره «زېړی» د ډګروال تر رتبې صاحب منصبانو له پاره «بوتکین» او دجنرالانو له پاره «هیپاتیت» وو. دې لیکرجې د «بوتکین»

له کندهاره کابل ته وغوښتل شوم او له هغه ځایه مخامخ له نورو افسرانو سره یوځای د کلنیو دوديزو جاج اخیستنو لپاره تاشکند ته لاړم. غالباً د غسې غونډو ته د فرقې له قوماندان نه پورته ټول افسران رابلل کیدل. دا د هغه چا لپاره چې په افغانستان کې يې دنده سرته رسوله، يوځه نامناسب غونډې کار و. وروسته بيا ددې غونډو له جوړولو نه ډډه وشوه.

د ترکستان د پوځي حوزې په قرارگاه کې مو دوه ورځې تيرې کړې. بيرته د معمول په څير په دووجلا الوتکو کې راستانه شو. يوه کابل ته روانه وه او بله چې زه هم په کې وم، دافغانستان لويديځ زون ته، تر شيندنډه مو په يوځل الوتنه ونه کړه، په څه دليل يې موږ په کندز کې چې ۲۰۱ لمبر موتوريزه فرقه په کې ځای پرځای وه، کوز کړو. ښايي زموږ هوايي ډگرونه د هوا د خرابۍ له امله تړل شوي وو. په هر حال، دغه خبرې اصلاً ماته په زړه پورې نه وې. دا لومړی ځل و چې کندز ته تلم، په سبايې په شينډنډ کې کوز شوم. ټوله شپه په يو او بل اړخ باندې له اوښتو را اوښتو وروسته بالاخره ويده شوم. سهار مې لکه د تل په څېر د ږيرې خرييلو نيت وکړ خو په هنداره کې چې مې ځان ته وکتل نو حيران شوم، ټول مخ مې لکه کورکمان زيړ شوی و. يوه شی لږ ارام کړم او هغه دا چې: که مخ مې زيړ دی مانايې داده چې زما ناروغی نورو ته نه شي ليږديدلی او ځکه نو د نورو لپاره خطرناک نه يم!

## محمدنبی

کندهار ته څيرمه د ځلويښتم لښکر او حکومتي پوځونو په وړاندې زيات ترد د

دمحمدنبي (محمدي) په غاړه ده.

دی په ۱۹۳۷ کال کې دلوګر ولايت دبره کي په اولسوالۍ کې زيږيدلی او په ختيه اندړ پښتون دی. هغه په يوه شتمنه روحاني کورنۍ کي سترشوپه مدرسه کي يې زده کړې کړيدي او په شرعياتوکي لوړې زده کړې لري، سنتي، مسلمان دی. په قرآن (مجيد) ښه پوهيږي، ښه ژبور او خبر لوڅ دی، په عربي ژبه حاکم دی.

تر ۱۹۷۳ کال پورې نبي په مدرسه کې درس ورکاوه، خو ددې ترڅنګ يې دهيواد په ټولنيز او سياسي ژوندانه کې هم ګډون کاوه او جومات کې يې موعظې کولې. دلوګر له ولايت نه پارلمان ته دوکيل په توګه غوره شو. دجمعيت العلماء دپريکړې له مخې دمولوي سپيڅلي خطاب ورکړل شو.

دظاهرشاه دسلطنت په وخت کې دپارلمان دغړي په توګه په کابل کې اوسيده او همدلته يې له ټولو سياسي او مذهبي شخصيتونو سره پرله پسې کتنې کولې. په همدې وخت کې د «خادمان قرآن» په نامه دمذهبي - سياسي سازمان له مشر او د صبغت الله مجددي له پلار - ابراهيم مجددي سره اشنا شو. لږ وروسته نبي دهغه مريدي ومنله او د «خادمان قرآن» او «اخوان المسلمين» دسازمانونو فعال غړی شو.

دوکيل له څوکۍ نه په ګټې اخيستنې سره نبي دهلمند په ولايت کې په ښو شرايطو سره له سلو هکتارو زياته ځمکه ترلاسه کړه.

په ۱۹۷۳ کال کې د داؤد له واکمن کيدو وروسته، نبي چې دپاچا په نسکوريدو او په پارلمان کې دخپلې څوکۍ په بايللو خوابدی شوی و، د داؤد د

کې یې خپاره کړل »چې دهغو له امله زندان ته واچول شو ، خو دنبی دشهرت او
مذهبی مقام او دغه راز په تولنه کې دهغه ددریغ له امله یې ورپسې دزندان
دروازې پورې نه کړې او یوازې د پولیسو په ماموریت کې ورسره په اوږدو خبرو
بسنه وشوه. له دې حقیقت نه وروسته معمولاً داسې گڼه او چټیده چې گڼې نبی د
« ملی مصؤنیت »دارگانونو له خوا داطلاعاتو دراټولولو لپاره اجیرکړی شوی و
په افغانستان کې دملی دیموکراتیک انقلاب تربری او هلته دد یموکراتیک
جمهوریت له جوړېدو وروسته نبی پاکستان ته وتښتید. هلته نوموړی د « خادمان
قرآن » دسازمان پربنسټ د « افغانستان داسلامی انقلاب حرکت » گوند جوړ کړ.
ددغه گوند مرام دافغانستان مسلمانانو ته دخطاب په بڼه د « څه غواړو ؟ » په نامه
ترتیب شوی دی.
نبی دسیاسی نظر یوله پلوه سلطنت غوښتونکی شخصیت دی. همدا خبره
ددې سبب شوه چې هغه د ۱۹۸۱ کال په جون کې « دافغانستان دمجاهدینو
داسلامی اتحاد » په غونډه کې چې مشران یې ځانونه دپخوانی پاچا ظاهرشاه
پلویان بولی ، وینا وکړی.
د ۱۹۸۱ کال په دوبی کې مصر او عمان ته لاړ چې رسمی مقاماتو ومانه او
دده له باندې سره د پرله پسې مادی مرستو ژمنه وشوه. دغه راز ددغو باندونو مادی
اړتیا وې دهغو سیمو له خلکو نه چې د « اسلامی انقلاب حرکت » تر کنترول لاندې
وې ، دمالیو ، عشر او نورو جزیو په ټولولو سره پوره کیدې.
سره له دې چې نبی دافغانستان دحکومت خلاف دوسله والې مبارزې څرگند

او ملت پالو سره دحکمتیار په اړیکو ( ؟ د.ج. ) نیو کې کولې. نبی او حکمتیار چې یوله بله یې کرکه سره معلومه وه هغه کوله، ان دانقلاب ضد مشرانو دګډې غونډې په وخت کې هم له مخامخ کتنې نه ځان وژغوري.

« دافغانستان داسلامی انقلاب حرکت » په ډله کې ډیر مذهبی متعصبین شامل دی، ددې سازمان دباندونو یو ځانګړتیا سخته بیرحمی ده. ان حکمتیار ددوی دچور او تالان له امله هغوی « داسلام بدناموونکی » بللی دی.

## دویم سر
## دستر درستیز اکاډیمی

یوازې زه نه وم چې له افغانستان نه زړه شکول راته ګران وو. له یوې خوا دهغه هلیکوپتر ځنګ ته په درنیدو سره چې یو - یونیم ساعت وروسته یې په کوشک کې کوزولم، راته دا احساس پیدا شو چې دلته رانه هغه افسران پاتې کیږی چې ډیرو یې له هسې ساده ملګرونه راته ډیر ارزښت درلود. په دوه نیمو کلو کې څه شی نه وو چې په ګډه مو ونه لیدل! له دې فکرنه مې یو ډول ناراحتی احساسوله چې زما لپاره خو دادی نږدې ده چې جګړه پای ته ورسیږی، او دهغوی مخې ته په میاشتو میاشتو جنګیدل پراته دی او څوک څه پوهیږی چې دهلیکوپتر خواته پر ولاړ هر یو کس به داسبا ته څه راځی.

له بلې خوا په « مایکوپ » کې خپل کور ته دستنیدو لپاره سخت لیواله وم. کوچنی زوی مې، اندری، دادی بې له مالوی سرې شوی و. هغه پورد دوه نیم کلن

دکور خواته هغه دچاخبره په خپلو وزرو والوتم، په کوشک کې ترکوزېدو سمدلاسه وروسته مې ځان په موټر کې عشق آباد ته ورساوه. دافغانستان له وحشي غرونو وروسته، زړه راښکونکو ښارونو سړی په شوق راووست. ان په دې سیمه کې دجولای دپای همیشنی تودوخې دشنو ورشوګانو او وښوله ښکلا او سرکشی نه دخوند اخیستلو مخه نه شوه نیولی.

ماته دقول اردو درستیزوال جنرال لیف چنکو ښه راغلاست وواېه، هغه راته دګراسنادار په الوتکه کې ټکټ واخیست او په منډه منډه مې ځان هغې ته ورساوه. همده مایکوپ ته هم تلفون کړی و او غوښتی یې وو چې زما مخې ته دې موټر راولیږي. کورته په دې توګه راورسیدم.

دستر درستیز په اکاډیمۍ کې له زده کړو مخکې تو له رخصتی مې دځان په جوړولو او کالیو ټولولو کې تېره شوه. موږ مسکو ته دلیږدېدو چمتووالی نیوه خو دهربل افسر دکورنۍ په څیر مو دا کاربې وارخطایی او سړې سینې سرته رساوه. په کرایه کړی کانتینر کې مو کالي ځای پرځای کړل او غوښتل مو خپل موبل او فرنیچر، چې سړی ورته دانوم کارولی نه شي، په کې یوځه په ارزانه او اقتصادي توګه کښېږدو.

دکالیو په ټولولو ټولولو کې به مې په زړه کې تل له دې امله دخوښۍ احساس کاوه چې شکر دی افغانستان نور زما لپاره نه شته دی. په زړه کې مې ددغو (سختیو) دزغم له امله دغرور احساس هم کاوه. دغه راز له دې امله حیرانیدم چې څنګه په دغه هیواد کې دخدمت دوه نیم کلونه پرما داسې آرام تیر شول: دادی

کړم، خو په افغانستان کې دنورو سختیو په اندول، دا ډیره کمه بدمرغي وه.

داګست په وروستیو ورځو کې مو مسکوته کډه وکړه او څو ورځې وروسته مې په اکاډیمۍ کې لوستونه پیل شول. په دې هکله باید یو څه بشپړ ځکه وغږیږم چې هر افسر یا جنرال که به دکومې ښې راتلونکې تمه کوله، نو خامخا به یې په دې تعلیمي مؤسسه کې دزده کړو تکل هم له باده نه ایسته. دپوځي افسر لپاره تردې معتبره اوله ښې راتلونکې نه ډکه اکاډیمۍ زموږ په هیواد کې نه وه. یو څو دګوتو په شمار کسان هم دلته ددوو کلونو زده کړو په لړ کې په تاکتیکي او ستراتیژیکي فنونو بنا دفکر کولو وړتیا حاصلوي. دستردرستیز په اکاډیمۍ کې یوازې هغه افسران زده کړه کوي چې دنده یې دخورا مهمو پریکړو نیول او په راتلونکې کې دهیواد ددفاعي وړتیا تأمینول وي. په بله وینا، دلته هغه پوځي مشران روزل کیږي چې په هر ډول شرایطو کې دپوځي پوهې پر وروستیو بریاوو باندې پر تکیې، په پوره شوق او هوښیارۍ دقوتونو دسوق او ادارې وس ولري، داکاډیمۍ هر فارغ ته دا امکان شته چې دچګرې په یوه یا څو ډګرونو کې دسترو ستراتیژیکي عملیاتو دطرحې او ادارې لپاره لازمه پوهه ترلاسه کړي.

دستردرستیز په اکاډیمۍ کې ټول لوستونه دې ته متوجه دي چې څنګه دافسرانو مسلکي وړتیا لوړه شي. زموږ درسي پروګرام ډیر پراخ و. دمضامینو حدود او اندازې هم له معمول سره توپیر درلود. موږ مجبور وو، ډیروشیانو ته په نوې نظر وګورو، که څه هم دپوځونو دسوق او ادارې چلونه مو پخوا لا زده وو.

چې یو پاتکی نور هم پورته شو او اوپراتیفي – ستراتیژیکي مهارتونه هم خپل کړو.

استادان مو ډیر لایق وو. د اکاډیمۍ مشري دسترجنرال میخائیل میخایلوویچ کازلوف په غاړه وه او زما په عقیده دهغه ټول خدمت د دې لپاره وچې بالاخره باید (پوځي) ښوونکي شي. زموږ د درسي ډلې مشري دسترې هبوادنۍ جګړې د ګډون کوونکي تورن جنرال باریس پاولویچ یورکوف په غاړه وه. هغه بې جوړې هوښیار ښوونکی وخو برخلیک یې چندان نیکمرغه نه و. یو وخت هغه هلیکوپټر چې له څو افسرانو سره یې په ګډه په کې دتمرینا تو په وخت الوتنه کوله، وغورځید، خو هغه له نیکه مرغه ژوندي پاتې شو، اما اوږده موده په روغتون کې بستري وخو چې بالاخره په پښو ودریده. ښکاره وه چې دهوایي سانحې اغیزې یې همدا اوس هم په وجود کې ځان څرګندوي. هغه دطبیبانو په لارښوونه، وروسته خپلې مورنۍ سیمې د «نوګوراد» ولایت ته تللی و.

موږ په ډیره مینه لوستونه ویل. ښایي داله دې امله چې په جزوتامونو کې موږ هریو د زرګونو کسانو د برخلیک په وړاندې مسؤولیت درلود او دلته یوازې دځان، یا هغسې چې موږ یوبل ته په ټوکو ویل، دخپل صندوق چې په کې محرم اسناد خوندي وو. موږ ته هم لکه دنورو زده کوونکو په څیر په لوستونو کې نومرې راکول کیدې، خو ټول پوهیدل، دهغه چا لپاره چې جګړه ییزداو د مهمو دندو

اعمالو هم اغیزه ښندی.

موږ ډیرې ازموینې درلودې او شرم وکه کوم جنګیالی جنرال په کوم مضمون کې ناکام شوی وای. په لوستونو کې موډیر زیار ایسته، ځکه چې پوهیدو، وروسته به مجبور یو داسې پریکړې وکړو چې نه یوازې وریورې د دې یا هغې جګړې دبری یا نه بری خبره، بلکه دزرګونو وګړو ژوند هم اړه پیدا کوی. خو فکر کوم داسې هیڅ ښوونیزه مؤسسه به نه وی چې نقل په کې رواج ونه لری. دستر درستیز اکاډیمی هم په دې لړ کې راتله. ښایی دا اوس له ملنډو ډکه خبره وبریښی چې د پاخه عمر افسرانو او جنرالانو (دنقل کولو) کیسې وشی. خو باید ووایم چې نقلونه تولو لیکل او ان موږ له خطرنه دبچ کیدو لپاره یوْ ښه سیستم هم جوړ کړی وچې ښې نتیجې یې ورکولې.

استادان که پوهیدل نه، نو ګومان خو یې خامخا راته چې موږ دازموینو په وخت کې له «مرستندویو موادو» نه ګټه اخلو، خو بیا به یې هم داسې ښودله چې ګنې هیڅ یې نه دی لیدلی. ښایی دهغه چا دنقل کنترول چې پر اوږو یې د جنرالی ستوری سواره وی، ګران کار بریښیده، موږ کله کله له همدې حالت نه ګټه اوچتوله. شک نه شته چې دې زده کوونکو پوره پوهه درلوده، خو نقل کول د زده کړې هسې یو دود دی چې ان دستر درستیز اکاډیمی هم ترې بې برخې نه وه.

دستر درستیز په اکاډیمی کې د زده کړې دوه کاله دسترګو په رپ کې تیر شول. موږ داو پراتیفی - ستراتیژیکی عملیاتو دطرحې او اجرا لپاره کافی

«لادا» موټر کې چې له افغانستان نه د راستنیدو په وخت کې مې اخیستی و (له کورنۍ سره) د کریمیا ټاپو وزمې ته لاړم. دا لومړی ځل وچې دومره اوږده موده مې موټر چلاوه، خو د کورنۍ غړیو را ته آفرین ووایه. دوه اوونۍ مو هلته استراحت او لمبا وکړه او بیرته مسکو ته راستانه شو.

پر قطعاتو زمونږ دبیا ویشلو وخت راورسید. لازمه ده یادونه وکړم چې زمونږ ټولګی د اکاډیمۍ په لږ شمیر ټولګیو کې وچې چوغلی، ګوتې اچول، پټ لیکونه لیکل او یوله بل نه شکایت کول په کې نه وو.

زه د هغو کسانو په ډله کې وم چې د سروزرو د مډال وړاندیز ورته شوی و، خو د خدمت لپار مې د قطعې د غوره کولو له خپل حق نه ګټه وانه خیسته، او له دې سره سره مې ځان ارام احساساوه. ومې پتیله، هرځای چې مې ولیږي، هلته ځم، داډه وم چې لیرې پرتې سیمې ته مې نه لیږي. ځکه دوه نیم کاله مې په افغانستان کې تیر کړي وو. همداسې هم وشول. زه یې د کارپات د سیمې په ایوانا-فرانکوفسک کې د قول اردو قوماندان مرستیال وټاکلم.

د (هغه ځای) د پوځي حوزې د قوماندان په غوښتنه، زه بې رخصتۍ او استراحته مخامخ د خپلې دندې خواته وخوځیدم. لومړۍ شپې ورځې مې له کورنې سره په میلمستون کې تیرې کړې. د قوماندان د مرستیال دنده تل خوځنده وه. په پنځو میاشتو کې ما د کارپات شا وخوا سیمې او د کارپات له غرونو هاخوا برخې ټولې وکتلې.

تل، کله له یوه او کله له بل غنډ سره هلته تلم. کله به مو تمرین، کله انداخت او کله هم موټر چلونې کولې.

زه د ۱۹۸٤ کال د جولای په پای کې ایوانا-فرانکوفسک ته داکاډیمۍ تر فراغت وروسته راغلم او په ۱۹۸۵ کال کې ما ته وړاندیز وشو چې دوا ک سیمه ییزو ارگانونو ته ځان د وکیل په توگه کاندید کړم. دا لومړی ځل و چې مجبور شوم مؤسسو، کلخوزونو او سوخوزونو ته لاړ شم او د غیر پوځي خلکو په وړاندې وینا وکړم. له انتخاباتو مخکې مبارزې پیل شوې. ښکاره ده چې زه یوازینی کاندید وم. هغه وخت بل کاندید ته دانتخابولو حق نه ورکول کیده. په یاد مې دي چې عادي وگړو ما ته څنگه تود هرکلی وایه. هغه وخت ټولو خلکو پوځیانو ته تود هرکلی وایه او مالگه او ډوډۍ یې ورته وړاندې کول. دانتخابوونکو خلکو په وړاندې زما وینا یونیم-دوه ساعته اوږده شوه. دقاعدې له مخې تروینا وروسته ټول د دسترخوان پرسر راټولیدل. دغه دسترخوانونه زما ن خوښیدل: تگ هم مناسب نه و او گډون په کې زړه نه غوښته. زما تگ کولای شوای، ټول حیران کړي ځکه خلکو به ویلای چې پخوا خو (دانتخاباتو په وخت کې) ترنیمو شپو خلکو خوراک او څښاک کاوه او اوس څوک هسې دراټولیدو اجازه هم نه ورکوی. فکر کوم زما همدا دریځ دډیرو نه خوښیده.

له دې ټولو سره سره هرڅه آرام روان وو. دانتخاباتو په درشل کې د فبروري په ۲۱ مو. ټوله کورنۍ په خپل موټر کې داستراحت یوې غرنۍ سیمې ته لاړو. سبا

وارې دلوی درستیز مرستیال ستر جنرال و. ی. وارینیکوف ټلفون راته کړی دی.

ما دداسې یو خبر انتظار نه درلود ماله ده سره مخکې هیڅ لیدلی نه وو، دهغو حالاتو په استثنی چې دی به دځو ساعتو لپاره شینډنډ ته راغی. هغه وخت ده زموږ فرقه او په ګاونډ کې میشت افغانی غنډ معاینه کړ او بیرته ستون شوی و. بیا مو هیڅکله لیده کاته نه وو شوی. دهغه ټلفون زما لپاره له دې امله هم دحیرانتیا سبب شو چې زه دقوماندان مرستیال وم، نه دلښکر درستیزوال.

## ناڅاپی ټلفون

دفبروری په ۲۳ دلومړیو کسانو په لیکه کې تر رای ورکولو وروسته دلښکر قرارګاه ته راغلم. له مانه مخکې هلته دلښکر قوماندان تورن جنرال ادوارد ارکادویچ وارابیف رارسیدلی و. له هغه سره تر خبرو وروسته مې مسکو ته ټلفون وکړ. لومړی ځل چا ځواب رانه کړ. لکه چې ډیر وختی و. دویم ځل تقریباً دلس نیمو بجو په شاوخوا کې، غوږی خپله جنرال وارینیکوف اوچته کړه. هغه له مانه وغوښتل چې سبا ته دیوې، ستونزې دغوڅولو لپاره ځان مسکوته ورورسوم. دې خبرې زه نورهم حیران کړم. دپوښتنې یا دزیاتې روښانتیا زړه مې ونه کړ: په پوځیانو کې دې خبرې ته اجازه نه شته خو حیران وم او (له ځانه مې پوښتل) دڅه لپاره؟ ولې؟ له ځان سره مې په سوچ پیل وکړ. رنګارنګ فکرونه مې په سر کې تاویدل، راتاویدل.

له ایوانا-فرانکوسک نه په الوتکه کې تګ ډیر ګران و. دا څویمه ورځ وه چې

مې دنظامي الوتکو په وسیله تر مسکوه دالوتو خبره غوټه کړه. سبا ته په موټر کې دلووف تربناره او له هغه ځایه په الوتکه کې دپایتخت پلور روان شوم.

تقریباً درې ساعته وروسته زه دجنرال وارینیکوف دسکرتر په دفتر کې وم. سمدلاسه راته وویل شول چې د هغه کوټې ته ورننوځم. وارینیکوف بې له مقدمې وویل:

- ملګری ګروموف، تاسو په افغانستان کې دنده سرته رسولې. لطفاً په نقشه کې راته وښایاست چیرې وئ او (ددغه هیواد) کوم ځایونه پیژنئ؟

ماوویل چې کابل، دهغه ختیځې، لویدیځې، شمالي او جنوبي څنډې، دسالنګ - کابل لویه لار تر پولې پورې پیژنم. دغه راز تولې لویدیځې سیمې او څو نور ولایتونه مې هم لیدلي دي.

ما ته معلومه شوه چې وارینیکوف زما له خبرو څخه راضي دی. وروسته هغه اصلي موضوع ته راغی، وارینیکوف ما ته وویل چې دستردرستیز دپریکړې له مخې یوه نوې دنده منځ ته راغلې: دمخصوصو چارو دسرته رسولو جنرال، دی به په افغانستان کې دستردرستیز داستازو دګډې جرګې ریاست په غاړه ولري.

دسترې هیوادنۍ جګړې په لړ کې موږ داسې تجربه کړې وه. هغه وخت په جګړه بوختو قطعاتو کې دستردرستیز داستازو غنیه ډله په کار بوخته وه. په دې ډله کې معمولاً ماهر پوځي لارښوونکي راتلل چې ښه پوره واکونه یې هم درلودل. هغو دجګړه ییزو عملیاتو په طرحه او لارښوونه کې نیغه ونډه اخیسته او داعلی

(دشوروي اتحاد ددفاع وزارت) دستردرستيز داستازي په ليږلو سره دهغې تيرې جګړې تجربه يوځل بيا داتيا يمې لسيزې په نيمايي کې تکرار شي.

وارينيکوف ماته وويل، لږ انتظار وباسه چې وروسته بيا دوارډه دلمړي درستيز مارشال س. ف. اخراميف دفترته ورغلو. اخراميف ډيره موده په افغانستان کې دشوروي اتحاد ددفاع وزارت داوپراتيفي ډلې درستيزوال و. ددغې ډلې مشري سرگي ليونيدوويچ سوکولوف په غاړه لرله چې وروسته بيا مارشال او ددفاع وزير شو. مارشال اخراميف په افغانستان کې په محدودو پوځي قطعاتو کې دخدمت له وخته زه ښه پيژندلم، نو ځکه زمونږ خبرو ايله څو دقيقې وخت ونيوه.

اخراميف وويل چې ډيره موده يې «دمخصوصو چارو دسرته رسونکي جنرال» په لټه کې تيره کړه او په پاى کې دتولو سلا په ماراغله زما مهارتونه، تجربې او دافغانستان، څلويښتم لښکر اود افغاني وسله وال پوځ په هکله معلومات دستردرستيز دقناعت وړدي. سرگي اخراميف تل له نزاکته ډک سړى و او ځکه يې په نرمه ژبه له مانه وپوښتل: په نوې دنده دټاکنې په هکله زما څه رايه ده؟ ما څه ويلى شول، په داسې حال کې چې خبره له پخوانه غوټه شوې وه؟ په ځواب کې راته وويل شوى: ډيره ښه ده.

سباته بيرته ايوانا-فرانکوفسک ته والوتم. دارتيا ورشيان مې راټول کړل او بيرته مسکوته راستون شوم. له ماسره په ډله کې دري نور افسران هم شامل کړاى

سفر ته مو له یوې میاشتې نه په کمه موده کې ځان چمتو کړ. په دغه موده کې مو بیلابیل سندونه په ژوره توګه مطالعه کړل لکه: په افغانستان کې زموږ د پوځونو د فعالیت د څرنګوالي په هکله د دفاع د وزیر لارښوونې او د مرکزي کمیټې د سیاسي بیورو د کمیسیون د پریکړو په ګډون بیلابیلې پریکړې. دغه راز مو په افغانستان کې د ۱۹۸۵ کال په پسرلي کې د منځ ته راغلیو حالاتو پوره جاج واخیست د مارچ په لسمه مې لوی درستیز ته خبر ورکړ چې ډله چمتو ده، څو ورځې وروسته موږ تاشکند ته لاړو. هلته د ترکستان د پوځي حوزې د هوایي ځواکونو الوتکه زموږ په انتظار کې وه. په هغې کې په هماغه ورځ کابل ته لاړو او هلته راته د ځلوېښتم لښکر د درستیزوال برید جنرال اناتولي ایپاتوویچ سرګییف له خواهرکلي ووېل شو.

## ... او بیا افغانستان

زما د دویم سفر په وخت کې په افغانستان کې د ندې څه بل رنګ او ځانګړتیا وې لرلې. د ځانګړو چارو دیوه جنرال پرځوکې د شوروي بیلابیلو قطعو او افغاني پوځونو ته دورتګ په وخت کې زما پر مخ دروازې تل پرانستې وې. زموږ د ډلې یو د نده، د لوی درستیز په امر داوه چې د ګډو عملیاتو په وخت کې د شوروي او افغاني پوځیانو فعالیتونه سره سمبال کړو. افغانستان ته د ستنیدو په وخت کې مې د حالاتو د ډېرې ښې پېژندنې اړتیا نه لرله، خو له ما سره راغلو افسرانو: ډګروال یوري کوتوف، زما هم نومي ډګروال ګینادي ګروموف او ډګروال والیري پتریچنکو ته یو څه ګرانه وه. له دې ډلې نه یو تن پخوا فغانستان ته راغلی و او

سره سره هغوی هم ډیر ژر پر حالتو برلاسی شول.

د (څلویښتم) لښکر د درستیزوالی دافسرانو درپوهونو اوریدل ژر تر سره شول او ایله څو ورځې وخت یې ونیوه. ما افغانستان او دهغه شرایط ښه پیژندل. زما لپاره په څلویښتم لښکر کې کوم نوی شی نه و موجود. ترټولو گرانه خبره داوه چې له افغانی پوځیانو سره څنگه کار ترسره شی: ایا موږ خپله دهغوی جزوتامونوته ورشو اویا دلوی پوځی سلاکار په خبرو بسنه وکړو. زما په نظر هغه وخت ترټولو ستره ستونزه همدا وه.

زموږ دډلې دنده دڅلویښتم لښکر او افغانی پوځ له حالاتو نه نه یوازې ځان خبرول، بلکه تروسه وسه پرهغو اغیزه ښندل وو، خو موږ دپریکړو دکولو یا دامرونو او لارښوونو دصادرولو واک نه درلود. دافغانستان په بیلابیلو سیمو کې دحالاتو له ژورې څیړنې وروسته موږ باید دهغو په هکله دڅلویښتم لښکر دلوی قوماندان ترسطحې بیلابیلو قوماندانانو او دافغانستان ددفاع په وزارت کې میشت شوروی لوی پوځی سلاکارته خپل اټکلونه وړاندې کړی وای.

له دې سره یوځای زموږ بله دنده دمحدودو پوځی قطعاتو، دلوی پوځی سلاکار ددفتر دکارکوونکو او دغه راز دترکستان دپوځی حوزې دقرارگاه له خوا دافغانستان په هکله دشوروی اتحاد ددفاع وزیر دټولو امرونو د پلی کیدو کلکه څارنه وه.

زموږ دنوی کار ستره ستونزه په لومړی گام کې داوه چې موږ نه شول کولای په څلوروتنو دټولو قطعو له کړنو ځان پوره خبر کړو. له دې امله موږ له لوی درستیز

له مارشال اخرمییف پرته بل چا دډلې په کار کې دلاس وهنې واک نه درلود. شک نه شته چې د دغسې ازادۍ ترڅنګ موږ خپل مسؤولیت هم پیژانده. په کار وه چې دلوی درستیز په نامه زموږ ټول رپوټونه په دقیقه توګه اوله پاک وجدان سره تیار شوي وای. مارشال اخرامییف غوښتل افغانستان ته زموږ په استولو سره زموږ د محدودو پوځي قطعاتو او افغاني پوځ دحالت په هکله سم معلومات هغه دچاخبره له لومړي لاسه ترګوتو کړي.

دځانګړو چارو دسرته رسوونکي جنرال دنده تر زیاتې اندازې له نزاکته ډکه وه. له یوې خوا ما په افغانستان کې ډیر زیات حقوق او لایتناهي امکانات لرل، خوله بلې خوا په دې هم پوهیدم چې ددې هیواد حالات په چټکۍ سره بدلیدونکي دي. دکنډک دقوماندان یا دڅلوېښتم لښکر ددرستیزوال په ګډون دهرا فسر اعمال چې دا اوس سړي ته ناسم بریښي، کیدای شي دحالاتو دبدلون له امله ترټولو سم راوخیژي. سربیره پردې: دلوی درستیز داستازیو دډلې هرغړی افسر په ولسوال پوځ کې اوږده کلونه په بیلابیلو څوکیو کې خدمت کړی او ښه پوهیدل چې دکوم افسر دګناهکارۍ، په تیره بیا دافغانستان دجګړې په ترڅ کې دهغه دملامتۍ په هکله مسکوته دډیر عیني او واقعي رپوټ ورکول هم، سبا ددغه سړي په راتلونکي باندې منفي اغیزه ښندلی شي او ښایي سلامتیا ته یې زیان ورسوي. له همدې امله موږ ته په کار وه چې نه یوازې په نزاکت سره چال چلند وکړو، بلکه پر خپلو تجربو باندې په تکیې سره ډیر سنجولي او پاخه ګامونه اوچت کړو.

چې دڅلويښتم لښکر له قوماندانۍ سره دجګړه ييزو عملياتو په طرحه، سوق او اداره کې داسې مرسته وکړي چې افغانستان ته دمحدود پوځي قطعاتو په چوکاټ کې دليږل شويو شوروي سرتيرو او افسرانو دسرزيانونه ترممکنه حده راټيټ کړي.

## «کوماندويان دې په «شنه شپول» کې زاکوز کړی شي...».

د ۱۹۸۵ کال داپريل په وروستيو شپو ورځو کې دجګړه ييزو عملياتو د پلان پربنسټ د پنجشير په دره کې داحمدشاه مسعود په مشرۍ دمجاهدينو دغتې ډلې خلاف يوه بله جګړه پيل شوه. د دې جګړې اړتيا له هغه ځايه منځته راغله چې د مسعود باندونو دغې درې ته څېرمه پرتو شوروي قشلوته لوی ګواښ متوجه کړی و، هغوی دجنوبي سالنګ په سيمه کې د «سالنګ پر حياتي لاره» دموټرو د ازاد تګ - راتګ مخه نيوله. سربيره پردې داتيايمې لسيزې تر نيمايي پورې موږ ددوداړخيزو خبرو اترو نسبتاً برياليٰ ميکانيزم منځ ته راوړی و او دمخالفو وسله والو ډلو له ځينو مشرانو سره، يوپربل دنه يرغل موافقې ته رسيدلي وو. خوله دې سره سره يو شمير قوماندانانو، او په دې ډله کې مسعود نه يوازې خپلې ژمنې نه عملي کولې، بلک له دغې سولې څخه يې دخپلو ډلو دلاپياوړتيا لپاره ګټه اخيستله. موږ د دغسې ډلو شته والې نه شو زغملی، نو ځکه په پنجشير کې دسترو عملياتو دسرته رسولو پريکړه وشوه. دغه عمليات دڅلويښتم لښکر دنوي ټاکل شوي قوماندان تورن جنرال ايګور نيکلايويچ راديونف په مشرۍ طرح او سرته رسيدل.

وچې دلومړي ځل لپاره جګړه په (غرونوکې) دډیر شمیر کوماندویانو په پلې کولو سره پیل شوه. دکوماندویانو دنده داوه چې دمخکینیو پیښو خلاف داخل غرونو ته د دښمن د تیښتې لارې بندې کړي. وروسته داسې په پام کې وه چې کوماندویان، هوایي ځواکونه او پلې قطعې به په ګډه ددښمن اساسي مرکز درې ورې کوي او په دې توګه به په پنجشیر کې دمخالفو ډلو شتهوالی ته دپای ټکی ږدي.

عملیات په بري سره پیل شول. کوماندویان سم په دقیق وخت په هماغو ځایونو کې پلي کړای شول چې مورد سنجولي وو. دعملیاتو لارښوونه هم سمه روانه وه هره شیبه دلښکر قرارګاه ته رپوټ ورکول کیده چې ددښمن ډلې لیدل کیږي چې غرونو ته دور ګرځیدلو هڅې کوي خو دکوماندویانو له متقابلو ډزو سره مخامخ دي.

دجون په پیل کې موناځا په داسې شفري ټلګرام ترلاسه کړ چې یولوی پوځی لارښوونکی کابل ته پرلاره دی. دځینو اخلاقي دلایلو له امله زه دهغه دنامه له یادولونه ډډه کوم.

مارشال اخرامییف ماته په ټلفون کې مشوره راکړه چې ددغه سړي مخې ته ورشم، ځان ورته معرفي کړم او ورته ووایم چې په افغانستان کې دستر درستیز داستازیو ډله فعالیت کوي. دا کارمې همداسې ترسره کړ. دکابل هوایي ډګر ته چې دنوموړي الوتکه په کې راکوزیدونکې وه، زه او په افغانستان کې شوروي

دقوماندانۍ پراخه تجربه لري. هغه ډېره موده دشوروي دننه اوبهر دپوځي لويو ډلو مشري پر غاړه درلوده.

جنرال دالوتکې په زينو کې له رانښکته کېدو سره سم موسکی و. دهغه پر جمپر دشوروي اتحاد داتلې ستوري له ورايه ځليده. هغه جنرال سلمانوف ته کلک ورغاړه وت او ماته يې هم سوړ غوندې لاس را اوږد کړ. ما خپل ځان ورته معرفي کړ، خو داسې راته وبرېښېده چې وار له واره پوه نه شو چې زما څه دنده ده. موږ دلښکر قرارگاه ته لاړو او څه شيبه وروسته جنرال امر وکړ چې دی دې دقوماندې مرکز ته ورسول شي، له کومه ځايه چې جنرال راديونف د (پنجشير) دعملياتو لارښوونه کوله. همدغه ورځ موږ بگرام ته لاړو. جنرال دلښکر دقوماندان لنډ رپوټ واورېده او سمدلاسه يې دعملياتو په هکله پوښتنې پيل کړې.

زه له دغه جنرال او په قطعو کې دهغه دقوماندانۍ له ډول سره هيڅ مخالفت نه لرم. دی دسترې هيوادنۍ جگړې گډون کوونکی و او په پوځي قطعو کې دخدمت په موده کې ده دقوماندانۍ ځانگړی دود منځ ته راوړی و. ما گومان کاوه چې هغه به نه يوازې دځلوېښتم لښکر دقوماندانۍ خبرې په غور واوري بلکه دټولو پوځي سلاکارانو او ترټولو مخکې دتجربه لرونکي افسر - سلمانوف څرگندونو ته به غوږ ونيسي. ښايي له ما سره دهغه خبرې اترې هم تريوې اندازې گټورې ثابتې شوې وای. داکار ترهرڅه لومړی خپله جنرال ته لازم و. ضرور وه چې هغه په دې وپوهيږي په افغانستان کې څه تيرېږي او په څه دليل حالاتو دومره پيچلې بڼه غوره کړې ده.

دنه خلاصیدونکې غوټې په نامه یادولی شی. په ډیرو ولایتونو کې سختې جګړې روانې وې. خوله دې سره سره په هر ولایت کې چې به دښمن مات شو، په پورد چټکۍ به یې بیرته خپل ځواک له سره راټول او زیرمې به یې بیا اکمال کړې. یوه نیمه میاشت وروسته له هغه چې زموږ کنډکونه بیرته خپلو چونیو ته ستنیدل، مجبوریدو، یوځل بیا همدغه عملیات له سره تکرار کړو.

ماګومان کاوه چې جنرال به دحالاتو نبض ځان ته معلوم کړی او دیو تجربه لرونکی پوځی لارښود په دود به داسې خارق العاده پریکړې وکړی، چې نتیجه به یې په دغه هیواد کې زموږ په ګټه دحالاتو بدلون وی. ډیر افسران په دې پوهېدل چې دجګړې په زور په افغانستان کې پاتې کیدل یوه بې لرلیده خبره ده. ځکه له ډیرو کمو استثناګانو پرته دهغو پایله زموږ دسرتیرو او افغانانو له مرګ پرته بل څه نه راختله. بیشکه موږ مجبور وو، زموږ پر چونیو دبیا یرغل دمخنیوی لپاره په متقابلو جګړو لاس پورې کړو، خوبیا هم زما په ګډون دډیرو سلا په دې وه چې له مخالف لوری سره دې خبرې اترې وشی. مهمه لا داچې افسران او جنرالان دهغو لومړیو کسانو په ډله کې وو چې له افغانستان نه یې دځلوېښتم لښکر دبې قید او شرطه بشپړو وتلو خبره راپورته کړه.

ددې خبرې یادول ضروری ګڼم چې دافغانستان په خاوره کې زموږ له خوا ترسره شوی ټول عملیات یوازې دهغه مشرتابه غوښتنه وه چې دغه وخت یې په هیواد کې دواک واګې په لاس کې وې. موږ پوره خبروو او نجیب الله هم داخبره نه

ترکومه ځایه چې ماته معلومه ده وروسته به یې له کریوچکوف سره خبرې کولې.
افغانی مشرانو همیشه او بیا بیا د ډیرو زیاتو شیانو غوښتنه کوله. ښکاره ده چې مخالفینو په افغانستان کې د شوروي پوځونو د حضور په ټولو نهو کلونو کې د واکمن رژیم شته والي ته پر له پسې ګواښ مخامخ کړی و، خو زما په نظر د مسکو او کابل ترمنځ په ټیلفوني خبرو کې د غو حالاتو ته ډیر ځله هسې ډراماتیک رنګ ورکول کیده. همدا چې به دښمن مثلاً په ننګرهار یا کونړ کې ایله خپل ځان څرګند کړ، نجیب الله به دارتباط د حکومتي وسیلو له لارې هیله کوله او کله کله به یې په ټینګار غوښتل چې باید پوځي عملیات ترسره شي او په همدغه وخت کې به یې «په مسکو کې ناستو ملګرو» ته قناعت ورکاوه چې ولایتي مرکز له ګواښ سره مخ شوی، چې د بریښنا بندونه (هغه چې شورویانو جوړ کړي) د نابودۍ له خطر سره مخامخ شوي او د افغانستان اساسي لویې لارې، د څو ورځو په موده کې بشپړې بندیدلې شي. کله کله به د غو خبرو د حالاتو له ریښتیني بڼې سره هیڅ سرنه خوړ، خو ډیرې کمې د غسې غوښتنې د (مسکو) له خوا له پامه غورځول کیدې او د غو له ورانديې کولو وروسته به سمدلاسه د څلویښتم لښکر قرارګاه ته شفرونه راسره شول چې مونږ به یې په دې یا هغه ولایت کې د مواصلاتي لارو د امنیت په لاز یات ټینګښت ګمارلو.

خو جنرال په لومړي سر کې په افغانستان کې زمونږ د پوځونو د حضور ځینې لازم جزئیات، له واکمنو سره زمونږ د اړیکو ځانګړتیاوې او د جګړه ییزو عملیاتو

کسانوهم «مرستـه» وکړ، چې وخت ناوختـه به یې ورته «بلی صاحب»، «بلی صاحب» وایه. له همـدې امله دڅلوېښتـم لښکر په وړاندې دجنرال دراتګ په لومړیو وختو کې ایښودل شوې دندې هم سرې پوره سمې نه شي بللی.

دپنجشیر د درې عملیات دڅلوېښتم لښکر پلاني عـملیات وو چې د ۱۹۸۵ کال د دوبي لپاره په پام کې نیول شوي وو. دهغو د ترسره کولو پلان، دعملیاتو له پیل څخه اوونۍ مخکې د ستر درستیز او دشوروي اتحاد د دفاع وزیر مارشال سوکولوف له خوا تصدیق شوی وو، خو نوی راغلی جنرال، همدا چې په بګرام کې دقوماندې مرکز ته ورسید، له هماغو لومړیو شیبو یې د هغو دبهیر بدلون ته ملا وتړله. دهغه یو شمیر پریکړو دافسرانو بدګمانۍ راوپاروله. مثلاً: هغه امر وکړ چې د ۲۰۱ لمبر موتوریزه فرقې اساسي ځواکونه دې جنوبي سالنګ ته ولیږل شي. ددې کار لپاره لږ تر لږه د دغې فرقې خپل چمتووالی او نوموړې سیمې ته د رسیدو تر وخته یې پرلاره دامنیت نیول په کار وو. مونږ پوهیدو چې له لازم چمتووالي پرته دهر ډول اعمالو سرته رسول او دڅلوېښتم لښکر په مخکینۍ جګړه ییز پلان کې دناڅاپي بدلونونو راوستل به، هغه هم په دومره لویه پیمانه، تر ټولو لومړی زمونږ دسرتیرو دسرد درانده زیان سبب شي.

هغه داځل بیا امر وکړ: کوماندویان په «شنه شپول» کې راکوز کړئ. مونږ چې په افغانستان کې اوږده موده اوسیدلي وو، پوهیدو چې دغسې یو اقدام نه یوازې دکوماندویانو، بلکه دهغوی دلیږ دوونکو هلیکوپټرو د نابودۍ سبب ګرځي.

مونږ دپلان دجوړولو او دجنګي عملیاتو د سرته رسولو په وخت کې د دغسې

«چاښوله» چې کوماندویان په کې کوزیدونکي وو. په داسې حالاتو کې مو معمولاً هوایي بمباري کولې او که دا به کافي ونه بریښیدل نو بیا به مو همدغې سیمې ته توپونه ورابړم کړل. «شنه شپولونه» تل د خلکو داوسیدو ځایونه وو او موږ په دې خبره ښه پوهیدو، خو په دې هم پوهیدو چې له همدغو ځایونو دښمنان ګټه اخلي. هغوی زموږ له همدې قاعدې نه ګټه اوچتوله چې موږ هیڅکله پر هغو ځایو چې عادي بزګران په کې اوسیږي ګوزارونه نه کوو (؟. د. ج) مجاهدین له همدې اصل نه په ناوړه استفادې سره په کلو کې پټیدل، خوله دې سره سره موږ له دغه عمل نه دوګړو داوسیدو پر سیمو دبمباریو ډیلمې په توګه کارنه اخیست. خودادی یو ناڅاپي لوی پوځي قوماندان امر کوی چې: کوماندویان په همدغه «شنه سیمه» کې کښته کړئ چې غلیم ته زموږ د توري زور معلوم شي...

موږ هڅه کوله دهغه دا تیرو تنې سمې کړو، خو دا مقصد په ستونزو سره ترلاسه کیدد، ان دخلویښتم لښکر قوماندانی او خپله جنرال رادیونوف چې دپنجشیر دعملیاتو مستقیمه لارښوونه یې په لاس کې وه، د نوموړی دځینو پریکړو له بدلون نه عاجز پاتې شول. دغه وخت نوماله جنرال سره وکتل او ورته ومې ویل چې د هغه ځینې امرونه ناسم دي. زموږ خبرې په دې ختمې شوې چې ماله بل ځایه دراغلی دغه جنرال په ځیره کې دخوابدی نښې ولیدې. هغه له ځانه سره داګڼله چې څنګه یو ځوان جنرال جرأت کړی ستر پوځي مشر او هغه هم د شوروی اتحاد اتل ته لارښوونې وکړي. ښکاره دد چې دهغه دځان غوښتنې

تجربه لرو، او هيڅ داسې خوابدی له هغو تلفاتو سره د پرتلنې وړنه وې چې زموږ د مخکيني جوړ شوي او تصديق شوي پلان د بدلون له امله يې د منځته راتگ احتمال و. په پای کې جنرال زموږ له خبرو سره موافق شو او خپلې مخکيني قوماندې يې بيرته واخيستې.

وروسته بيا هم ما او هغه دوه په دوه، هغه د چا خبره د افسر په توگه او دوو نارينه وو په توگه خبرې وکړې. شک نه شته چې زما او د هغه د مقام تر منځ زمکه او آسمان توپير و او زه په دې خبره ښه پوهيدم، له مرکز نه راغلی جنرال ډير غوښتل چې د ستر درستيز د استازيو فعاليت دې هم د هغه تر نظر لاندې تر سره شي. مثلاً: هغه ويل چې زه بايد هغه ته د خپلو کړنو په هکله پر له پسې رپوټ ورکړم. په افغانستان کې نورو ډيرو جنگيدلو افسرانو هم کله کله له موږ سره له کينې ډک چال چلند کړی دی. موږ به تل د څلوېښتم لښکر جزو تامونو ته تللو او ځينو داسې گڼله چې گڼې موږ د «جلالتمآب» لوی درسيز غوږونه او سترگې يو او تل «لوړو مقاماتو ته» د څلوېښتم لښکر د خطاوو او تيروتنو په هکله د رپوټ ورکولو له لارې له څلوېښتم لښکر سره دښمنی کوو.

دې حالت پر ما چندان اغيز نه لرله، خو بايد اعتراف وکړم چې کله کله به يې د ناخوښۍ يو ډول احساس راته پيدا کړ. په منی کې چې د پنجشير له عملياتو نيم کال تير شوی و، موږ يو ځل بيا له دغه جنرال سره د خپل منځي اړيکو په څېړنه بوخت شو. هغه (دا ځل) زه پوره درک کړم. نور د زموږ تر منځ د ستر درستيز د

پیاوړ تیا او هم د جلا ستونزو د هوارولو په کار کې پوره لاس کړی دی.

## هوایي سانحه

۱۹۸۵ کال زما لپاره په ځانګړې توګه سخت کال و، او دا نه یوازې په دې علت چې په اوړي کې د محدودو پوځي ټولګیو په پنجشیر کې سخت عملیات وکړل چې د امکان تر حده یې د سړي زیاته انرژي مصرفوله. دا کال زما د کورنۍ ژوندانه لپاره هم غم لړلی و.

دمې په درېمه زد د څلويښتم لښکر په قرارګاه کې وم او په خپل دفتر کې مې کار کاوه. څنګ ته په بله ودانۍ کې، د امین له مانۍ یو څه ها خوا په افغانستان کې د شوروي اتحاد د دفاع وزارت او پراتیفي ډلې کار کاوه چې مشري یې د جنرال والنتین ایوانوویچ وارینیکوف پر غاړه وه. د جشن هنګامه ښه توده و، که څه هم د هغه چا لپاره چې په افغانستان کې یې دنده سرته رسوله د «جشن» کلمه یو نسبي مفهوم دی. زموږ روحیه له دې امله هم ښه وه چې د ښمنانو په دغو ورځو کې زموږ لپاره هیڅ «ډالۍ» نه وه برابره کړې. دورځې په لومړۍ نیمایي کې مو د راتلونکې او ونۍ پلان جوړاوه او هغه قطعې مو په ګوته کولې چې باید زموږ د ډلې له خوا وکتل شي. له خپلو افسرانو سره د غرمې له ډوډۍ وروسته را په یاد شول چې کوم شی مې په کوټه کې له یاده وتلی او په هغه پسې بیرته ستون شوم. په کابل کې د مې په میاشت کې باورنه کیدونکې تودوخه وي، نو ځکه چې کوټې ته راغلم له ځانه سره مې وویل: راځه لږې اوبه به پرسر تیرې کړم چې د کار لپاره مې «سادتازه شي»، خو دغې لمبا یوازې د ینځلسو دقیقو لپاره کفایت کاوه، وروسته

ما په تشناب کې سر او ځان و چاوه او غوښتل مې وه ځم چې نا ځاپه د ټلفون زنګ شو. غوږۍ مې پورته کړه، له هغې خوا د هوایي ځواکونو په چارو کې د جنرال وارینیکوف د مرستیال غږ دی. پوښتنه کوي:

- بوریس منسي والود وویچ «ګروموف»: تاسو د کارپات د پوځي حوزې د هوایي ځواکونو قوماندان جنرال ایفګیني کراپیوین پېژنئ؟

البته چې ما هغه پېژانده. موږ دوه کاله د ستر درستیز دا کاډیمۍ په یوه ګروپ کې زده کړې هم وکړې بېساري ښه انسان، ریښتیني روسي پهلوان، ماهر پوځي پیلوټ او په خپل مسلک کې رسیدلی سړی و. د هغه هر څه تاکلې اندازه او معین حدود درلودل. لنډه دا چې کراپیوین زموږ د ګروپ ساده وه. باید ووایم چې له لوف نه د افغانستان پرلور وروستي ځل همده زه بدرګه کړی وم.

- باید زړه کلک کړې، موږ خبرتر لاسه کړی چې جنرال کراپیوین وژل شوی، د هغه الوتکه غورځېدلې ده.

دا خبره زما پر سر د یوه ګوزار په څېر ولګیده. ما دې شي تصور نه شو کولی. سمدلاسه مې کړې وړې پوښتنې ذهن ته راغلې: «دا څه مانالري چې د قوماندان الوتکه غورځېدلې ده؟ هغه خو خپله الوتکه نه الوزوله څنګه کېدای شي چې وغورځېږي؟!»

– جزئیات لاپوره معلوم نه دی. مور ته یوازې همدومره ویل شوي چې د هغه الوتکه غورځیدلې ده.

خوامې سخته بده شوه او په سترګو کې مې اوښکې راغلې. د کراپیوین په څیر خلک د ګوتو په شمار دي، یو بې جوړې سړی و. له دې خبر وروسته مې حالات بدل غونډې شول او سر مې په درد پیل وکړ.

د لښکر قرار ګاه ته راغلم. خپلې کوټې ته ننوتم او ناڅاپه مې یو بل فکر سر ته را مې چې د بریښنا د جریان په دود یې تکان راکړ. د مې د میاشتې د جشنونو په درشل کې مې په ټیلفون له خپلې ښځې سره خبرې کړې وې. هغې راته ویلي وو چې د الوتکې ټکټ یې اخیستې او دمې په دویمه مسکو ته ځي (مور ته وعده راکړل شوې وه چې د دفاع وزارت په مرکزي اپارات کې د کار له امله به په مسکو کې اپارټمان راکړل شي، (او په خبرو جنرو کې یې داهم راته وویل چې کراپیوین هم ټیلفون کړی دی او له هغې نه یې غوښتي چې مسکو ته به یوځای ځي. ما په بیړه خپل هواس راټول کړل. څنګه معلومه کړم چې له کراپیوین سره په الوتکه کې نور څوک وو؟ د ټیلفون خوا ته مې منډه کړه. حواس چې مې لږ پر ځای شول، د لووف ښار د هوایي ځواکونو له قوماندانۍ سره مې خبرې وکړې. شک نه شته چې نوکریوال افسر په هر څه پوهیده خو ماته یې څه ونه ویل. په یوه جمله یې ځان خلاص کړ: «ښځې لاروانې دي».

پلار واخیسته چې له ساراتوف نه په خاصه توگه د همدې لپاره راغلی و چې زما له زامنو سره (د مور په غیاب کې) واوسیږي او یې ویل: هو، ناتا (مسکو) ته تللې دی. ما ته معلومه شوه چې هغه لا په څه شي نه دی خبر، نور نو روښانه وه چې لوی غم پيښ شوی دی.

له دې وروسته مې د وارينيکوف له ډلې نه د پوځی پیلوټانو په پوښتلو لاس پورې کړ، هغوی په هر څه خبر وو. خو هڅه یې کوله ما دې ته چمتو کړي چې د دغه گوزار ضربه را باندې کمه شي. په پای کې هغوی ټوله کیسه راته وکړه. د مې په دریمه چې کله کراپيوين د هوایي ځواکونو له لوی قوماندان سره د غونډې لپاره مسکو ته د ان - ۲٦ ډوله الوتکې په وسیله روان و نو د هغه دوه زامن: یواندرې چې د پوځی پیلوټي د عالي ښوونځی فارغ و او بل الکساندر هم له هغه سره ملگري شول. په الوتکه کې څو کسه نور هم وو. په هغو کې یوه زما میرمن وه. د ښې پیلوټۍ دنده د کیهان نورو والیري بیکوسکي زوی سر ته رسوله. د لووف د هوایي ډگر د یسپیچر د پوځی او ملکی الوتنو کرښې سره تېر او بېر کړې وې. ټوله سپرلۍ هلاکه شوه.

وارينيکوف ما ته الوتکه راکړه چې سبا ته په کې د کور په لور والوتم. د تفلیس په هوایي ډگر کې له څو ساعتو ځنډ وروسته، زيږي مازیگر په اوکراین کې راکوز شوم. د میرمنې د جسد هغه ټوټې چې ټولول یې ممکن وؤ په فلزي تابوت کې د همدغې ورځې په ماښام ایوانا - فرانکوفسک ته راوړل شوې وې.

په جګړه بوخت اوسي، له هيڅ شي نه خبرونه لري، ان د تدفين د مراسمو د سمې اجرا مهارت ونه لري او دا ټولې (ستونزې) د رته د سترګو په رپ کې مخې ته ودرېږي او دادو مرده ستر ماتم او چې بچيان دې په تا پورې ځانونه ونښلوي... کور دې په نظر يو بل شي راشي. تش او تورتم! او دنا تاشې پلار چې (دويمه نړيواله) جګړه يې له پيله تر پايه ليدلې لکه قبر تورناست دی. ميړمن مې په ساراتوف کې خاورو ته وسپارله.

دمې په لسمه مسکو ته لاړم او له لوی درستيز سره مې ليده کاته وشول. هغه ورغ ما او سرګی اخراميېف د افغانستان په هکله خبرې ونه کړې. هغه ما ته ډاډ راکړ. ويې ويل چې کولای شم په شوروی کې پاتې شم. له څه سوچ وروسته مې پريکړه وکړه چې نه، افغانستان ته خامخا ځم. فکر مې وکړ چې په افغانستان کې دندد به مې پرې نه ږدي چې ددې غم لمبې راباندې يرغل راوړي، دمې په يوولسمه بيا په کابل کې وم.

زامن مې په ساراتوف کې پاتې شول چې تقريباً څلور کاله يې دلته ژوند وکړ. د تقدير لوبه داسې شوه چې زما دا دويمه ښځه - فاينا الکساندروفنا د جنرال کراپيوين نږور او د هغه د مشر زوی ساشا ميرمن وه. دوی دواړو د مسکو د پولادو اوليا ژوا انستيتوت په ګډه پای ته رسولی و، د ۱۹۸۵ کال په مارچ کې له دغې هوايي سانحې دوه مياشتې مخکې د هغوی دوه غبرګولې لوڼې دنيا ته راغلې: والبا او ايفګينيا. اوس دوه زامن او دوه لوڼې موږ په ګډه روزو. بچيان په بيړه

# پنجشیر

هغه وخت چې زه کابل ته ورسیدم، په پنجشیر کې داحمدشاه مسعود دباندې خلاف عملیات نبه تاوده شوی وو. په افغانستان کې دجګړه ییزو عملیاتو دسنجوونکو معیارونو په پام کې نیولو سره ویلی شم چې د ۱۹۸۵ کال د پنجشیر دوبنې عملیات په عمومی توګه بریالی پای ته ورسیدل.

دجګړه ییزو عملیاتو طرح او سرته رسول ګران کار دی او دمسعود خلاف عملیات زموږ لپاره تر ټولو ګران کار و. ددغو عملیاتو په لړ کې دمحدودو پوځی قطعاتو قوماندانی نه یوازې داچې اړوده داطلاعاتو دراټولولو لپاره پاخه استخباراتی مبارزه پیل کړی، بلکه باید هڅه یې کړې وای چې په اعظمی اندازه ددغو اطلاعاتو دبیرته خپریدو مخه هم ونیسی. موږ همیشه له حکومتی پوځونو سره په ګډه عملیات کول، او احمدشاه هم دحکومتی پوځ په پاسینو کړیو او هم دننه په حکومت کې خپل سړی لرل. شک نه شته چې دې حالت دعملیاتو دطرحې پرخرنګوالی اغیزه ښندله. دعملیاتو له حقیقی پلان نه یوازې کم شمیر خلک خبریدل. دعملیاتو د پیل تروخته مو افغانانو ته دعملیاتو د ریښتینو اهدافو، په هغو کې دشاملو قوتونو او دغه راز دهغو سیمو په هکله چې عملیات باید په کې سرته رسیدلی وای، هیڅ نه ویل. د (افغانی قطعو) قوماندانانو د دفاع وزارت او

دغه رازداري په ځينو مواردو کې، مثلاً له افغاني پوځونو سره زموږ د ګډې هڅې بهير ته زيان رساوه. خو موږ له دې پرته بله چاره نه لرله. له دې پرته به دعملياتو اصلي نقشه وختي دښمن ته رسيدلې وای او نتيجه به يې په ځلوينښتم لښکر کې دسر دزيان غير معقول زياتوالی راختلی.

دپنجشير عمليات زموږ دخپلې نقشې له مخې روان و. په ناڅاپي توګه دکوماندويانو په کوزولو سره موټوله دره کلابند او په څو جلا جلا برخو وويشله. بيا نو پليو ټولګيو ګام په ګام ددغو سيمو تصفيه پيل کړه.

زما په نظر ددغو عملياتو ځانګړی برياليتوب په دې کې وچې موږ داوږدو او سختو جګړو دسرته رسولو او ورسره جوخت دسر د درانده زيان درسيدلو امکانات له منځه يوړل.

له دې سره جوخت مو دوسلو، مهماتو او جنګي توکو ومايلو ډيرې زيرمې لاس ته راوړې چې دښمن دجګړې دناڅاپي پيل کيدو له امله له پنجشيرنه دهغو دويستلو فرصت نه و موندلی. دوسلو سترې زيرمې کشف نه شوې، ځکه هرباندې دځان لپاره کوچنۍ کوچنۍ او دانتقال وړ وسله تونونه درلودل چې يابه دمجاهدينو په شاوو او يا به يې په لاس کې وو. وسله يوازې هغه وخت ذخيره کيده چې دکوم لوی باند لپاره به دزيرمه کولو خبره په منځ کې وه، خو کارتوس دښمنانو تل ذخيره کول.

یوازې په غره کې جوړ شوی، بلکه داسې پټ شوی وچې هوایی بمبونو او د توپ گولیو پرې هیڅ اغیزه نه شوه کولای. په سمڅو کې د ننه دڅوړولو لپاره جلا جلا خونې او د دغو چارو د سرته رسولو ضروري شیان لکه: اری، انبورونه او دخلکو دڅوړندولو لپاره چنگکونه ځای پرځای شوي وو. ددې شیانو هسې لیدل وحشتناک وو.

په زندان کې تر شپیتو زیات خلک وو. د دوی زیاته برخه نارینه وگړي وو لکه: حکومتي نیول شوي پوځیان او د منځنی عمر لرونکي هغه بزگران چې یا د مسعود هسې نه وو خوښ او یا یې د هغه په نزد کومه گناه کړې وه. غمه لړلې پیښه ظاهراً هغه وخت منځ ته راغله چې د زندان ساتونکو په هوا کې زموږ هلیکوپترې ولیدې، (په دې وخت کې) هغوی ټول بندیان چانماري کړل. خپله د ښمنان په هغو پېښو غرنیولارو، چې یوازې همدوی ته معلومې وې، غرونو ته تښتیدلي وو.

## له امکانه بهر

هرې جگړې د ځلو ښتمه لښکر قوماندانی له داسې مسایلو سره مخامخ کوله چې په غوڅولو پورې یې نه یوازې د موجودو ستونزو بریالی حل، بلکه د سرتیرو ژوندانه هم اړه پیدا کوله. په دې باب باید جلا بحث وکړو.

داحمدشاه دباندونو خلاف د ۱۹۸۵ کال دوبنی جگړې، په افغانستان کې د نورو ډیرو پیښو شویو جگړو په څیر، په ډیره لوړه ارتفاع کې ترسره کیدې. مثلاً په پنجشیر کې د غه ارتفاع تر درې نیم زره مترو رسیدله. مجبور وو، نه یوازې

عمل وکړو.

په داسې حالاتو کې د ټانکونو په ګډون ټول تخنیکي وسایل د غرونو په لمنو کې پاتې کیدل. څوکو ته یوازې سرتیري له سپکو وسلو سره جګیدل. ډیر ځله په داسې حالاتو کې د دښمن بانډونه له مورږ سره د وسلو او جګړه ییز ځواک له پلوه بیخي برابر کیدل د غرونو په څوکو کې آن وسلې یو ډول وې. موږ د کلاشینکوف له ماشینګن نه ګټه اخیسته او دهغو په لاسونو کې هم دغه وسله وه.

سربیره پردې د ښمن عیني برلاسي هم درلود: هغوی سیمه ښه پیژندله، په ساده ګۍ سره یې عمل کاوه او هم له رواني او هم فزیکي پلوه یې ښه چمتووالی درلود: ځکه دا د دوی خپل هیواد و.

په پنجشیر کې د جګړې لپاره د چمتووالي په لړ کې مو دې کار ته اجازه نه شوه ورکولی چې مثلاً یو کنډک، چې مخې ته یې یوه میاشتینۍ جګړه پرته ده، یوازې د دوو یا دریو ورځو مهمات، خوراکي مواد او نور ضروري شیان له ځانه سره واخلي. لږ ترلږه هغه باید له ځانه سره د یوې اوونۍ ذخیره اخیستې وای. هر افسر، سرتیري او وارډ ضابطان په غرونو کې پر خپلو اوږو له څلویښتو نه تر شپیتو کیلو ګرامو پورې بارلیږداوه. له دومره زیات وزن سره او هغه هم تر سوزوونکې لمر لاندې غر ته پورته کیدل خورا ګران کار دی، خو که مخې ته جګړه هم پرته وي نو... له همدې امله ځینو قوماندانانو د سرتیرو له داسې عملونو نه چې غرونو ته

له مخې يې شته والی حتمي و ، انتقالول. په دې ډله کې له بنکونه جوړ توشکونه ، له کارتوسو ډک جاغورونه ، اوبه او يو ځولاسي بمونه راتلل. په وروستي وخت کې به ځينې وچ خواړه هم په غوټه کې ځای پرځای کېدل.

له يوه غره نه بل ته پرله پسې اوښتل او سختو پيچومو د سرتيرو وروستي زور او به کاوه ، نو ځکه هر يوه غوښتل اضافي شيان له ځانه وغورځوي. ډير ځله چې به کله قطعه ځوکې ته وختله ، نو قوماندان به ناڅاپه متوجه شو چې ان ۸۲ ملی متري سپک ليږدوونکي هاوان يې هم نه دی راوړی. په غرونو کې دا ډيره مهمه وسله او يوازينی توپ دی چې تل بايد له کنډک سره وي. د هاوان ميل په يوه يادوو تنو ليږدول کيږي او دوه نور کسان يې پطنوس او درې پنبې وړي ، سختو ستړو شويو سرتيرو معمولاً په لومړي مساعد فرصت کې له دغه درانده بارنه ځان خلاصولو لپاره دهاوان ميل درې ته غورځاوه. دغه دمرميو غورځول څه گران کاربريښيده. نو ځکه معمولاً دغه صندوقونه سرتيرو ترپايه له ځانه سره وړل. د هر کنډک له دريو هاوانونو نه دجگړې په پيل کې يو يا دوه هاوانه پاتې کيدل.

اقليمي شرايط هم تل دجگړه ييزو عملياتو پايلې تراغيزې لاندې راولي. افغانستان چې په همدې قاعده کې راځي او مستثنی کيدلی نه شي ، دتودوخې ددرجې شديد بدلون چې عادت کيدل ورسره عملاً امکان نه لري ، له اشرارونه کم دښمن نه گڼل کيده. دشپې دسړو مخه يوازې ژمينو دريشيونيولی شوه ، سهار ته به هوا لږ څه توده شوه او دوه درې ساعته وروسته به داسې گرمي شوه چې تابه ويل

کالي ویستلي وو او چمتو به وو چې په یوه نیکر کې پورته شي. دوی خپل ټول کالي ددې لپاره ایسته غورځول چې هر گرام وزن یې دوجود قوه مصرفوي.

په غرونو کې دښې طبی مرستې کول هم ممکن نه دی. سره له دې چې موږ تروسه وسه هڅه کوله، خو بیاهم ځینی سرتیری د تودوخې او جل وهلوله امله له منځه تلل.

معمولاً درې یا څلور شپې او ورځې په کار وې چې ټولی یا کنډک ځان ټاکلې سیمې ته ورسوی. دغه وخت سمدلاسه دهغوی دمهماتو، خوړو او تر ټولو مهم داوبو دزیرمو دبیا اکمال مسأله منځ ته راتلله. ددې کار سرته رسول خورا گران وو. زموږ هلیکوپترو کولی شول، درې نیم زره متره ارتفاع واخلي او ځان زموږ دسرتیرو پوستې ته ورسوی، خو دبار د تشولو لپاره لازمه وه چې هلیکوپتر په یوه هوار شان ډاگ گوټې کی راکوز شي او یا لږ تر لږه دڅو دقیقو لپاره په هوا کې ځوړند پاتې شي، خو په دومره لوړه ارتفاع کې دهوا فشار او ورسره دومره دروند بارنه دکوزیدو او نه دځوړندیدواجازه ورکوله. دهلیکوپتر پیلوټان یوه اصطلاح لري: «دسکون وروستی حد» ددې مانا د ارتفاع هغه وروستی حد دی چې هلیکوپترته په کې دځوړندیدو اجازه شته. دمختلفو هلیکوپترو لپاره دغه ارتفاع له یونیم نه تر دوو کیلو مترو پورې توپیر مومي، په افغانستان کې زموږ پیلوټانو دخپلو تخنیکی امکاناتو په چوکاټ کې هڅې کولې. دهوایی ځواکونو افسرانو ته په کار وه چې له ډیر زیات مهارت نه کار واخلي او له نیکه مرغه دمحدودو

ښودولو سره، دهليکوپتر مخکني تاپرونه دغره په کومه لوړه څوکه اويا ډېره ښښلول او بيا يې په ځوړند حالت کې دسترګو په رپ کې ووړوي بار په دره کې دقطعاتو لپاره ورغورځاوه. له دې وروسته هليکوپټر نوره ارتفاع نه شوه نيولی، هغه کښته دغره دلمن پرلور په غورځېدو غورځيدو کې بيا پورته کيده او خپل زوريې بيا راټولاوه.

په غرنيو لوړو څوکو کې دجګړې په وخت کې زموږ بله هميشنی ستونزه دټپيانو ليږدول وو. ان کله کله دډيرو قوي اوغوڅو اقداماتو له کولو سره سره دبنيادم دژوندانه ژغورل نه ممکن کيدل. که دغره په لوړه څوکه کې څوک سخت ټپي شي نو دوينې دبهير بندول ګرانيږي. غره ته دوينې وروړل اويا دهليکوپتر په وسيله دټپي راکوزول هم شونی نه بريښي.

يوازې يوه لاره پاتې کيده: په لاس کې دټپي سرتيری يا افسر زمکې ته راکوزول. دقطعو قوماندانانو ددې کار لپاره ځانګړې او حوصله ناک سرتيری غوره کول چې دساتونکو په بدرګه به يې خپل ټپي ملګری په کوچنيو کراچيو لاندې زمکې ته راکوزول. دارتفاع او دسيمې (دځانګړنو) په پام کې نيولو سره له هر ټپي سره له ۱۳ نه تر ۱۵ سرتيری تلل، يوازې په دې توګه ممکنه وه پتې پوځی دغره لمنې ته راکوز کړای شي چې هلته به طبي پرسونل ديره و.

## داور لاربنوونه

دپنجشير ددوبنيو عمليا تو دطرحې او اجرا په وخت کې تقريباً له هماغو

يې دجګړې په ترڅ کې دهوايي او توپچي ځواکونو داورلارښوونه وه.

دتوپچي ددزو په خپل وخت اصلاح زموږ لپاره ډير ارزښت لاره. دجګړې دپيل په درشل کې ټول تخنيکي وسايل دغره په لمن کې پاتې کيدل او دکوماندويانو او پليو ځواکونو يوازيني تکيه خپلې پښې وې اوبس، ددغو قطعو لارې توپچي ځواکونو صفا کولې. سرتيري بايد ډاډه وي چې له دې نه مخکې خپلو ځواکونو ډزې کړې او په کمين کې ددوی د لويدو امکان نه شته. خو مهمه خبره داورسمه لارښوونه وه. ځينې وخت موږ دځينو درو، لوړو او ژورو ويشتل د توپچي قوا او په وسيله په دې احتمال پلان کول چې دښمن همدلته پټ شوی دی، خو دښمن به نابېره له بل ځايه سر راويوست. په دې حالت کې په کار وه چې دتوپونو خولې سمدلاسه بل لوری ته راوګرځول شي.

دپنجشير دعملياتو په وخت کې موږ دنبه ويشتونکو افسرانو ځانګړې ډلې له ځانه سره بيولې وې. له دوی سره اوږه په اوږه محاسبينو او رادار پرسونل هم خدمت کاوه چې په بيړه يې نوی معلومات برابرول، پرله پسې او بې ځنډه مخابراتي رابطه هم دبري اصلي شرط ګڼل کيده. افسر چې په هر چيرې موقعيت درلود، بايد داوس يې لرلې چې هره ثانيه د ډزوله مورچل سره اړيکي ټينګي کړي او يوې يا بلې خواته داور داړولو غوښتنه وکړي.

دتوپچي نښه ويشتونکې دهغې قطعې دقوماندان ترڅنګ چې دوی يې خدمت ته توظيف شوي او په کار وچې دهغه لپاره هڅې وکړي، تل چمتو ولاړو.

دغره څوکې ته هسکېدل. نښه ويشتونکو يوازې په دې توګه کولای شول خپله
مخه او وړاندې تللي سرتيري ووينې او د ګوليو دلګيدو څرنګوالی ځان ته څرګند
کړي.

خو توپچي نه شول کولی تل خپل هدف «ترګوتو» کړي. په دې صورت کې نو
هوايي ځواکونه مرستې ته رابلل کيدل. دقوماندې په مرکز کې دعملياتو دلوی
لارښوونکی ترڅنګ دهوايي ځواکونو لارښوونکې ډله هم ديره کيدله. هغوی په
يوه يا دوو زغره والو ګاډو يا څو موټرو کې ځای پرځای کيدل. دمخابرې قوی
دستګاوو دا امکان برابر وه چې هم له ټولو هوايي ډګرونو او هم هواته له پورته
شويو الوتکو سره تماس ونيول شي.

دهوايي ځواکونو لارښوونکي افسر او دهغه مرستيال له خپلې مخابراتي
دستګاه سره تل دقطعو اساسي برخه ګڼل کيده او نيغ په نيغه يې دجګړې له ډګر
څخه الوتکو ته لارښوونه کوله. دیادولو وړ ده چې دتوپچي او هوايي ځواکونو
لارښوونکو افسرانو يوازې په ټاکلې سيمه کې داهدافو دله منځه وړلو صلاحيت
درلود. دغو افسرانو په هيڅ ډول حق نه درلود، خپلې الوتکې دګاونډي قطعې
دمسؤوليت په سيمه کې فعاليت ته واستوي. موږ ددغو اقداماتو په کولو سره
داشتباه ګانو دپيښيدلو مخه نيوله. لوړه ارتفاع، دليدو وړساحې کموالی او په
غرونو کې دفاصلې دناسم اټکل احتمال دغتو بدمرغيو درامنځته کيدلو سبب
کيدلی شو. ځکه دناسمو ارقامو له مخې الوتکو او توپچي

# احمد شاه مسعود

په پنجشیر کې دجګړو له پیل څو ورځې وروسته معلومه شوه چې درد تشه شوی ده. احمدشاه مسعود د پټو غرنیو لارو په مرسته نه یوازې خپل وسله وال سړي، بلکه عادي خلک هم له درې نه ایستلی وو.

احمدشاه دنورو مجاهدو قوماندانانو په منځ کې دلرلیدنې دوړتیا په لرلو ممتازو. په هغو ولایتونو کې چې ده ته یې غاړه ایښې وه او دافغانستان په شمال ختیځ کې یو جلا حکومت و، ژوندانه خپله بڼه لرله داسې تصور سړی ته پیدا کیده چې هم په کابل کې انقلابی دولت او هم اوږده روانه جګړه دهیواد ددې برخې دخلکو دپیړیو پیړیو په اوږدو کې جوړ شوی دژوندانه بڼه نه شي بدلولی. دپخوا په څیر ښوونځي جوړیدل، جوماتونه ابادیدل، دفصلونو د راټولولو په وخت کې لازمې مرستې کیدلې. بزګروته کیمیاوی سره ویشل کیده او ... له احمدشاه سره زیاته مرسته دده تر کنترول لاندې په شمالی پنجشیر کې دلاجوردو او نورو ډیرو قیمتي ډبرو بې شمیره کانونو شته والی هم کړې ده. په دغو کانو کې کارونه جاري وو او دغه بې شمېره قیمتي ډبرې بهرته لیږدول کیدې. لاس ته راغلې پیسې ترهرڅه لومړی دډیرو وسلو په پیرودلو لګول کیدې.

احمدشاه یوه وتلې څېره ده چې دهغه په هکله باید اوږدې خبرې وشي.

احمدشاه ددوست محمد زوی، په ۱۹۵٤ کال کې دپران ولایت دپنجشیر اولسوالۍ دبازارک په کلي کې د یو پوځي افسر په کور کې نړۍ ته راغلی دی

له مخې اوږده موده په پاکستان کې اوسیده. په قام تاجک دی او له همدې امله یې
په هېواد کې د رسمي مشر کېدو احتمالات کمزوري دي.

احمدشاه په ۱۹۷۳ کال کې د کابل له یوې لیسې نه تر فارغیدو وروسته د کابل
پوهنتون د انجنیرۍ په پوهنځي کې شامل شو (؟) د زده کړې په دوران کې د
«اخوان المسلمین» له افراطي سازمان سره نږدې شو او حکومتي ضد فعالیتونو ته
یې لاس واچاوه. کله چې دده نوم په «تورلست» کې شامل شو، پرته له دې چې
د پوهنځي دویم ټولګی پای ته ورسوي، خپلې پلرنۍ سیمې - پنجشیر ته
وتښتیده. همدلته نوموړي کوچنۍ وسله واله ډله جوړه کړه چې په بیلابیلو
حکومتي تأسیساتو باندې د یرغل له امله یې د داود حکومت ته د سر درد پیدا
کاوه. د حکومتي ضد غورځنګ تر ډېرې وړې کیدو څو میاشتې وروسته احمدشاه
پاکستان ته په هجرت مجبور شو.

د ځینو اطلاعاتو له مخې همدلته راتلونکي مجاهد قوماندان له ګلبدین
حکمتیار سره نږدې شوی و، خو له دغې پېژندګلوۍ لږه موده وروسته د دواړو په
منځ کې سخت اختلاف پیدا او احمدشاه مجبور شو مصر ته لاړ شي.

له دوه نیمو کلو زیات مسعود په منځنۍ ختیځ کې واوسیدا و په غالب ګمان
یې همدلته د پارتیزانی جګړو مهارتونه هم زده کړي دي. سربیره پردې داسې
شواهد هم شته چې احمدشاه د فلسطین د آزادۍ غورځنګ له غړیو سره یوځای
د اسرائیل پرخلاف په جګړه کې برخه اخیستې ده

جمعیت » له مشر برهان الدین ربانی سره یې پېژندګلوي وشوه او ډېر ژر دغه په نږدې یار او مرستندوی بدل شو. په ۱۹۷۹ کال کې ربانی نوموړی دیوې ډلې په مشرۍ دکابل دانقلابي رژیم خلاف دجګړې لپاره واستاوه.

دغه دشخصي ځانګړتیا وو په ډله کې دتکبر او ځان غوښتنې یادونه کولی شو. بې شکه چې هوښیار او دنورو قوماندانانو په پرتله دجګړه ییزو عملیاتو دښې لارښوونې دمهارت لرونکی سړی دی. مسعود دیو هوډمن او ځواکمن سړي په څېر دشتو ستونزو دحل لپاره ډېره سر سختي او کلک عزم لري. دجګړې په وخت کې یې په سړه سینه دحالاتو جاج اخیسته، دځواکونو انډول یې معلومه وه او بیا یې دچا له مرستې پرته پریکړه کوله. دزغم خاوند و او دوه پرله پسې شپې پر یو ځای نه ویده کیده. دخپلو ساتونکو له ډلې سره یوځای یې له یوه ځایه تر بله ځایه څوکیلو متره لاره وهله. تل ورسره دکلاشینکوف ماشینګڼ وي او په دره کې دتګ راتګ لپاره له عسکري جیپ موټر نه کار اخلي. په څو اروپایي ژبو ښه پوهیږي. ساده کالي اغوندي او هڅه کوي چې له نورو سره یې توپیر ونه شي. په افغانستان کې دشوروي پوځونو دحضور په کلونو کې یې ښځه او بچیان په پاکستان کې وو. مسعود په خپل ورځني ژوندانه کې داسلام احکام پر ځان منل، خو زموږ پوځي استخباراتو ته پته لګیدلې وه چې دخپلو ډیرو نږدې ملګرو په منځ کې یې دشرابو له څکلو نه ډډه نه کوله.

افغانستان ته دځلویښتم لښکر له ننوتلو وروسته مسعود او پلویانو یې

پوځونو خلاف راوپاراوه. په پنجشیر کې داسې افسانې په مهارت سره خپرېدلې چې ګنې «دا افسانوي مجاهد » دمحمد (ص) استازی دی او خارق العاده قوت لري. دبیسوادو بزګرانو په منځ کې دغسې تبلیغاتو ښه اغیزه ښندله او ددې سبب ګرځیده چې دنویو جګړه مارو درارسیدو بهیر ورته تل جاري وي، نو یو راغلیو کسانو ته تل پوځي لوستونه ورکول کیدل او دهغو په لړ کې ډیره پاملرنه دسپکې وسلې کارونې، دماین چولو، دتخریبي کارونو سرته رسولو او فزیکي چمتو والي ته اړول کیده.

د ۱۹۸۲ کال تر دوبې پورې دمعسود دوسله والو کسانو شمېر تر دوه نیمو زرو تنو ورسیده. هغوی دافغانستان لپاره په ستراتیژیکي مهمه سیمه - یعنې دپنجشیر په دره او هغې ته په څېرمه سیمو کنترول درلود.

دسیمې له جغرافیایي ځانګړتیا وو څخه په استفادې سره، احمدشاه وکولی شول، څو مهم او غښتلي سنګرونه منځ ته راوړي مثلاً د دراندو ماشینګنو دچلولو لپاره ځایونه، دمجاهدینو دډلو لپاره پټنځایونه او دهرې ډلې ددفاع سیمې په پام کې نیول شوې وي. مسعود په لاروکې دماینونو دښخولو لپاره ځانګړې ډله منځ ته راوړه او اساسي ځواکونه یې ددرې په خوله کې ددفاع لپاره ځای پرځای کړي وو.

احمدشاه دعادي خلکو غمخوري کوله او خلکو هم له هغه سره مینه درلوده.

ته رامات او په دې توګه په پنجشیر او دافغانستان شمال ختیځ په نورو ولایتونو کې دخونړیو جګړو د پیښېدو مخه بنده کړي. دڅلویښتم لښکر د استخباراتي مرکز هڅو په پای کې تاکلې نتیجې ورکړې. په ۱۹۸۲ کال کې موږ خپل لوی مقصد ته ورسیدو: له احمدشاه سره مو داسې ټینګې اړیکې پیدا کړې چې ان له افغانستان څخه دشوروي پوځونو د وتلو تر وخته په خپل حال پاتې شوې.

په افغانستان کې زموږ د پوځي حضور په ټولو کلونو کې له مسعود سره زموږ اړیکو بریالي وده موندله، خو له دې سره سره د محدودو پوځي ټولګیو قوماندانی دده د وسله والو باندونو فعالیت له نظره نه غورځاوه. په ۱۹۸۲ کال کې دڅلویښتم لښکر داستازو او شخصاً د مسعود له خوا یو تړون لاس لیک شو چې دهغه له مخې مسعود ژمنه کړې وه چې په جنوبي سالنګ کې به چې دده د بې رقیبه باداري سیمه وه، پر شوروي پوځي قطارونو یرغل ته اجازه نه ورکوي.

احمدشاه دخپلو ډلو د وسلو او مهماتو د کمبود له امله مجبور شو چې دغه تړون ته غاړه کښیږدي. د پنجشیر درې د کلابندۍ او دغه راز په کاپیسا کې چې پنجشیریانو ته د وسلو د رسولو کارواني لارې پرې تیرې شوې وې، د جمعیت خلاف داسلامي حزب د باندونو شدید فعالیت د دې سبب شو چې احمد شاه ته د وسلو او مهماتو په رسولو کې کمی راشي. له بلې خوا د سیمه ییزو خلکو ناخوښي چې د احمدشاه د باندونو د فعالیت له امله ورته زیان رسیدلی و، هم نوموړی د

چې د حکومتی عسکر و خلاف دې له جګړې نه لاس واخلی او خپل ټول ځواک دې د مخالفی ډلې اسلامی حزب د بانډونو خلاف جګړې ته متوجه کړی.

مسعود په بدل کې له مونږ نه وغوښتل چې شوروی عسکر دې له پنجشیر څخه ووځی اوله دغې اولسوالۍ نه دې د افغانستان اردوته د سرتیرو له جلب نه ډډه وشی.

له شوروی پوځی قوماندانۍ سره داسې پوره شواهد وو چې احمد شاه د تاکتیکی د لایلوله امله دغې سولې ته غاړه ایښې ده. هغه یو وخت خپلو پلویانو ته د وینا په ترځ کې ویلی وو: له حکومتی لوری سره مې ځکه سوله وکړه چې یوڅه فرصت لاس ته راوړم، د وسلو، مهماتو او خوړو زیرمې له سره اکمال کړم، او چې څنګه مې دغه هدف تر لاسه کړ، هماغه شیبه به مبارزه بیرته له سره پیل کوم.

د یادونې وړ ده چې مسعود له حکومت سره د سولې د خبرې له یا دولوسره سره، له کابل سره د هر ډول اړیکو له ساتلو څخه ډډه کوله. د خاد د رئیس نجیب استازی چې مأمور و، له مسعود سره اړیکی ټینګې کړی، عملاً څه نه شول کولی، هغه ټولې خبرې اترې یوازې له شورویانو سره کولې.

له منځ ته راغلی ځنډ څخه احمد شاه د خپلو مقصدونو لپاره پوره ګټه او چته کړه. په آبدره، تاواخ، چمالوارده، حصارک، خاواک او پارانده کې یې د نویو مور چلو جوړولو ته دوام ورکړ. د ورانو شویو مورچلو جوړولو ته د سیمې خلک وګمارل

زیاته مرسته امریکایی، فرانسوي، چینایي او البته پاکستاني سلاکارانو او پوځي کارپوهانو کوله. په همدغه وخت کې دښمنانو د درندو او ټانک ضد وسلو په راټولولو لاس پورې کړی و.

د ۱۹۸۲ کال په دسمبر کې چې احمد شاه کومه سوله د شوروي ځواکونو له خوا د هغه د بانډونو د بشپړې تباهي له ویرې کړې وه، د ۱۹۸٤ کال تر اپریله اوږده شوه. دا نو هغه وخت دی چې د ځلوېښتم لښکر قوماندانۍ له پنجشیرنه بهر د مسعود د باندونو د زیات فعال کېدو رپوټونه تر لاسه کول. د کابل – حیرتان پر لویه لاره تلونکي قطارونه د جنوبي او شمالي سالنګ په سیمه او دغه راز د بغلان په ولایت کې له غلچکیو یرغلونو سره مخامخ کېدل.

په هغه دوره کې چې پنجشیر د سولې سیمه اعلان شوې وه، د افغانستان په نورو سیمو او ولایتونو کې تعقیبېدونکې ډلې دلته د پناه اخیستلو لپاره راتلې. دا حرکات د مسعود د هغه لوی پلان یوه برخه وه چې غوښتل یې بېلابېلې اسلامي ډلې او ګوندونه سره یو کړي. موږ پوهېدو چې که غلیم یوموټی شي او «واحده جبهه» جوړه کړي نو بیا خو به خامخا له چریکي جنګونو څخه لویو جبهه یي جنګونو ته لاس اچوي.

روغه جوړه څو میاشتې نوره هم اوږده شوه. د یادولو وړ بولم چې مسعود له ځینو کوچینو مواردو پرته خپلې ژمنې بشپړې سرته رسولې. همدغه «کوچنی

هغـه د چاخبـره په ورته او وړ اقدامـاتو لاس پورې کاوه. مـوږ دانه شول منلی چې شوروي سرتیري دي وژل کیږي او موږ دې د روغـې جوړې په نامـه لاس تر زنې کښینو. زموږ ځوابیه اقدام معمولاً یو لړ جګړه ییز عملیات وو چې د هغو په لړ کې د لویې لارې په اوږدو کې د شوروي عسکرو تر کنترول لاندې سیمه پراخیدله او مسعود ته د وفادارو بانډونو زیرمې، کمپونه او پټځایونه هم له منځه وړل کیدل.

له مـسعـود سره د دومره دقیق کـار د سرتـه رسولو له امله د محدودو پوځي قطعـاتو قـومـاندانی له پرله پسـې فـشـار سره مـخـامخ وه. له یوې خـوا مسـعـود د لمسونو په کولو او زموږ د حوصلې په ازموېلو سره، موږ د روغـې جوړې له منځه وړلو ته اړ کولو، د دغسې عملونو مثالونه خورا زیات دي: د دغسې یا هغې قطعې له پنجشیره د ایستلو غوښتنه، د افسرانو خلاف ګواښونه کول، پر پوستو او مورچلو یرغلونه کول، پر قشلو ډزې....

له بلې خوا په کـابل کـې د ک. ګ.ب. مـیشـتـو اسـتازیو د څلویښتم لښکر قـومـاندانی د غـو څـو ګـامـونو او چـتـولو ته هڅوله. سره له دې چې د ک. ګ.ب. اسـتـازي د افـغـانسـتـان لـه حکومت سـره د هر ډول اړیکو د ټینګولو په هکله د مسعود په سخت مخالفت هم خبر وو، مسکو ته به یې داسې یاد ښتونه لیږل:

«احمد شاه دې د افغانستان له دموکراتیک جمهوري دولت سره د رسمي تماس ټینګولو ته رامات کړی شي. د لومړي ګام په توګه دې احمد شاه ته وړاندیز وشي چې په زندان کې د خپلو نږدې پلویانو د خوشې کولو په هکله دې د افـغـانسـتـان

په اړیکو کې دې زیات زور د هغه له خوا په افغانستان کې د موجود رژیم د مشروعیت په مستقیمې یا غیر مستقیمې پیژندنې واچول شي ».

په دې وړاندیزونوکې د څلویښتم لښکر قوماندانۍ اصلاً کوم نوی شی نه لیده. سربیره پردې له احمد شاه مسعود سره د پوځیانو د اړیکو ستراتیژیک مقصدهم په پای کې د دولتي واکمنۍ لور ته د دغه قوماندان راماتول وو، خو موږ پوهیدو چې په لنډ وخت کې د کابل له حکومت او شوروي محدودو قطعاتو له قوماندانۍ سره په همکارۍ د مسعود قانع کول اسان کار نه دی. د دې لپاره میاشتو ته اړتیا وه او موږ کولی شول له مسعود سره د روغې جوړې له لارې دغه فرصت ترلاسه کړو.

د ک. ګ. ب مامورینو له احمد شاه سره زموږ د اړیکو او د هغو د راتلونکي په باب پوره معلومات لرل. هغوی په دې خبره هم ښه پوهیدل چې باید د مسعود د باند له خوا په پنجشیر کې د جګړې د اوربلولو ته پلمه په لاس ورنه کړل شي، خو بیا هم د استخباراتو مامورینو احمد شاه مسعود ته خپلې نه منونکې او کله کله له ګواښونو ډکې غوښتنې وړاندې کولې:

« که له دغو غوښتنو نه احمد شاه سرو غړوي نو سمدلاسه دې شخصاً د هغه او د هغه د ډلې تېلې ورکاوي ته اقدام وشي. له سیاسي پلوه به زموږ لپاره غوره داوي چې هغه له پنجشیر نه بهر ژوندی ونیول شي (دروغې جوړې د نیتې له پای ته رسیدو مخکې). د دې کار هدف دا راختلي شي چې هغه بشپړې سیاسي،

پرې خپلو ملګروته په خپله خوله د دې تسليمۍ اعتراف وکړی شي. د انقلابی ضد سيمه ييزو کړيو په منځ او لويديځ کې د احمد شاه د نامه د اعتبار په پام کې نيولو سره د اتکې زموږ لپاره ستر تبليغاتی ارزښت لری او کولای شي د مخالفينو د وارخطايی سبب شي.

دغه راز بايد په دې ټکی هم غور وشي چې که په څه دليل د هغه ژوندی نيول شونی نه وی، نو بيا دې خپله د احمد شاه او د هغه د نږدې اطرافيانو له منځه وړلو ته اقدام وشي.

د دغو مخصوصو اقداماتو د عملی کيدو دنده دې د افغانستان دموکراتيک جمهوريت د خاد ارګانونو او ځلويښتم لښکر ته وسپارل شي.

غوره به وی که له احمد شاه سره د روغې جوړې د مودې تر ختمه لاندې اقدامات هم تر سره شي:

... د احمد شاه د ډلې ټپلې خلاف دې د قوی وسلې د استعمال په ګډون د يو شمير پوځی - تخنيکی اقداماتو (عملياتو) سرته رسول په پام کې ونيول شي ...».

که چيرې ريښتيا هم موږ دغه «اقدامات» سرته رسولی وای نو عواقب يې ډير ښکاره وو. موږ به نه يوازې موجود کمزورې تماس هم ډړی وړی کړی وای، بلکه له ستراتيژيکی پلوه د هيواد په يوه مهمه سيمه کې به مو په خپل لاس د کړ کيچ يوه دايمی منبع هم منځ ته راوړی وای. ښکاره ده چې د خپلو هيواد والوخلاف له

غیرت په هره توگه چې وی، په افغانستان کې هم جوت کړی، او ددې لپاره چې د هغوې پر ټټريو بل نوی مډال وځړول شی، د څلویښتم لښکر سرتیری او افسران مجبور وو خپل ژوند په خطر کې واچوی.

ک. گ. ب. والا وو خپل اعتبار په افغانستان کې ښکاره «په خاورو لړلی و».
زما په حضور کې یې له لسو ځلونه زیات مسکو ته رپوټ ورکړی چې مسعود یې له منځه یوړ، خو بیا به هغه کله دلته او کله هلته راڅرگند شو، ښکاره ده چې احمد شاه د خپل ځان په هکله د ک. گ. ب. د مامورینو رپوټونه نه لوستل.

دلته نو یوه قانونی پوښتنه رامنځته کیږی: که چیرې یو ډیر اغیزمن افغانی مخالف شخصیت دومره د کابل د انقلابی رژیم او په دغه هیواد کې د شوروی قطعو د حضور مخالف و، نو څه شی د هغه د ډلې د نهایی ماتې او یا د ده د له منځه وړلو مانع گرځیده؟

زما په نظر دا ادعاگانې چې گنې هغه د څلویښتم لښکر د قوماندانی په پرتله ډیر هوښیار او د تدبیر خاوند و، بې بنسټه او غیر موجه دی. زموږ له خوا د احمد شاه مسعود خلاف د عملیاتو په گدون ټول اقدامات باید په افغانستا کې زموږ د پوځی حضور د مسأیلو په مجموعه او په هغو ستونزو کې مطالعه شی چې محدود پوځی قطعات ورسره مخامخ وو. ایا موږ د افغانستان جگړه په مجموع کې گټلی شوه که نه؟ د سالم عقل حکم خو دادی چې د وسلې په زور د یوه بشپړ ملت لاندې کول امکان نه لری. هیڅ ځای او هیڅ کله پوښتنه له دې زاویې نه ده مطرح شوې.

ځلوېښتم لښکر قوماندانۍ د مسعود خلاف په مبارزه کې هم ځانګړي مقاصد درلودل. خو ان له احمد شاه سره زموږ د سختې مقابلې په وخت کې چې بيا بيا پېښېدلې، زموږ هدف د هغه د ډله منځه وړل او شخصاً د ده نابودول نه وو. موږ خپل پوځي عمليات داسې پلان کول چې مثلاً احمد شاه مسعود د پنجشير په شمال يا مرکز کې مات کړو او مخالفين پرېښود بيا دريدو له چټکې وړتيا څخه محروم کړو. لکه چې ومې وېل، دغسې دندې موږ ټاکلې او په بری سره سرته رسولې.

د ساده ګۍ خبره به وی که وواېو ځواکمن ځلوېښتم لښکرونه شو کړای، د احمد شاه ډلې ډېرې وړې کړي. په افغانستان کې د شوروي پوځونو قوماندانۍ ټول امکانات لرل چې ان په پنجشير او د هغه په شاوخوا کې د ۱۹۸۵ کال له دوبنيو عملياتو نه ډير مخکې هغه له بشپړې ماتې سره مخامخ کړي. که اړتيا وای، موږ به هغه له منځه وړی هم وای. ما هيڅکله په دې خبره کې شک نه درلود او اولس يې هم نه لرم.. احمدشاه پخپله هم خپل موقعيت ښه پېژانده او همدې حالت د هغه پر سياست او له شوروي پوځيانو سره د هغه پر اړيکو اغېزه ښندله: هغه ښه پوهيده چې د څه شي د کولو اجازه لري او د کوم شي د کولو له امله به يې غوږونه تاوېږي. د مسعود د برخليک د نهايي ټاکنې او د هغه خلاف د اقداماتو له امله به زموږ د قوماندانۍ په نظر موږ له يوازينۍ ستونزې سره، چې هميشه ډيره پېچلې وه، مخامخ شوي وای او هغه دا چې په څه ډول هم د شورويانو او هم د افغانانو

کې هم سوچ کاوه چې په څه شان د سرتیرو د مړینې مخه ونیسو، له همدې امله هڅه کیده نوې او غیر معمولي طریقې په کار واچول شي. کله کله مجبوریدو دښمن وغلوو، خبرو اترو ته یې راکاږو او له سله والې جګړې نه یې لاس پر سر کړو.
زما په نظر د محدودو پوځي ټولګیو زیاتو افسرانو او جنرالانو د دغه نظر ملاتړ کاوه. هیڅ انقلاب او په تیره بیا افغاني انقلاب په هغو قربانیو نه ارزیده چې تاریخ یې په کومه حساسه شیبه کې د کیدو غوښتنه کوي. هغه وخت چې به زموږ سوله ییزې هلې ځلې بې نتیجې شوې او د شوروي کارپوهانو او پوځیانو د مرګ خطر به مخامخ را ته ودریده نو موږ به جګړه ییز عملیات پیل کول، خو ان په داسې حالت کې هم څلویښتم لښکر له خپل لوري ډیر کم ځواک او لږ وسایل په کار اچول، که موږ به توپچي ډزو یا هوايي بمبارۍ ته نیت وکړ نو هغه به ډیرې کمزورې وې او معمولاً به پر هغو غرینو سیمو او دروکیدلې چې بې وسلې ملکي خلک په کې نه اوسیدل (؟ د. ج.)

# د پولې تړل

په افغانستان کې د شوروي محدودو پوځي قطعو ته ځو جلاجلا دندې سپارل شوې وې. یوه دنده دا وه چې څلویښتم لښکر دې په داسې حال کې چې د ګاونډي هیواد په خاوره کې ځای پر ځای دی، د شوروي اتحاد جنوبي پوله ټینګه کړي. زما په نظر د شوروي – افغان ګډې پولې ته د خطر په هکله اندیښنې بې بنسټه وې. ان هغه وخت چې د افغانستان د چارو واګې د پاچیانو په لاس کې وې، د پولې دغه

ولیږدیده نو بیا خو زمونږ د اندیښنې لپاره هیڅ ځای نه و. یوازې هغه وخت چې زمونږ عسکر افغانستان ته ورننوتل، زمونږ په وړاندې له دښمنانو څخه د خپلو پولو د ساتنې ستونزه هسکه شوه چې غالباً (د مجاهدینو) دغچ اخیستونکو عملیاتو په لړکې منځ ته راغلې وه. دا تیا یمې سیزې له پیله د شوروی - افغان ګډه پوله زمونږ لپاره «د سور ریښتینی درد» شو. د سرحدي پوځونو لویه قوماندانی اړه شوه، په افغانستان کې د ننه په اصطلاح «حفاظتی ګزمې» او موقتی پوستې جوړې کړی. سربیره پردې له پولې نه لرې وړاندې په زغره والو ګاډوکې مانورکوونکو ګزموته دنده وسپارل شوه. دغه ګزمې زیاتره د غلیم له سختو یرغلونو سره مخامخ کیدلې. خو دغو اقداماتو هم زمونږ پر خاوره د یرغلونو مخه ونه نیولی شوه، او د ریاکتیف توغندیو په وسیله زمونږ د سرحدی کلیو ویشتل روان وو. نه یوازې سرتیری او افسران، بلکه عادی شوروی وګړی هم د افغانی جګړې قربانی شول.

افغانستان ته د شوروی لښکرو استولو بیخی بل هدف درلود، او مونږ ډیر ژر په دې ټکی ښه سم پوه شو. په افغانستان کې زمونږ د حضور په ټوله موده کې د ځلویښتم لښکر اساسی دنده د اپریل انقلاب ساتنه وه، په بله وینا، شوروی سرتیری مجبور وو، هغه رژیم وساتی چې د ماهیو د ننه د کودتا په نتیجه کې منځ ته راغلی و. زمونږ لپاره یې توپیرنه درلود چې د نوی رژیم واک د چا په لاس کې دی: د امین، که د کارمل او یا نجیب الله. ډیر زیات ارزښت بل ټکي درلود:

دې ټولو شیانو سره سره پیاوړی هم شي. افغانستان باید د څلویښتم لښکر تر وزر لاندې له خوبولي فیودالیزم نه د روښانې راتلونکې پرلور داسې ټوپ ووهي چې د جنوب ختیځې اسیا د هیوادو لپاره که د سوسیالیزم نه وی نو د ملي دیموکراتیکې ټولنې د جوړیدلو یو مثال خو شي. په افغانستان کې زموږ د ستراتیژۍ عمومي تصویر په همدغو څو لنډو ټکوکې څرګندیږي.

خو هر رژیم یوازې هغه وخت ریښتینی عمل کولی شي چې تر پښو لاندې زمکه یې په لړزه نه وي، خو د اپریل انقلاب تل د خپل مرګ د کندې پر غاړه ولاړ و. د کابل نوی رژیم له هماغو لومړیو ورځو اړو چې له نا پایه جګړو سره عادت وکړي. د (افغاني) ټولنې قامي – قبیلوی جوړښت په خپله د واکمنۍ د سیمي پر سر، یا په بله وینا دواک لپاره د دایمي مجادلې تومنه له ځانه سره درلوده. تر یوې اندازې کیدای شي، په کال کې د انقلابي رژیم ټینګښت، پر نورو ډلګیو، د یوې ډلې، یا د یو بختور ګروپ بری وګڼل شي.

د کابل رژیم خلاف وسله واله جګړه په پرله پسې توګه روانه وه.

## ګوزاریز پوځي ټولګي

افغانستان ته د شوروي پوځونو د ورتګ له هماغو لومړیو شیبو موږ اړ شو د افغان – پاکستان ګډه پوله وتړو، د دې خبرې دلیل دا و چې د څلویښتم لښکر او حکومتي ځواکونو خلاف د وسله والو باندونو جګړې یوازې د بهرنۍ مرستې له برکت دوام مونده.

غورځنګ په مرکز بدل شوی و. په پېښور، کراچۍ او د افغانستان پولې ته په نورو نږدې لویو ښارونو کې اسلامي بنسټ پالو ګوندونو خپل مرکزونه پرانیستل. مخالفو مشرانو د کډوالو له ډلې نه نوي اولانوې وسله والې ډلې جوړولې او د افغانستان خاورې ته یې صادرولې. د وسلو او مهماتو ناپایه قاچاق روان و او څومره چې په افغانستان کې زموږ شته والي پسې او ږد بده، هغومره د دغو قاچاقو اندازه زیاتیدله.

په افغانستان کې په تیره بیا په ختیځو ولایاتو کې د ژوندانه د عادي کولو لپاره موږ مجبور وو، اصلي کارواني لارې چې مخالفینو ترې ګټه اخیستله وتړو.

د ۱۹۸۵ کال له پسرلي نه موږ د مستقلو ګوزاریزو کنډکونو شمېر ډېر زیات کړ او له پاکستان سره د پولې په اوږدو کې مو په دې مقصد واچول چې هغه په بشپړه توګه وتړي. له اتو کنډکونو څخه دوه لواوې راجوړې شوې. یوه یې په جلال آباد کې ځای پر ځای وه او د افغانستان په ختیځه پوله کې یې د دښمنانو د کاروانو خلاف مبارزه کوله. د دویمې ګوزاریزې لوا قوماندانۍ د افغانستان په ختیځه پوله کې یې د دښمنانو د کاروانو خلاف مبارزه کوله. د دویمې ګوزاریزې لوا قوماندانۍ د افغانستان په جنوب لویدیځ کې د لښکرګاه په ښار کې ځای پر ځای کړی شوه.

له پاکستان او ایران سره د افغانستان د ټولو پولو په سلو کې شپیته برخه چې په لویدیځ، جنوب او جنوب ختیځ کې

زما په نظر مستقل ګوزاريز پوځي ټولګي د څلويښتم لښکر تر ټولو تکړه جنګي قطعې وې. هر کنډک نږدې پنځه سوه افسران، واړه ضابطان او سرتيري درلودل. هغوی ټول د ښه مهارت خاوندان او له پوځي او فزيکي پلوه پوره چمتو کسان وو.

ګوزاريز ټولګي ډير سمبال وو. هغوی د زغره والو ګاډو په ګډون، ډيره نوې وسله درلوده. هرې لوا د هليکوپتر وخپله ډله لرله چې د جګړې ډګر ته د نويو ځواکونو چه رسولو کې ترې کار اخيستل کيده.

د کنډکونو قوماندانانو ته تل د څلويښتم لښکر د استخباراتو د ادارې او سيمه ييزو مقاماتو له خوا افغانستان ته د مخالفينو د صادريدونکو کاروانونو د حرکت او نورو اعمالو په باب پرله پسې معلومات رسيدل. خو ګوزاريزو ټولګيو زياته اتکا په خپلو معلوماتو کوله. هغوی تر وسه وسه له سيمه ييزو چارواکو او د ولانيونو او السواليو له عادي وګړو سره ټينګې اړيکې پيدا کړي وی. په خپل لاس راټولو شويو معلوماتو د کنډکونو قوماندانانو ته د خپل مسوٶليت په ساحه کې د حالاتو د پوره روښانتيا وس ورکاوه.

د کاروانونو په لاروکې د کمين نيولو لپاره چمتووالی تر ډيرو ورځو وخت نيوه پوځي ډله به يو ناڅاپي سيمې ته ليږل کيده. هره ډله په څو کوچنيو يعنې د نيولو، ويشتونکو او مدافعې په ډلګوټو ويشل کيده. د جګړې د سيمې او د چارچاپېر حالاتو په پام کې نيولو سره د ګوزاريز ټولګي باد شپې او باد ورځې

کارو. سختي يې په دې کې وه چې بايد ډلې بې له دې چې د چاورته پام شي او يا يې د احتمالي د ندې د ځاى په هکله چاته پته ولګي، ځان ډير پټ هغه ځاى ته ورسوي.

د ګوزاريزو ځانګړيو کنډکونو د جوړيدو په لړيو وختو کې موږ سرتيرى له تخنيکي وسايلو او کله کله له ټانکونو سره يو ځاى هم، ټاکلې سيمې ته استول. شک نه شته چې په دې صورت کې د عملياتو د پټولو او يا د ناڅاپي يرغل احتمال له منځه ته. د دغسې حرکاتو نتيجه که صفر نه وه، نو بيخي کمه خو خامخاوه.

کله چې پوه شوو سرتيرو اوږد او دروند مزل د نظر وړ عملياتو د بربادۍ سبب ګرځي، و موپيتيله چې هغوى به ټاکلې ځاى ته په پښو ليږو، خو داهم زموږ په طبعه چندان برابر کار نه و. له يوې خوا اتيا ... سل کيومتره پلې تګ او سخت اقليمي شرايط د دوزخ سختيو ته ورته کارو، له بلې خوا دې کار زموږ ډير وخت ضايع کاوه. له همدې امله وروسته د دغو ځانګړيو ګوزاريزو لوأګانو لپاره د هليکوپترو جلا ډله بيله کړاى شوه چې دنده يې يوازې او يوازې د همدغو لوأګانو له خوا د ورکړل شويو امرونو سرته رسول وو. وروسته مو بيا ګوزاريز پوځي ټولګي د هليکوترو په وسيله سيمې ته رسول.

هليکوپتر چې به ګوزاريز ټولګى له ځانه سره جګ کړ، نو تقريباً هماغې خوا

سرتیری ترې کوزېږي، خو په واقع کې هیڅوک نه کوزیده او داهسې غولوونه وه.
وروسته بیا هلیکوتر دو یمې، دریمې او څلورمې ټاکلې شوی نقطې ته ځان رساوه او همدغه غولوونکې حرکات یې تکرارول، په پای کې هلیکوپتر زموږ د مقصد ځای ته رسیده، په بیړه یې سرتیری کوزول او د راستنیدو په وخت کې یې دوه درې ځایه نورهم د دروغو ځینې مخکني حرکات تکرارول او بیا یې خپل ځان مرکز ته را رساوه.

د ګوزاریزو ټولګیو د مرستې لپاره د زغره والو ګاډو قطار، د هغو له تګ لږ وروسته په هماغه لور خوځیده او له ټاکلي ځای نه ۵۰ - ۶۰ کیلومتره لیرې یې مورچل نیوه. په دې وسیله موږ دښمن د خپلو عملیاتو د ځای او مقصد په هکله لار ورکې کاوه.

موږ باور درلود چې مخالفین هم قوي استخبارات لري. په دې کار کې د ولایتونو نږدې ټولو وګړو برخه اخیسته. د غرونو په لوړو څوکو کې د څارنې ځانګوې پوستې جوړې شوې وې. پښتنو کوچیانو هم په دقت سره د «کفارو» یعنې شورویانو څارنه کوله او هر څه چې به یې ولیدل، په هره ممکنه وسیله لکه: داور په بلولو، د هندارو په پرکولو او ان د مخابرې په وسیله او د نورو لارو چارو په مرسته به یې سمدلاسه رپورټ ورکاوه له دې امله د ګوزاریزو ټولګی داسې کوزول چې دچاو ورته پام نه شي عملاً ناممنه خبره وه یوازې د ګوزاریزو ځانګړیو

کې به د دښمن کاروان بشپړ له منځه وړل کیده.

د ځلوېښتم لښکر قوماندانۍ دا خبره هیڅ نه پټوله چې موږ د کاروانو خلاف پراخه مبارزه پیل کړې ده. د افغانستان مشر تا به (وخت ناوخته) د پاکستان او ایران حکومتونو ته د افغانستان په چارو کې د لاس وهنې او د دغو هیوادو په خاوره کې د ورانکارو باندونو د ملاتړ له امله احتجاجیه لیکونه سپارل. موږ رسماً اعلان وکړ چې دښمن ته د وسلو رسولو کاروانونه به زموږ له خوا (خامخا) له منځه وړل کیږي، خو له دې سره سره تقریباً هر ورځ په بیلابیلو مهماتو لکه ریاکتیف توغندیو، د توپونو په ګولیو او نورو بار قچرې او موټرونه د افغانستان او پاکستان له ګډې پولې نه تیریدل. پر اوښانو او خرو باندې معمولاً ماینونه چې زیاتره یې د ایتالی محصول وو او سپکه وسله لیږدول کیده.

د ګوزاریزو ټولګیو تر څنګ د افغان - پاکستان د ګډې پولې د ترلودنده، د هلیکوپترو ځانګړ یو روزل شویو پیلوټانو هم سرته رسوله. دغو افسرانو عموماً د ورځ او کله کله د شپې له خوا ګزمې وهلې او هڅه یې کوله ځانګړی کلابندې شوې سیمې ته د کاروانونو د رسیدو مخه ونیسي. په دغو هلیکوپترو کې به د ګوزاریزو ټولګیو له ډلې نه د تلاشۍ او نابودولو لپاره یو شمیر کسان هم سپاره وو. هلیکوپترو چې به کله روان اوښان یا موټر ولیدل. نو پر سر به یې ورته ځو څرخونه وخوړل او بیا به یو ناڅا په د هغوی مخې ته پر زمکه کیناستل. معمولاً

ځغاسته وکړه، نو ښکاره وه چې وسله وړي، خو که د تلاشۍ سره ته به معلومه شوه
چې په کاروان کې غیر پوځي او سوله ییز شیان وړل کیږي، اوښانو او یا موټرو ته
به د مخکې تګ اجازه ورکول کیده.

د دوبي پیل تل د دښمنانو د کاروانو سره د مقابلې تر ټولو ګران پړاو ګڼل
کیده. دغه وخت په غرونو کې واوره ویلي کیده او ټولې لارې او ګودرونه
پرانیستل کیدل. د ژمني پړاو په پرتله د وسلو او مهماتو د راوړلو اندازه څو ځلې
زیاتیده. له دې امله (دغه وخت) د موجودو ګوزاریزو ټولګیو د مرستې لپاره مو
ځانګړې سمبال شوې الوتکې هم ګمارلې. هغوی د پولې په اوږدو کې د ګزمې تر
څنګ د کشف عملیات سرته رسول او لیدلي کاروانونه یې له منځه وړل.

سره له دې چې موږ د پولو د تړلو او له کاروانونو سره د مقابلې لپاره خورا زیات
قوتونه په کار اچولي وو، خو دغه کار مو په بشپړه توګه نه شو ترسره کولای.
کاروانونو په یوه یا بله بڼه د افغانستان خاورې ته نفوذ کاوه او دلته یې بیا تباه
کول ګران کار و. د ۱۹۸۵ کال په پای کې مو، پولې د تړلو لپاره له پلیو غنډونو،
کنډکونو او ټولیو نه هم کار اخیستل پیل کړل.

اتو ګوزاریزو کنډکونو هر یوه د مسوولیت خپله خپله سیمه درلوده. پولې ته
په نږدې ولایتونو کې د مجاهدینو جګړه ییز فعالیتونه ډیر زیات چټک وو. په
تیره بیا په کندهار، لښکرګاه، غزني او ګردیز کې ځای پر ځای شوي کنډکونه له

حال باقي و. د شوروي عسکرو له بشپړې وتنې ځواووني مخکې د دغه ځای حالات په چټکۍ سره مخ په نازکیدو شول.

په اسعد آباد کې د میشتو جزو تامونو ژوند تر ټولو سخت و. د افغانۍ جګړې په ختمیدونکی پړاو کې جګړه ییز فعالیتونه خپل اوج ته ورسیدل. زموږ د پوځونو د وتلو په درشل کې د دغه ولایت حالت ډیر خراب شول. دغه وخت تقریباً هر دورځ زموږ پر سرتیرو د ریاکتیف توغندیو او هاوانونو ډزې جاري وې. هغه څه چې د ګوزاریزو ټولګیو غړیو په افغانستان کې وکړل یوازې د زړورو او قاطع افسرانو او سرتیرو ځانګړتیا ده او بس. د ګوزاریزو ټولګیو پرسونل له مسلکی پلوه په ډیرو لوړو سطحو کې و. هغوی جګړه ییز فنون ډیر ښه پیژندل او په خورا مهارت سره یې خپلې دندې سرته ورسولې.

د افغانستان د جګړې په پړاوکې د ګوزاریزو ټولګیو پر سرهم ډول ډول پیښې راغلې دی. بریاوې هم وې او ماتې هم. په وسلو بار کاروانونو د پوپناه کولو تر څنګ چې هم یې د شورویانو او هم افغانانو د نورې وینې تویدو احتمال کماوه، کله کله ماتې هم پیښبدلې.

د دندې ناسمې تشریح، د جګړې لپاره نیمګړی چمتو والی او په تیره بیا ټاکل شوې سیمې ته د تګ په وخت کې تیروتنو ډیر ناوړه عواقب رامنځته کول. زما په یاد دی چې د ښمنانو د ځانګړو روزل شویو سرتیرو درې ډلې بشپړې له منځه یوړې، د دې خبرې دلیل څه و؟

لیږلو خبر د چې به یې ځان ته معلومه کړه ، نو بیا به یې هغې ته وخت ورکاوه چې په کراره ټاکلې سیمې ته ځان ورسوي ، خو له دوی مخکې به هلته دښمنانو کمین نیولی و. په داسې یو حالت کې چې کله هلیکوپټرې بیرته خپلو مرکزونو ته ستنیدلې او ټانکونو له دغه ځایه څو کیلومتره واټن درلود ، د ځانګړیو ایسارو شویو ټولګیو له لاسه نور هیڅ پوره نه وو. د غو سرتیرو یوازې سپکه وسله له ځانه سره وړه. دښمنانو د ماشینګنو تر ځنګ هاوانونه هم درلول او د ناځاپي برید هغه لارې چارې چې دښمنانو ترې کار اخیست ، دوی ته یې ډیر بری ورپه برخه کاوه. هغوی د ستر ګو په رپ ګې کولای شول ، د ګوزاریزو ټولګیو یوه کوچنۍ ډله ټوله له منځه یوسي.

د عملیاتو د سرته رسیدو په وخت کې له ګوزارریزو ټولګیو سره پر له پسې مخابراتي اړیکې ساتل کیدې. د دغو کنډکونو د جګړې د اصلي سیمې له پاسه څلرویشت ساعته هغه الوتکې خوځیدې چې مخابراتي څپې به یې اخذ اوله سره مخابره کولې. همدا چې د قوماندانۍ مرکز ته خبر ورسید چې ډله په جګړه کښوته ، سمدلاسه به په ډګر کې چمتو ولاړو هلیکوپټرو ته د پورته کیدو امر کیده. د غلیم ډېلودنابودولو لپاره نیم ساعت یا ۳۵ دقیقو ته اړتیا وه خو هیلیکوپټرو په دغه زماني واټن کې یوازې د جګړې سیمې ته ځان رسولی شو.

په مجموع کې د ځانګړو ګوازاریزو ټولګیو ، هوایي ځواکونو او پلیو قطعو ګډو هڅو د افغانستان په خاوره کې فعالو وړانکارو دلوته د وسلو او مهماتو د

او میاشتې هم راتللې چې د څلو ښتم لښکر قطعو د پولې دا یا هغه برخه ټپه ټرلی شوه.

د افغان - پاکستان د ګډې پولې د تړلو لپاره هڅو او دغه راز د پنجشیر په دره او بیا د کندهار، پکتیا، کونړ، هرات، بلخ او بدخشان په ولایتونو کې د یاغیانو خلاف جګړه ییزو عملیاتو او ورسره جوخت د دښمن پر مرکزونو د هوایي بمبار یو داغیز منتوب زیاتیدو، د مخالفینو مشران اړ کړل چې خپلې راتلونکې نقشې او پلانونه له سره جوړ او تنظیم کړي.

په پاکستان کې میشتو د مجاهدینو «روحاني پلرونو» هڅه کوله غیر ممکن کارونه سرته ورسوي لکه: د حکومتي ضد هڅو د کمیدو مخنیوی، له ګوزارونو څخه د اساسي ځواکونو بچ ساتل، د پیښ شوي زیان د یر ژر جبران او د افغانستان په خاوره کې د ننه د نویو مرکزونو جوړول.

د مخالفینو مشرانو ورانکارو باندونو ته د وسلو رسوونکو کاروانو د بیا بیا ضایع کیدو له امله پریکړه وکړه چې له پولې نه د اړولو په وخت کې (کاروانونو) د ساتنې ځانګړی ټولګی جوړ کړي. د هغوی مهمه دنده د شوروي سرتیرو له خوا د غلچکیو یرغلونو مخنیوی او له هغو سره مقابله و.

زموږ ګوازارینرو ټولګیو د پوځی لویو چونیو د امنیت د تأمینولو لپاره ستر کارونه سرته رسولي دي. هغوی د کابل په ګډون د افغانستان د ډیرو لویو ښارونو د پرله پسې بربادۍ خطر له منځه وړی و. د ځانګړو دندو د سرته رسولو مستقلو

پوځونو تر وتلو وروسته د افغانستان پوله له یوې داډمنې ساتنې نه بې برخې پاتې شوه بې دفاع کلی د رقیبو وسله والو باندونو د جګړو په ډګر بدل شول چې نتیجه یې د سلګونو او زرګونو ملکي وګړو حتمي تباهي راوختله.

## سید احمد ګیلاني

د پاکستان پولې ته په نږدې سیمو کې « د افغانستان ملي اسلامي محاذ » وسله والو ډلو فعالیت درلود چې مشري یې د ګیلاني په لاس کې وه.

د هغه پلار - حضرت صاحب چې دغه راز د بغداد پیر او نقیب صاحب په نامه شهرت لري، په پنځلس کلنۍ کې انګلستان ته ولیږدول شو چې هلته یې په یوه ځانګړې ښونځي کې زده کړې وکړې. وروسته نوموړي د انګلستان او المان په ځولوړو تحصیلي موسسو کې هم څه موده تیره کړه. وروسته هغه د خپلو انګریزي حامیانو په مرسته د هغه وخت د هندوستان د شمال لویدیځې صوبې (اوس همدغه سیمې د پاکستان د شمال لویدیځې صوبې په نامه یادیږي) د پښتنو قبایلو په منځ کې د یو مذهبي مشر حیثیت تر لاسه کړ. د ظاهر شاه د پلار - نادرخان له کورنۍ سره یې نږدې اړیکې ټینګې کړې. له فرصت څخه په ګټې اخیستنې سره یې جلال آباد ته څیرمه د پراخو زمکو مالکیت تر لاسه کړ. د انګریزانو په مرسته د سني مسلمانانو د « قادریه » طریقې لوی پیر غوره شو. تل د انګریزي استخباراتو فعال همکار پاتې شوی دی.

د ګیلاني مور - مار تاریختر د المانې پولیسو د یو لوړ رتبه افسر لور وه او چې

حضرت صاحب لومړی واده و.

سید (احمد) ګیلانی په ۱۹۳۱ کال کې دنیا ته راغی ده ته له پلاره د پیری درجه په میراث پاتې شوه دنیوی علوم یې په لویدیځ او دینی یې په عراق کې ولوستل. مصر او سعودی عرستان ته هم د دې مقصد لپاره تللی دی. په انګریزی، جرمنی، پښتو او دری ژبو روانې خبرې کولی شی. دویم واده یې د نادرشاه له یوې خپلوانې سره شوی دی.

ګیلانی په ۱۹۷۳ کال کې د سلطنتی نظام تر ړنګیدو پورې د ظاهر شاه غیر رسمی سلاکار و. تر اوسه هم د پخوانی پاچا په کورنۍ سره ټینګ اړیکی لری.

ګیلانی په افغانستان کې د اپریل انقلاب تر بری پورې چندان په مذهبی چاروکې نه واخته، خو له سلطنتی کورنۍ سره یې نږدې اړیکو او د پښتنو قبایلو له روحانی مشرانو سره پراخ تماس او دغه راز خپلې مادی شتمنۍ، له پاکستان سره د ګاونډیو ولایتونو د پښتنو قبایلو په منځ کې پوره اعتبار ورکړی و.

د جلال آباد ه شاو خوا کې یې له پلاره پراخې زمکې ورته په میراث پاتې شوې. دغه راز د قره قل پوټکو د صادراتو، په مرکز کې د «پیژو» موټرو پلورنځی او سر بیره پردې په کابل، کندز او د هیواد په نورو ښارونو کې د غیر منقول ملکیت له درکه هم ورته کافی عایدات په برخه کیدل. د انقلاب په درشل کې د ګیلانی شخصی ملکیت د اوو میلیونو امریکایی ډالرو په انډول تخمین شوی و.

چې په ننگرهار کې د گیلاني شتمني په ۱۹۷۸ کال کې ملي شوه نو هغه بیا پاکستان ته وتښتید.

« د افغانستان د ملي اسلامي محاذ » مشر د نظریو له پلوه معتدل مذهبي – سیاسي شخصیت دی. سلطنتي کورنۍ ته له ښکاره تمایل سره سره هغه د نوي دول « اسلامي دیموکراسۍ » او په اسلامي اصولو بنا یو حکومت او یوه جمهوري دولت د جوړولو پلوي کوي. گیلاني د اسلامي حزب د مشر گ. حکمتیار افراطي حرکاتو ته په کرکه کتل او هغه یې هسې « ځان ښودونکی » او نادان باله.

گیلاني په ۱۹۷۹ کال کې افغانستان ته د شوروي پوځونو لیږل سخت وغندل او ټول مسلمان یې له موږ سره نه پخلا کیدونکې مبارزې ته راوبلل.

د گیلاني چارچاپیر په لویدیځ کې روزل شوي شخصیتونه او دغه راز هغه پخواني پوځي افسران او دولتي مامورین راټول شوي چې د انقلاب په کلونو کې له هیواد ، تښتیدلي او اوږده موده یې د کابل له رژیم سره په وسله واله مبارزه تېره کړې ده.

## نه پخلا کېدونکی اپوزیسیون

شوروي پوځي قوماندانۍ په افغانستان کې د خپل حضور په ټولو نهو کلونو کې پرله پسې مبارزه کوله چې د مجاهدینو لوېې او ورې ډلې ځان ته راماتې کړي ، خو د اپوزیسیون زیاتې برخې له دغسې تماسونو څخه په کلکه پرهیز کاوه. د وخت په تېریدو سره (دغې ډلې) د « نه پخلا کیدونکې » لقب وگاټه.

پرتو د ندو له مخې تاکل کیدای شي. لومړی دنده، په افغانستان کې د سیاسی بې ثباتۍ منځ ته راوړل وو. ، دویمه دنده د انقلابی رژیم نسکورول وو. د دې هدف لپاره نه پخلا کیدونکی اپوزیسیون ښې ډیرې هڅې کولې چې د اوږدې پارتیزانی جګړې په منظور ځواکونه راټول او لازیات کړی.

دښمنانو له شوروی عسکرو او حکومتی پوځیانو سره د جګړې په ډګر کې خپلې لویې ماتې د هیواد پر خلکو او افغانی عسکرو د ایدیالوژیکی اغیزې د پیاوړتیا په مرسته جبران کولې.

یاغیانو د حکومتی مقاماتو په پرتله یو شمېر ټولنیزې لانجې ډیرې ښې هوارولې. مثلاً د مجاهدینو تر لاس لاندې سیمو کې د نویو ښوونځیو پرانیستل. مسعود په پنجشیر کې له جومات نه د ښوونځی کار اخیستلو ته اجازه ورکړه.

دښمنانو خپلې واکمنۍ ته د قانونی بڼې دور کولو له پاره په ځینو ولایتونو کې په واز کومی جار واهه چې هغوی د دولتی مامورینو، د پوځ او ځارندوی د افسرانو له خپلوانو نه درندې جریمې اخلی. د دغې جریمې اندازه د دوواو دریو زرو افغانیو تر منځ وه.

نه پخلا کیدونکی اپوزیسیون له ورانکارو او تروریستی متودونو نه پراخه ګټه اخیستله. د ددغو اقداماتو لوی هدف د سیمې دوګروډا رول او د انقلاب ضد ټولنیز بنسټ پراختیا وه.

د یادولو وړ ده چې مجاهدینو د ایتالیې سیزې له بنمایي نه د تروریست

تنکیو زلمیانو نه پراخ کار اخیستل پیل کړل. مثلاً موږ ته معلومه شوې وه چې د بغلان په ولایت کې له شلو تنکیو زلمیانو نه یوه ورانکاره ډله راجوړه شوې ده. هغوی نه یوازې د ولایتي مقاماتو او شوروي افسرانو کلکه څارنه کوله، بلکه ځینې وختونه به یې ډیر خطرناک تروریستي اعمال هم سرته رسول.

د وخت په تیریدو سره مجاهدینو د ورانکارو عملونو د سرته رسولو په مقصد د افغاني وسله والو پوځونو او څارندوی او ان د شوروي عسکرو له یونیفورم نه هم کار اخیستل پیل کړل. دښمنانو ډیر ځله د ځلویښتم لښکر د بدنامولو په منظور زموږ د پوځیانو کالي اغوستل او بیا به په لارو کې دربدل او داسې به یې ښودله چې ګنې د (شوروي) ساتونکې پوستې یا ګزمې غړي دي. په دغه وخت چې به هره ترانسپورتي وسیله، د دوی لاس ته ورغله تالاکیدله ( ؟ د. ج )

دښمنانو خپل پوره وس کاوه چې د ښارونو او سیدونکو ته د خوړو او نورو ضروري شیانو په رسیدلو کې زیات خنډونه رامنځته شي. د حکومت له اقتصادي کړنلارې نه د خلکو د ناراضه کولو په غرض، یاغیانو سترو ښاري مرکزونو ته تللې لارې تل بندولې او پرهغویې د غنمو، لرګیو او داسې نورو شیانو وړلو ته اجازه نه ورکوله. مثلا: د خوست لویې اولسوالۍ ته د شیانو په رسیدو کې د بندښت د پیدا کولو په غرض، هغوی نه یوازې سیمې ته ورغلې ټولې کورنۍ لارې، بلکه هغې خواته له پاکستان نه ورغلې لارې هم بندولې.

د نه پخلاکیدونکې اپوزیسیون د اقتصادي ورانکارۍ په سیاست کې غټ

مثلاً د پروان په ولایت کې یاغیانو چې د څارندوی کالي یې اغوستي وو، کارگران لوټول او ډارول، د بگرام د هوایي ترمیم ځای تخنیکي کارکوونکي او انجنیران تر ټولو زیات تر فشار لاندې نیول شوي وو. سره له دې چې شوروي پوځیانو سخت امنیتي تدبیرونه نیولي وو، د مجاهدینو د پرله پسې اقداماتو په وجه موږ ونه کړای شول، داسې شرایط رامنځته کړو چې دغه فابریکه په خپل پوره توان کار وکړي. د فابریکې تولیدي وړتیا له جگړې نه د مخکې وختونو په انډول په سلوکې اتیا راټیټه شوه. دغسې یو حالت د نغلو د بریښنا په فابریکه، د گلبهار په نساجۍ او د افغانستان په نورو تولیدي موسسو کې هم رامنځته شوی و.

د نه پخلاکیدونکي اپوزیسیون لویه هڅه دا وه چې د هیواد په دولتي موسسو او وسله وال پوځ کې خپل استخبارات ایجاد او پیاوړي کړي. دښمنانو غالباً د داوطلبو (سرتیرو) په بڼه نفوذ کاوه. چې څنگه به د پوځي ښوونې او روزنې دوره تیره شوه، د دغو کسانو یوه برخه به له خپلو وسلو سره مخالفینو ته ورتښتیده او بله برخه به یې په پوځ او څارندوي کې د ورانکارو عملونو د سرته رسولو په منظور پاتې شوه.

مجاهدینو د ځلویښتم لښکر خلاف په جگړو کې د لاس ته راغلې تجربې په مرسته د پارتیزاني جگړې د پرمخ بیولو طریقې لا نورې اصلاح کولې. مثلاً هغوی د اتیایمې لسیزې په اوا سطو کې اړشول چې خپلې لویې ډلې منحل کړي او اساسي ځواکونه د کوچنیو ډلگیو په بڼه د خلکو د اوسیدو په سیمو کې ځای پرځای

کمیټې یا د نه پخلاکیدونکي اپوزیسیون د واکمنۍ ارګانونو هم دغو ځایونو ته په لیږدیدو پیل کاوه. د دغو کمیټو مشرانو د خپل نفوذ په سیمو کې له دولت سره په مرستې تورنو کسانو او یا هغه چا خلاف چې له دښمن سره له پراخې مرستې نه یې سرغړولی و، علنی اسلامی محکمې دایر ولې.

دغه راز ایران او پاکستان ته د (پوځی) زده کړو او هم د وسلو او مهماتو د لاس ته راوړلو په منظور د ډلو استول چټک شول. دښمنان د اپریل او مې په میاشتو کې بیرته افغانستان ته راستنیدل. اوږدو جګړو ښودله چې یوازې همدغو ډلو د شوروي او حکومتي عسکرو خلاف په جګړه کې تر ټولو زیاته سر سختی او فعالیت څرګند اوه.

د افغان - پاکستان له ګډې پولې نه د تیروشویو اساسي لارو د بندولو لپاره، زموږ له هڅو سره جوخت، دښمنانو د وسلو د لاس ته راوړلو په منظور د لنډو لارو د پیدا کولو لټه هم پیل کړه. سربیره پردې د احتمالي خطر د مخنیوي لپاره دښمنانو د مختلفو کاروانونو په لیږلو پیل وکړ. په دغو کاروانو کې به د بیلابیلو ګوندونو غړي شامليدل. دا د مختلفو (جهادي) تنظیمونو د همکارۍ د منځ ته راوړلو په غرض د هڅو یوه کوچنۍ لړۍ وه. په دې لړۍ کې د اطلاع ورکول او مخابرې واحد سیستم او دغه راز د بیلابیلو باندونو د مشرانو تر منځ د اطلاعاتو د حتمي تبادلې خبره راتلله.

خیانت په نتیجه کې نه یوازې سپکه وسله. بلکه هاوانونه، لنډتوپونه او دغه راز وسله وال گاډي هم تر لاسه کول.

## صبغت الله مجددی

د ۱۹۸٦ کال د جولای په ۱۸ د افغانستان دموکراتیک جمهوریت اختصاصی انقلابی محکمې د مخالفینو یو شمیر نامتو مشران په اعدام محکوم کړل. د هغو کسانو په ډله کې چې په څه نامعلوم علت په اعدام نه وو محکوم شوی، یو هم د «افغانستان د ملی نجات جبهې» مشر صبغت الله مجددی و. عجب تصادف: په کابل کې د اختصاصی انقلابی محکمې له پریکړې یوه اوونۍ وروسته له مرگ نه بچ شوی مجددی د «اووه گونی اتحاد» د عالی شورا د پریکړې له مخې د یوې بلې درې میاشتنۍ دورې لپاره د هغې رئیس وټاکل شو.

مجددی په ۱۹۲۱ کال کې زیږېدلی دی. هغه د افغانستان په یوې ډیرې اغېزمنې خاندانی سلسلې یعنې حضرتانو پورې اړه لری چې د پیغمبر (ص) اولاده گڼل کیږی. د مجددی ټبر د عربی هیوادونو په تیره د سعودی عربستان له شتمنو کورنیو سره د خپلوی د اړیکو په گډون کلک او رنگارنگ اړیکی او دغه راز د لویدیځې اروپا او امریکا له سیاسی او تجارتی کړیو سره پراخې او ډیرې نږدې شخصی پیژندگلوی لری. له افغانستان نه بهر د مجددیانو د ټبر له اتو سوو زیات غړی او سیژی چې زیات یې د اسلامی افراطیونو په سیاسی فعالیتونو کې

د صبغت الله مجددي پلار محمد مسعود مجددي او نيکه فضل محمود مجددي د افغانستان په وتلو مذهبي او سياسي شخصيتونو کې راځي. د غو سنتي اسلامي شخصيتونو د ټولو هغو هڅو په وړاندې چې اسلام د ورځې له شرايطو سره برابر کړي، مقابله کړې ده. هغو په خپلو سياسي هڅو کې تر هر څه لمړي پرمر تجعو اسلامي روحانيونو او شتمنو روشنفکرانو تکيه لرله.

د هيواد د ټولنيز ژوندانه پر بهير د دغه ټبر د غړيو اغيزه خورا ستره وه. مثلاً: د صبغت الله مجددي بل نيکه محمد صادق مجددي له ۱۹۲۹ کال نه تر ۱۹۵۳ کاله پورې په مصر کې د افغانستان سفير و. نوموړي د يو شمير عربي شيخانو له کورينو سره چې اوس اوس د سعودي عربستان په مشرانو کې راځي، ښه ټينگې اړيکې پيدا کړي وو چې له ځانه يې خپلې اولادې ته د ميراث په توگه پريښودل.

صبغت الله مجددي چې د کابل (ديني) مدرسه په ښوونځي پای ته ورسوله نو په ۱۹٤۷ کال کې مصر ته لاړ او هلته يې د الازهر پوهنتون د اسلامي حقوقو په پوهنځي کې شپږ کاله زده کړې وکړې او د شرعياتو د ماسټرۍ ډيپلوم يې په ښوونځي تر لاسه کړ.

وطن ته له ستنيدو وروسته مجددي د کابل په يو شمېر ليسو او پوهنتون کې په تدريس بوخت شو. هغه په جوماتونو کې د موعظو او په ټولگيو کې د تدريس په وخت کې عادي خلک او محصلين د حاکم نظام پرنگولو او په افغانستان کې د

مجددی د حکومتي ضد اقداماتو او دغه راز د هغه شوروی هئیت خلاف د ناوړه قصد د لمسولو په تور چې د افغانستان په کتنه بوخت و ، په ۱۹۶۰ کال کې په څلور کاله بند محکوم شو ، خو په زندان کې یې له څو اوونیو زیات موده تیره نه کړه او ډیر ژر خوشې شو . څه موده یې په کابل کې د سعودی عربستان د سفارت د ژباړونکی دنده درلوده او په همدې نامه د شپږو میاشتو لپاره د امریکا متحدو ایالاتو ته ولیږل شو .

په ۱۹٦٤ کال کې مجددی دوه کلن مهاجرت کوی او خپلې ټولې هڅې ټولنیزو او سیاسی کارونو ته وقفوی . په همدې وخت کې هغه د شرعیاتو د یوه عالم او د ژبور خبر لوڅ په نامه چې په پنځو بهرینو ژبو هم تسلط لری ، شهرت مومی . مجددی د مهاجرت په دې دوره کې خپل یو شمېر آثار د چاپ لپاره چمتو کړل لکه : « په اسلام کې سیاست » ، « منطق او فلسفه » ، « یووالی او د ایمان اساسات » . مجددی په دې کتابونو کې « د حقیقی اسلام د بیا ژوندی کولو او هغه ته دیر غلیزې ( په بله ژبه جګړه مارې ب . ګ . ) ځانګړتیا دورکولو » تبلیغ کاوه .

وروسته چې کله مجددی هېواد ته راستون شو ، نو د ده په مستقیم ګډون او لارښوونه په افغانستان کې د « اخوان المسلمین » په نامه د اسلامی ارتجاعی ډلې بنسټ کېښودل شو . لږ وروسته د دغې ډلې یوه بله څانګه د « ځوانو مسلمانانو » په نامه منځ ته راغله چې په مشرتابه کې یې د ص . مجددی په وړاندیز ګ . حکمتیار ته هم ځای ورکړل شوی و .

اوله همدې امله يې د پاچا مخالفت ته هم ملا وتړله. په ۱۹۷۱ کال کې چې کله د پاچا يي استخباراتي ادارې غړيو د مجددي يو نږدې ملګري وواژه، نو هغه لومړی پاکستان او وروسته امريکې ته وتښتيد او هلته يې د څه مودې لپاره د «اسلام پيژندنې» درس ورکاوه. د پاچايي نظام د نسکوريدو په وخت کې په لندن کې و او له همدې ځايه يې د «غير اسلامي ماهيت» له کبله د داود په نوي رژيم نيوکې پيل کړې.

د سلطنت له ړنګيدو وروسته مجددي په پاکستان کې د «اخوان المسلمين» د معتدلو غړيو له منځه د اسلامي روحانيونو جمعيت ( ؟ د. ج. ) په جوړولو اقدام وکړ.

په کابل کې د اپريل تر انقلابه مجددي په هالند کې اوسيده، څو ځله ډنمارک ته لاړ چې «د سکنډناوي هېوادونو د اسلامي مرکز» د جوړيدو پر سر منځ ته راغلې لانجې غوڅې کړي. په ډيرو سکنډناوي هېوادو کې يې د دغه مرکز د څانګو او دغه راز د جوماتونو په جوړولو کې شخصاً ونډه اخيستې ده. د ډنمارک او هالنډ په يو شمېر پوهنتونونو کې يې د اسلام د تاريخ په هکله لکچرونه هم ورکړي دي.

مجددي له افغانستان څخه بهر سياسي فعاليت هم له پامه نه غورځاوه. د ۱۹۷۸ کال په د سمبر کې په ډاګه د افغانستان دموکراتيک جمهوريت ټول مخالف ځواکونه د افغانستان د خلکو دموکراتيک ګوند خلاف د مبارزې لپاره يو والي ته راوبلل.

کابل کې چاغماري شول. همدا خبره د دې سبب شوه چې صبغت الله پاکستان ته ستون شي. دی لومړی « دافغانستان دملي نجات جبهې » د انقلاب ضد ډلې په مشر تابه کې شامل شو او وروسته يې دهغې مشري په غاړه واخيسته.

د ۱۹۷۹ کال په مارچ کې مجددي دافغانستان دمسلمانانو په نامه خپله خطابيه خپره کړه چې هغې کې يې خلک « د کمونيستي ملحد رژيم خلاف جهاد » ته رابللي وو. د همدغه کال په منی کې دافغانستان دانقلاب ضد ځواکونو د يوه استازي په توګه د امريکا متحدو ايالاتو ته لاړ او هلته د امريکا دحکومت دلوړ رتبه مامورينو له خوا ومنل شو.

دافغاني انقلاب ضد ډلو په منځ کې مجددي ته « په لويديځه طريقه » دافغاني لانجې د غوځولو دپلوی خطاب کېده. دده په لاس دخپل سازمان په ليکل شوی مرام کې ويل شوي چې د « جبهې » مقصد دافغانستان دخلکو دموکراتيک ګوند دنظام دنسکورولو او په اسلامي بنسټونو او خپلو دمرکراتيکو اصولو بنا دولت دجوړولو لپاره دټولو انقلاب ضد ځواکونو يو موټی کول دي.

د ۱۹۸۱ کال په نوامبر کې دافغانستان دحکومت خلاف دمبارزې داشکالو: متوددنو او نهايي اهدافو پر سر د مجددي او حکمتيار ترمنځ چې دغه وخت يې پوره شهرت موندلی و، اختلاف پيدا شو. له همدې امله مجددي « دافغانستان د مجاهدينو اسلامي اتحاد » ډله منځ ته راوړه چې په هغې کې ګيلاني، نبي، دوست محمد او نور هم شامل شول. په ۱۹۸۵ کال کې مجددي د امريکا او پاکستان په

«اووه گونی» اتحاد کې ورگډ شو.

ص. مجددی بیا بیا او په ډاگه د افغانستان دخلکو دموکراتیک گوند سره د یوه ائتلافی حکومت دجوړولو خبره رد کړې او ټینگار یې کړی چې د نوی افغانی حکومت غړیتوب یوازې «دخپل هېواد او اسلام ژغورونکی مسلمان» ترلاسه کولی شی.

د مجددی دټبر دغړیو او چت ټولنیز اعتبار د خورا پاملرنې وړ خبره ده. صبغت الله دیارلس ورونه لری. په دې ډله کې یې شپږ خپل او پاتې یې میرنی دی چې له دوو نورو میندونه دنیا ته راغلی دی.

عزت الله مجددی چې په امریکا کې یې زده کړې سرته رسولې دی، دامریکا دحکومت مامور دی او اوږده موده له امریکا او سعودی عربستان سره د صبغت الله د نږدې کولو وسیله وه.

قدرت الله او اسدالله مجددی د طب ډاکتران دی چې په امریکا کې دایمی استوگنه لری او په افغانی انقلاب ضد فعالیتونو کې یې کومه ځانگړې ونډه نه وه اخیستې.

خلیل الله مجددی د انجنیری زده کړې کړی او اوږده موده په استرالیا کې اوسیدلی دی. وروسته بیا سعودی عربستان ته ولیږدیده او همدلته د نورو په مرسته د «اسلامی کانگرس» دسازمان دمرستو دصندوق مشر شو. دغه سازمان

دافغانستان په خاوره کې دانقلاب ضد [illegible]

موسسو سره نږدې اړيکې لري. ډيره موده په پاکستان کې اوسيده او دلته په

ګوندي چارو کې د صبغت الله مرستيال او له هغه وروسته « دافغانستان د ملي

نجات جبهه » کې دويم سړی و. هغه چې تروروستي برې دافغانستان له حکومت

سره دمبارزې پلوی و، له بهرنيو اسلامي کړيو او افغاني انقلاب ضد مرکزونو سره

يې د « ملي نجات جبهې » اړيکې ټينګې کړې دي.

د يوه روسي لرغوني متل له مخې، هره کورنۍ يو بدفطرته غړی لري. د

مجدديانو په کورنۍ کې دغه ځانګړتيا درحمت الله مجددي په برخه وه. په

۱۹۶۰ کال کې همده سلطنتي استخباراتي مامورينو ته خبر ورکړ چې صبغت الله

د شوروی هئيت خلاف د ناوړه قصد په تيارولو بوخت دی. رحمت الله د دغه

خيانت له امله د خپل ټبر له نفرين سره مخامخ شو. هغه وروسته د خپلې غوښتنې

له مخې شوروی ته واستول شو چې همدلته د لمبا په وخت کې ډوب او مړ شو.

نعمت الله او ضابط الله مجددي « دافغانستان د ملي نجات جبهې » دمشر

تابه غړي وو چې په وارسره يې د « جبهې » لپاره د وسلو په پيدا کولو او ويشلو او

دغه راز د کابل په حوزه کې د خپل تنظيم دفعاليتونو مسؤوليت په غاړه درلوده.

سربيره پردې په سعودي عربستان کې د صبغت الله د تره زوی او يوه خورهم

اوسيږي چې د حاکمې سلطنتي کورنۍ د يوه شهزاده ميرمن ده.

له خپلو زامنو سره د صبغت الله اړيکې ډول ډول دي. له نجيب الله

(مجددي) سره چې د طب ډاکتر او دامريکا دايمي استوګن دی، له اسلام نه د هغه

دځانګړې استازي په توګه دهغه تر څنګ وي او عزيزالله د اسلامي حزب د تروريستانو په لاس وژل شوي چې د صبغت الله مجددي او د اسلامي حزب د مشر حکمتيار ترمنځ د پخواني سختې دښمنۍ د لاژورتيا سبب شو.

په زړه پورې ده چې دافغانستان دانقلابي دولت د قومونو او قبايلو دچارو وزير سليمان لايق هم عملاً د مجدديانو د کورنۍ غړی ګڼل کيږي، ځکه چې خورېې – مهرنګار د صبغت الله مجددي ميرمن وه. په دې ترتيب د صبغت الله يو شمېر زامن د سليمان لايق خوريونه کيږي. له مجددي سره د لايق د خپلوۍ په لړکې مورته داخبره هم ښکاره وه چې د صبغت الله خلاف دلايق د بيابيا پوچوخبرو په وجه، نوموړی د مجددي دډېر غليم بلل شوی و. دټولو انقلابونو منطق، په تيره بيا که هغه د ختيځ په کوم هېوادکې منځ ته راغلی وي، دادی چې وروربه د ورور او پلار به دزوی خلاف وسله اوچتوي.

يو ورځ له ماسره په شخصي ملاقات کې دسليمان لايق له خولې داخبره راووتله چې دمجددي ډېر په هکله دهند په ارشيف کې دانګلستان د «انتلجنس سرويس» اسناد شته چې ښيي، ددې کورنۍ کوم غړي په څه پيمانه له انګريزي استخباراتو سره اړيکې لرل. لايق شکايت وکړ چې ددغو اسنادو د لاس ته راوړلو لپاره دده له هڅو سره ببرک کارمل سخت مخالفت کاوه ځکه چې ډارېده په دې صورت کې به له انګريزي استخباراتو سره دانقلابي حکومت ديو شمېر غړيو او دهغو د نږدې اطرافيانو پخواني اړيکې بر بنډې شي.

کلونو کې د خپلې کورنۍ د سیاسی، تجارتی او مالی اړیکو او دغه راز دمذهبی اعتبار له برکته عملاً د مجاهدینو د ټولو مشرانو لاربښوونکی او مذهبی پیران ګڼل کیدل او خپله صبغت الله د نه پخلاکیدونکی اپوزیسیون تر ټولو اغیزمنه څیره وه. مجددی د هیواد په ختیځ او جنوب ختیځ کې د میشتو پښتنو قبایلو په منځ کې او دغه راز د سمنګان او بغلان په ولایاتو کې زیات پلویان لرل. «دملی نجات جبهې» دوسله والو غړیو شمیر په منځنۍ ډول تر لسو زرو تنو اوښته چې د هغوله منځ څخه پنځوس ډلې راجوړې شوې وې.

خبره باید نوره غوڅه شي په ۱۹۸۵ کال کې شوروی مشران له افغانستان نه د څلوېښتم لښکر دایستلو داحتمال څېړلو ته اړشول. داکال دډیرو سختو جګړو شاهد و. له یوې خوا داپوزیسیون اوله بلې خوا د شوروی او افغانی عسکرو مقابلې خپل اوج ته ورسیدې. تقریباً هره ورځ مونږ ته نوی او لانوی تلفات اوښتل، خو د شوروی له زیاتېدونکې مرستې سره سره، په حالاتو کې یو کوچنی مثبت بدلون هم نه راته.

دافغانستان دموکراتیک جمهوریت سیاسی او پوځی مشرانو د هیواد پرحالاتو د کنترول او د خپلې دندې دسمې اجرا وس له لاسه ورکړی و. د مشخصو اقداماتو پر ځای به ترې په انترناسیونالیزم او دافغانستان په روښانه راتلونکې داعتقاد په هکله ښکلې جملې او ویناوې اوریدل کیدې.

خو عادي افغانانو

پیښېږي شوي دي. دغه ټول شیان بیخي عادي بریښېدل، خو که یو ځل د کوم بهرني ښېه دې هیواد ته ورننوتې ده، نو بیا حالاتو بیخي بله بڼه غوره کړې ده.

په افغانستان کې زموږ د پوځي اړتیا وو دلیرې کولو او ددغه هیواد د رژیم په ساتنه سخت زیات لګښت کېده. دغه وړیا مرستې په داسې وخت کې ترسره کېدې چې خپله شوروي اتحاد د ډېرو مهمو خوراکي موادو له زیات کمښت سره مخامخ و.

افغانستان ته له دې ځایه د هر شي سیلاب روان و. خبره دې ځای ته ورسېده چې د شوروي اتحاد بېلابېلو ولایتونو ته دافغانستان دولایاتو «قیمومیت» په غاړه واچول شو. مثلاً: دولګاګراد ولایت د غزني ولایت د قیمومیت په لاس کې نیولو سره مجبور و، بوره، غنم، غوړي، تخنیکي وسایل او ماشین آلات هغه ځای ته برابر کړي. انترناسیونالیستي روزنې اجازه نه راکوله چې مثلاً د دریو یا پنځو ښوونځیو او کلیوتر منځ د څوکیلو متره سړک د جوړولو په هکله دافغانانو ټینګې غوښتنې له پامه وغورځول شي. عملاً خبره دا ده چې باید شوروي قیم ولایت دافغانستان د مربوطه ولایت د ټولو ستونزو د حل لپاره متې رانغښتې وای. ترکومه ځایه چې ماته پته لګېدلې، داکار د شوروي ولایاتو او د جمهوریتو د واکمنو لپاره لوی عذاب ګڼل کېده. دغو واکمنو په کابل کې له لنډې د مې وروسته، په ځان پورې د ټرلیو افغاني ولایتونو پر لور د تګ په درشل کې په ښکاره داګیلې کولې.

لانجو پریکړه څکه د شوروی اتحاد په گټه نه تمامیدله چې شوروی عسکر لا په افغانستان کې دیره وو.

د څلوېښتم لښکر قوماندانی او دشوروی اتحاد ددفاع وزارت او پراتیفی ډلې چې هغه وخت په کابل کې دیره وه، پرله پسې وړاندیزونه کول او داخبره یې په گوته کوله چې نور باید د پوځونو د ایستلو خبره غوڅه شي. دافغانستان له لانجې نه زمونږ لپاره د خلاصون بله لار اصلاً نه وه. دوسلې په زور په افغانستان کې مقصد ته درسید لو امکان نه و. مهمه خبره دا وه چې زمونږ دهیوادوالو وژنې دوام درلود خو هیڅوک نه پوهیدل چې داولې او د څه لپاره؟

له ښېو ښبانو څخه داسې برېښي چې د م.س. گرباچوف تر لاربښود کیدو مخکې هم زمونږ دهیواد د چارو واکمنان په پای کې په دې قانع شوی وو چې نور نو باید افغانستان ته د «انترناسیونالستی» مرستې موضوع غوڅه کړی شي. بنایی دهغو شوروی مشرانو له ډلې نه چې افغانستان ته د پوځونو د لیږلو په پریکړه کې یې لاس درلود، دهیڅا په ذهن کې هم نه گرځیده چې مونږ به نږدې لس کاله په دغه هیواد کې تم کیږو. تر کومه ځایه چې اوس پته لگیدلې، په ۱۹۷۹ کال کې داگڼل کیده چې په دغه هیواد کې زمونږ د پاتې کیدو اعظمی موده له دوو - دریو کلونو څخه نه شي زیاتیدلی، خو په ۱۹۸۵ کال کې څلویښتم لښکر دادی د پنځه کلنې جگړې تجربه لرله.

شک نه شته چې زمونږ مشران نور په دې پوهېدل چې دافغانستان غوټه اوس

شک لرم چې پخوانۍ رهبري دې دعسکرو دایستلو پریکړه کړې وای. د شوروی حکومت او دګوند د مرکزي ارګانونو ډیر غړي نه یوازې په ایدیالوژیکی مزو او دخپل دولت دامنیت دساتنې په هکله د زړو سندرو په جادو ترلي وو ، بلکه له افغاني مشرانو سره یې نږدې شخصي اړیکي هم لرل. دافغاني انقلابي مشر تا به هیڅ غوښتنه له پامه نه غور ځول کیده. سړی ته په ذهن کې داسې ورګرځیدله چې د شوروی مشرانو په نزد ترټولو لوړ بشری ارزښت همدغه انترناسیونالستي مرسته ده او بس. زموږ د سرتیرو مرګ او افغانستان ته د ډیرو مادي نعمتونو په استولو سره خپل اقتصاد ته زیان رسول دوی ته د ارزښت له پلوه په دویمه درجه کې راتلل.

موږ مسلکي پوځیان به د ځینو پوځي عملیاتو د پلان دتیارولو په وخت دې حقیقت ته پوره متوجه کیدلو ، د ساري په توګه: د څلویښتم لښکر قوماندانۍ ته امر کیده چې په یوه خاصه سیمه کې دې دجګړه ییزو عملیاتو دسره ته رسولو لپاره تیاري ونیسي. داسې امرونه له مسکوه رارسیدل. په داسې حال کې چې سالم عقل حکم ، کاوه چې په خپله په افغانستان کې په جګړه بوختو افسرانو ته غوره معلومیږي چې په کوم ولایت کې څه ډول جګړه ییز عملیات سرته رسول په کار دي.

موږ ښه پوهیدو چې دمسکو د دې امرونو اصلي ریښه چیري ده. ډیر ځله موږ اړکیدلو چې له درواغو څخه کار واخلو ، خو دا یوه سپینځلي فریب کاري وه چې په

دې یا هغه سیمه کې دجګړه ییزو عملیاتو د سرته رسولو غوښتنه وکړه، نو موږ به تر هر څه لومړی د حالاتو جاج واخیست او معلومه به مو کړه چې داعملیات د څه لپاره ضروری دی او ایا ریښتیا ورته اړتیا شته او که نه؟ زیاتره به موږ له دغې څېړنې وروسته منفی ځواب ورکاوه، خو افغانانو هم پرله پسې ټینګار ته دوام ورکاوه. هغوی خپلې غوښتنې د شوروی سفارت او یا په کابل کې د ک. ګ. ب. ددفتر له لارې مسکو ته لیږلې او بیرته د امرونو او لارښوونو په بڼه موږ ته رارسیدلې، موږ په مختلفو پلمو او ان په نیرنګونو سره، داسې کول چې عملیات یوازې په پلان کې ونیسو او د مسکو له خولې نه ځان خلاص کړو. موږ به خبرورکاوه، مثلاً په پلانکې سیمه کې مو ستاسو د لارښوونې له مخې، داسې یا هغسې عملیات سرته ورسول.

زه په غوڅه توګه ویلی شم چې د څلویښتم لښکر وړاندیزونه او بیا بیا غوښتنې وې چې د هیواد مشران یې اړ کړل، په افغانستان کې د شوروی پوځونو په باب خپل دریځ بدل کړی او په پای کې پریکړه وکړی چې وړاندې باید څه وشی؟

زما په نظر په دې هکله نیول شوې پریکړه، یوازینی ممکنه او سمه پریکړه وه: شوروی پوځی حضور باید پای ته ورسول شی. له دې پرته موږ مجبور وو، د څلویښتم لښکر د پرسونل شمېر دوه برابره کړو. یوازې د افغان – پاکستان د ګډې پولې د ترلو لپاره زموږ په حساب لږ تر لږه اتیا زره عسکرو ته اړتیاوه. عملاً موږ مجبوریدو چې په افغانستان کې د ځان لپاره د خپلې سرحدي قواوې راجوړې کړو

وړې وای.

په ۱۹۸۵ کال کې د شوروي پوځي ځواکونو د ايستلو د موضوع ځانګړې څېړنه پيل شوه. وروسته وروسته دا موضوع په لوړه سطحه وڅېړل شوه او ټړيواله بنه يې غوره کړه. د څلويښتم لښکر افسرانو او سرتيرو د ژنيو د خبرو اترو پايلې په مينه تعقيبولې ځکه چې هغو تر هر څه لومړی په موږ پورې اړه لرله. هيڅوک نه پوهيدل چې د ژنيو خبرې اترې به په څه پای ته ورسيږي، خو مهمه دا وه چې هغه بالاخره پيل شوې.

# د څلويښتم لښکر په قرارګاه کې

هيڅ پوځي جزوتامونه، نه شي کولی چې د قرارګاه له سمې نقشې پرته دقيق فعاليت وکړي. په کابل کې د څلويښتم لښکر قوماندانۍ هم د کار خپلې ځانګړ تياوې لرلې.

په افغانستان کې د شوروي پوځونو د حضور له هماغو لومړيو شيبونه، ان د څلويښتم لښکر د لومړنی قوماندان جنرال توخارينوف له خوا هر سهار د غونډو دسرته رسولو دود منځ ته راغلی و، چې د هغو په لړ کې موجود حالات څېړل کيدل او د پوځي قطعاتو د راتلونکي ورځنی دندې مشخصې کېدلې، دې دندو دورځې او شپې دوختونو لپاره توپير درلود، ځکه چې د شپې د تيارې په خپريدو سره د خطر اند!زه هم زياتېدله. د دې غونډو د جوړولو مسؤول معمولاً د لښکر درستيزوال و، وروسته چې کله زه د لښکر قوماندان شوم نو بيا دا چارې ما په خپله

که چیرې به حالات ډیر خراب شول نو بیا پر قوماندان سربیره، دلښکر درستیزوال، دهرې فرقې قوماندان او دهغې درستیزوال هم دخپل مسؤولیت په سیمه کې دپریکړې دکولو حق درلود. که چیرې به دغه مقامات غایب وو، نو بیا دلښکر یا فرقې داستخباراتي چارو مسؤول ددغو کارونو صلاحیت درلود.

غونډ دسهار په اوو بجو داستخباراتو دڅانګې دمشر په دې رپوټ پیل کیده چې دهغه مربوطو افسرانو کوم کوم شیان روښانه کړي دي. دهمدغو ترلاسه شویو معلوماتو پر بنسټ حالات تحلیل کیدل او دلویو پوځي څانګو او ادارو دمشرانو دندې ټاکل کیدې.

ترټولو لومړی موږ دهغو کاروانو او باندونو خلاف مبارزه کوله چې دپاکستان او ایران له خاورې یې نفوذ کاوه. وروسته مو دهغو سیمو حالات څیړل چې دوسلو او مهماتو زیرمې په کې وې، یا نوې دجوړیدو په حال کې وې. دغه سیمې موږ ته ښې معلومې وې او دڅلویښتم لښکر لپاره ترټولو زیاتې خطرناکې سیمې ګڼل کیدې.

سهار نیولنډو غونډو زیاته پاملرنه او دقواود تمرکز غوښته په ټول افغانستان کې پر څلویښتم لښکر سربیره، دافغانستان دوسله وال پوځ، څارندوی او خاد قطعاتو هم فعالیت درلود. موږ مجبور وو، دپریکړو دنیولو په وخت کې دهغوی موقعیت ښه مشخص کړو او مثلاً داسې نه شي چې دافغاني اردو کومه قطعه له دښمن سره اشتباه او دشوروي هوايي ځواکونو تر بمبارۍ لاندې راشي او یا

وکړي. هره ورځ ډېر داسې نزاکتونه رامنځته کېدل چې پاملرنه اړول ورته حتمي بریښېدل مثلاً که به شوروي پوځي قوماندانۍ دغزني په شمال کې دمجاهدینو له استازیو سره په خبرو پیل وکړ، سمدلاسه به په دغه سیمه کې جنګي عملیات بندیدل.

له سهارنیو غونډو وروسته دڅلویښتم لښکر درستیزوالۍ تریوې تاکلې اندازې خپل اقدامات دافغانستان ددفاع وزارت له پلانونو سره سمبالول. موږ به یا هغوی ته ویل چې مثلاً دڅه وخت لپاره دې په ټاکلې سیمه ګوزارونه کوي او یا برعکس په دغه سیمه دې خامخا ګوزارونه وکړي شي. ځیني وختونه موږ غوښتل چې یوازې دافغانستان هوایي یا توپچي ځواکونه دې ټاکلې هدف له منځه یوسي. لنډه داچې خبره داسې غوټه کېده چې هم زموږ دپرسونل او هم دملکي خلکو دزیانمن کېدو مخنیوی په کې وشي.

زه بیا بیا په خیالونو کې دافغانستان خواته ورګرځم او دې نتیجې ته رسیږم چې په سختو حالاتو کې دکار دغه متود ډېر اغیزمن دی. دا یوازې په پوځ پورې اړه نه لري او په ملکي ساحه کې هم پلي کېدای شي. دواک او امکاناتو په یوه موټي کې راټولولو، دا امکان برابر اوه چې ځواکونه پر خپل وخت ټاکلې لورې ته سوق او یو شمیر ستونزې له هیلې سره سمې حل شي.

## دکابل او هوایي ډګر دامنیت ساتنه

دڅلویښتم لښکر دقوماندانۍ لپاره، یوه لویه ستونزه دافغانستان دپایتخت

پایتخت په ټولو دولتونو، په تیره بیا ختیځ کې خورا زیات ارزښت لري. د تنظیمونو لپاره پر کابل د توغندیو، هاوان، یا لنډو توپونو، یا هسې د سپکې وسلې ډزې د عزت او اعتبار خبره وه.

د څلوېښتم لښکر قوماندانۍ باید په داسې حالت کې، د مخالفینو له خوا د احتمالي یرغل خطر تر وسه وسه کم کړی وای. دا کار یوازې د ښار گرد چاپیره زموږ د اغیزې د سیمې د پراختیا او د بیلابیلو محافظتي کمربندونو د منځ ته راوړلو له لارې ممکن کیدای شول. په کار وه چې بهرنی کمربند په داسې یوه واټن کې جوړ شي چې له یوې لورې هم ویشتل شوې گولۍ ان د ښار څنډو ته هم رانه رسیدلې شي.

ورو ورو د کابل پر شااوخوا دفاعي کړۍ بشپړه راتاوه او فعاله شوه. لومړی کړۍ چې ښار ته نږدې پرته وه، په ۱۹۸۰ کال کې جوړه شوې وه. موږ څو ثابتې پوستې ځای پر ځای کړې، خو د ۱۹۸۰ کال په فبرورۍ کې یعنې افغانستان ته زموږ له ورتگ دوه میاشتې وروسته لومړنیو ډزو موږ مجبور کړو چې ډېر سنجېدلی عمل وکړو. له یوه کال نه بل ته د ښار امنیتي او دفاعي سیستم لا بشپړېده او په ۱۹۸۵ کال کې هغه په بشپړه توگه پای ته ورسید. د غه سیستم له دوو کمربندونو څخه خورا مطمین جوړ شوی و او مقصد یې دا و چې د افغانستان حکومت. شوروي نماینده گیو او د څلوېښتم لښکر قوماندانۍ ته وس ورکړي چې د نسبي امنیت په فضا کې کار او فعالیت وکړي.

داسې واټن کې پرتې وې چې په هغو کې ځای پرځای شویو ډلګیو کولی شول، ښار ته ننوتلې ټولې لارې دډزو په وسیله بندې کړي.

دلیرې کمربند پوستې دغرونو په څوکو کې جوړېدلې. دکابل دامنیت دساتلو ترڅنګ یې بله دنده پرله پسې استخباراتی څارنې وې، څو ښار ته دسترو بانډونو دناڅاپي رارسېدلو او نږدې سیمو ته دتوغندیو او دهغو دویشتونکو دستګاوو دراوړلو امکانات له منځه یوسي.

سربېره پردې دښار دامنیت دلاښه تأمین لپاره موږ هوایی څارنو ته هم دوام ورکاوه. الوتکې پرله پسې اوان دشپې له خوا هوا ته پورته کېدلې، ځکه چې غلیمانو هره شیبه خپل تاکتیک ته تغییر ورکاوه. مخالفینو هم له شرایطو سره ځانونه عیارول. مثلاً: که داتیا یمې لسیزې په اواسطو کې زموږ په چونیو او تأسیساتو دشپې یا ورځې په هر وخت کې انداختونه کېدل، نو دشوروی پوځ دوتلو په درشل کې بوازې دورځې له خوا زموږ په سرتېرو ډزې کېدلې. دښمن پوه شو چې دشپې ډزې دهغوی لپاره ډېرې ګرانې دی، ځکه چې دتوغندی دانجن دآواز له مخې، دهغه دویشتلو ځای ژر معلومیدلی شو.

دهوایی ډګرونو ساتنه هم خورا سخته دنده راوختله. دځلوېښتم لښکر دهوایی ځواکونو دامنیت دساتلو لپاره تل اړوو چې له ډېرو زیاتو ځواکونو نه کار واخلو. دهوایی ډګرونو دساتنې دځانګړیو کنډکونو په ترکیب کې د اصولنامې له مخې درې ټولی شاملیدل چې هر یوه یې یوازې اته جنګی ګاډي درلودل. شک نه شته

کولای، پر هوایي ډګر داناختونو مخه بنده او دکیناستونکو یا پورته کیدونکو الوتکو او هلیکوپترو لپاره امنیتي سیمې منځ ته راوړي.

الوتلو یا کښیناستلو هم په افغانستان کې ځانګړی رنګ درلود. الوتکه په ډېره لوړه ارتفاع، معمولاً ۷۵۰۰ یا ۸۰۰۰ مترو کې دهوایي ډګر و سرته رارسېدله او بیا یې په مارپیچي توګه خپله ارتفاع کموله. له دغسي یوې الوتنې څخه سړی ته تل یو ناوړه احساس پیدا کیده: په نظر درتله چې الوتکه له هماغې نوري نقطې څخه په زمکه «راغورځیږي». په سوله ییز وخت کې پیلوټ معمولاً په سړه سینه اوان له ډګر نه پنځلس کیلو متره وړاندې دکښیناستلو چمتووالی نیسي، خو په افغانستان کې ددې کار کول روانه وو. دلته نو په کار وه چې پیلوټ له خپل ټول مهارت نه کار واخلي او دسختې پیکی په وخت کې چې تقریباً پر امنیتي سیمه درالویدو بنه یې درلوده، دوروستي چرخ په وخت کې له دوه درې سود مرۍ نه ځان دناستي کرښې ته وربرابر کړي،

زما په نظر ډیره ناوړه وضعه دبګرام په هوایي اډه کې منځ ته راغلې وه. ځانګړتیا په دې کې وه چې د بګرام هوایي ډګر ته له هرې خوا د کلیو لړۍ راغزیدلې وې. دښمنانو چې په دغو کلیو کې دعادي او سیدونکو تر پردې لاندې پټیدل، له هر فرصت نه یې په هوایي تخنیک او دغه راز دالوتنې پر کرښو دیر غل لپاره ګټه اوچتوله.

موږ په بګرام کې خورا ډیر ځواک راټول کړی و: دلته مجموعاً څلور کنډکه

شمېر عسکرو له خوا ساتل کېدل....

په افغانستان کې رنګارنګ پېښې منځ ته راتللې. کله کله دښمنانو په برې سره هغه هوايي ډګرونه ويشتل چې زموږ هوايي ځواکونه په کې ځای پر ځای شوي وو. کله کله د دغسې يرغلونو په نتيجه کې موږ ته زيان هم رسيده. د دغې سلسلې وروستی يرغل ترکومه ځايه چې زما په ياد دی، د ۱۹۸۸ کال په دسمبر کې سر ته ورسيد. له افغانستان نه د ځلوېښتم لښکر له بشپړې وتنې څو اوونۍ مخکې د کابل هوايي ډګر ډزو لاندې راغی. دغه هوايي ډګر په دوو وجلا برخو ويشل شوی دی. د الوتنې د کرښې يوې خواته د نړيوال هوايي ډګر دودانۍ په ګډون ټول اساسي تأسيسات واقع شوي دي. بلې خوا ته يې زموږ هوايي غونډ ځای پر ځای وچې په کې ترانسپورتي الوتکې او هليکوپترې ناستې وې.

ګومان نه کوم چې په هغه بدمرغه ورځ (دښمنانو) رسا دهوايي ډګرهمدا برخه په نښه کړې وه، خو سره له دې يو توغندی پر عسکری قاغوش ولګيده چې په کې د هوايي قوااو افسران او ارده ضابطان اوسيدل. ډزې دغرمې د ډوډۍ په وخت شروع شوې. پيلوټان او کشافان په خونه کې ناست وو او په تلېزيون کې يې د روسيې د «دينامو» د ټيم په ګډون دهاکي لوبې ننداره کوله. توغندی دهمدې کوټې پر سرولګيده، هغه يې سوری کړ، لاندې وغورځيد او وچاوود. يوولس پوځي پيلوټان ووژل شول. له خپلو پوځي پيلوټانو سره د ژورې مينې په احساس اوله دې امله چې موږ يې ژوندونه ژغورلي شو، دخپګان په څرګندولو سره مو

# گلبدین حکمتیار

د گلبدین حکمتیار وسله والو ډلو په کلکه هڅې کولې چې دافغانستان دمرکزي برخو، په تیره بیا دکابل پرحالاتو اغیزمن وي. دهغو عمومي شمېر د یرشو زرو او پنځه سوو تنو ته رسیده چې په ۸۵۵ ډلو ویشل شوي وو. دهغو دفعالیتونو اساسي مرکزونه په بغلان، پروان، کاپیسا، کابل، وردګو، لوګر، کونړ، ننګرهار، پکتیا، زابل، کندهار او هلمند کې وو. دحکمتیار وسله وال کسان په نورو ولایتونو کې هم جنګیدل، خو دشمېر دکموالي له امله یې پرحالاتو ټاکونکې اغېزه نه لرله.

دافغانستان داسلامي حزب مشر گلبدین حکمتیار په ۱۹٤٤ کال کې زیږیدلی دی. هغه د کندز دیوه غټ زمکه وال په کور کې ستر شو. دحکمتیار نیکونه په قام خروټي پښتانه وو او همدې خبرې دهغه په وده او شهرت کې ستره ونډه لرلې ده. حکمتیار داپوزیسیون دډیرونه پخلا کیدونکو مشرانو په ډله کې و.

حکمتیار په ۱۹۷۱ کال کې په کندز کې د یوې اشرافي لیسې تر بشپړولو وروسته، دکابل پوهنتون دانجنیرۍ په پوهنځي کې شامل شو. خو زده کړې یې ډیرې اوږدې نه کړای شوې. حکمتیار چې د محصلي په چاپیریال کې گام کښیښود نو سمدلاسه د «ځوانو مسلمانانو» سازمان له لار دسیاسي مبارزې ډگر ته راووت. خپلې لارښوونکې وړتیا، داهدافو په لاس ته راوړلو کې زیار

سره نږدې اړيکو، حکمتيار ددې جوګه کړ چې «دځوانو مسلمانانو» دلاښوونکې کميټې په غړيتوب ومنل شي. سربيره پردې، حکمتيار د پوهنتون دمحصلينو په اتحاديه کې ددغه سازمان استازی هم وټاکل شو.

داوياېمې لسيزې په پيل کې، کابل پوهنتون، په افغانستان کې دانقلابي بدلونونو دراوستلو په عمده مرکز بدل شوی و. په پوهنتون کې هم دافغانستان دخلکو دموکراتيک ګوند، هم ماؤيستانو او هم افراطي اسلامي ډلو فعاليت درلود. دهمدغو اسلامي ډلو تراغيزې لاندې د «ځوانو مسلمانانو» سازمان منځ ته راغی او وار له واره يې د پاچايي نظام خلاف او په افغانستان کې ديو اسلامي جمهوريت دجوړولو لپاره دمبارزې متې راونغاړلې.

ددولت ټکوونکي ارګانونه هم لاس ترزنې نه وو ناست. په ۱۹۷۲ کال کې حکمتيار پاچايي کورنۍ او اشرافيت ته دسپکو سپورو په ويلو زندان ته واچول شو. په ۱۹۷۳ کال کې د پاچايي نظام په ړنګيدو سره نوموړی د زندان له عذابونو نه خلاص شو او بهر راووت.

حکمتيار هغه وخت د مخالف غورځنګ دمشرانو په ډله کې ځای ونيو چې په افغانستان کې د بدلون غوښتونکو سازمانونو خلاف ټکوونکو اعمالو زور اخيسته. دده تر مشرۍ لاندې ډلو سخته رازداري ساتله او همدې شي وس ورکاوه چې نه يوازې له بحراني شيبو څخه روغ رمټ راووځي، بلکه ټاکلی سياسي اعتبار هم ترلاسه کړي.

لارښوونه ترسره کېدې، حکمتیار په ۱۹۷٦ کال کې پاکستان ته تېښتې ته

اړشو. څه موده وروسته حکمتیار د «اخوان المسلمین» او «د ځوانو مسلمانانو»

دبنسټ پالوکړیو په یوکولو سره «دافغانستان اسلامی حزب» جوړ او مشري یې

په خپله غاړه واخیسته.

حکمتیار داسلامی حزب دراجوړولو په وخت کې دوتلو پاکستانی ټولنیزو او

مذهبی شخصیتونو سره نږدې اړیکی ټینګې کړی وې او هغوی ورته په خپل وار

ناپایه مالی مرستې ورسرکړې وې. دسیاسی ودې په هماغو لومړیو وختوکې

دحکمتیار په برخلیک کې ددغو کړیو دښه نیت دغه مرستې او ملاتړ ددې سبب

شو چې نوموړی په راتلونکی کې پاکستانی پوځی کړیو او په تیرد بیا

استخباراتوته میلان پیداکړی. له دې سره جوخت حکمتیار په ایران کې داسلامی

انقلابی غورځنګ وده هم له پامه نه غورځوله. هغه دخپلې سیاسی تګ لارې د

لاسمي طرحې لپاره دهڅو په لړکې په ۱۹۷۹ کال کې تهران ته سفر وکړ او څو

ځلې یې له خمینی سره وکتل.

په افغانستان کې د اپریل انقلاب له بری وروسته داسلامی ډلو او سازمانونو

ډیر فعال غړی پاکستان ته لاړل. حکمتیار هم په همدغه ډله کې و (؟ د. ج.)

دحکمتیار نظریاتی استقلال، دهغه دسیاسی افکارو ښکاره انقلابی ضد ماهیت

او په ګوندی چاروکې زوروتیا او کلک زړی دکډوالو بهیر دده خواته ورمات کړ،

خو ددې په څنګ کې دحکمتیار ځینې شخصی ځانګړتیا وې، لکه له خلکو سره

يوې اندازې عجيب او غريب حرکات ، ددې سبب شول چې هغه دانقلاب ضد نورو افغاني مهمو مشرانو په منځ کې تجريد شي .

په نويو شرايطو کې حکمتيار ونه کړای شو ، د يوه اسلامي اصلاح غوښتونکی او قاطع سياستمدار په توگه له مجددي سره اړيکې ټينگې کړي او همدا خبره دانقلابي ضد کړيو په منځ کې د هغه دلانور تجريد سبب شوه او د هغه داعتبار او اغيز د نور زياتوالي په لاره کې يې خنډونه رامنځته کړل .

داتيايمې لسيزې په پيل کې حکمتيار دافغانستان دسياست په ډگر کې نسبتاً نوې ځيره گڼل کيده . هغه زياتره وخت دډله ييزو پريکړو خيال نه ساته او د نورو مشرتابه ته يې غاړه نه ايښوده . داخبره ددې سبب شوه چې دده د (اسلامي) غورځنگ نوراندېوالان پرده داغيزې دښندلو لپاره دپاکستاني مامورينو لمن ونيسي . اسلامي حزب ته مالي او پوځي مرستې له همدغې لارې رسيدلې .

تقريباً دټولو انقلاب ضد تنظيمونو له مشرانو سره دنظر اختلافونه ، دپاکستاني مقاماتو له خوا پرله پسې ځارنه او فشار او ان ددغه هيواد دجمهور رئيس ضياالحق له خوا شخصي نيوکې ددې سبب شوې چې حکمتيار بيا بيا په ډاگه تهران ته دخپل گوندي مرکز دليږدولو گواښ وکړي .

دپوهنتون په دوره کې چې حکمتيار دسياسي وده په لمړي سر کېږو ، هغه ته دافراطي خطاب کول سم نه بريښي . دخپلو سياسي افکارو دتشکل په وخت کې

مالي مرستو زياته اغيزه وکړه، خوله دې سره سره داتيايمې لسيزې په پيل کې

گ. حکمتيار دافغانستان له حکومت سره دروغې جوړې ديوې لارې دموندلو لپاره دتماسونو دنيولو احتمال نه رداوه. مثلاً په ۱۹۸۳ کال کې هغه هڅه وکړه له قادر سره چې هغه وخت دافغانستان دملي دفاع وزير و، دليکونو تبادله وکړي. دځينو نورو شواهدو له مخې حکمتيار پخواهم ځو وارد له ح. امين سره ليده کاته کړي وو. امين دخپل ژوند په وروستيو وختو کې حکمتيار ته په حکومت کې دشامليدو وړانديز کړی و، خو دکوم ناڅرگند دليل پربنسټ، دغه وړانديز رد شوی و.

حکمتيار دعقيدې له مخې سنتي مسلمان نه شي گڼل کيدای او په شرعياتو کې ژور معلومات نه لري. داوړدو کلونو په لړکې دهغه اعتبار دمجاهدينو دډيرې افراطي کړی، په منځ کې خورالوړو. دحکمتيار ځينې شخصي ځانگړتياوې لکه لوړتيا غوښتنه، حرص او ځان غوښتنه په دوو برخو يعنې د يونس خالص په ډله او «دافغانستان دمسلمانانو د آزادی سازمان» ( ؟ د.ج.) باندې داسلامي حزب دټوټه کيدو اساسي عوامل گڼل کيږي.

په مجموع کې حکمتيار دکابل رژيم ديوه ډير ستر دښمن په توگه پيژندل شوی دی. داسلامي حزب وسله والو ډلو چې دلويديځ د پوځي او مالي مرستو غټه برخه يې ترلاسه کوله. د اولسي واکمنی داستازيو او د اولس په منځ کې دهغو دملاتړو خلاف له سختې بيرحمۍ نه کار اخيست.

# « کارمل لور په لوټه تیره کوي »

له ۱۹۸۵ کاله په افغانستان کې دشوروي اتحاد د دفاع وزارت داوپراتیفي ډلې مشري جنرال والنتین ایوانوویچ وارینیکوف ته وسپارل شوه. ددې سړي په باره کې باید ځانګړې خبرې وکړم، ځکه چې هغه دمحدودو پوځي ټولګیو د ټولو قوماندانانو په منځ کې وتلی ځای لري.

جنرال وارینیکوف پوره جدي سړی دی. له دې سره سره هغه پوهیده چې ځلوېښتم لښکر ته دپاملرنې اصلي مانا په دې کې نه ده چې مثلاً دسرتیرو د خوړو او استراحت حالت ښه کړي شي، بلکه ترهرڅه لومړی په کار ده چې دِمادونانو ژوند وژغورل شي. د وارینیکوف ټولې هڅې همدې ټکي ته متوجه وې.

وارینیکوف د پوځي مهارتونو تر څنګ دیو غوره سیاستمدار او دیپلومات وړتیا وې هم درلودې. وارینیکوف د مخالفینو دقوماندانانو او آن د «اووه ګوني اتحاد» دځینو مشرانو په ګډون دافغاني ټولنې له بیلابیلو قشرونو سره دتماس ټینګولو دلارې دهیواد له حالاتو پوره خبرتیا درلوده او دځلوېښتم لښکر او حکومتي پوځونو له ربښتونې اوضاع نه پوره آګاه و. دشوروي اتحاد ددفاع وزارت داوپراتیفي ډلې مشر پخپله دجګړو ډګرته ورته او تقریباً دافغانستان هر ولایت ته یې یوځل سرورښکاره کړی دی. ښایي دوارینیکوف په اندازه هیڅوک په افغانستان کې دسړکونو دجوړولو، داوبورسولود کانالونو دبرښنا دمزو په تمدید او د کورونو

کاته کول.

وارینیکوف د خپل مقام په اقتضا او ږده موده دافغانستان له مشرانو سره ځنګ په ځنګ کار کړی او ترکومه ځایه چې ما ته ښکاره ده دهغوی په هکله یې په قضاوت کې مبالغه نه لیدل کیږي. جنرال وارینیکوف (ددوی په هکله) خپل نظریات نه پټول او ځینې یې آن خپاره شوی هم دي. وارینیکوف دببرک کارمل په هکله وایي:

«هغه به تل هغه څه چې ورته ویل کیدل، په خورا غور اوریدل، ډیر شیان به یې دځان له پاره یاداشت کول او دغوندې په پای کې به یې ویل: «تاسې ووینئ تاسې فکرو کړئ ... »اوبیا به بې سرتیب کړاو په لیکلو به اخته شو خو« موږ پوهیدو »چې داکارمل به هیڅ کار هم ونه کړي. . . » په واقعیت کې هم خبره همداسې وه، پر کارمل نه خپلوانديوالانو، نه اولس او نه زموږ سلاکارانو باورکاوه. هغه د لوړې کچې عوام غولوونکی او ډیر ماهر فرکسیون بازو. دانقلابي جملو ترشاد پټیدو سخت مهارت یې درلود. دغه «استعداد» ده ته وس ورکړ چې ځان لاربښود – لاربښود جوړ کړي. هر ځل چې به کومه خطا ترې وشوه، نو دنورو دقناعت له پاره به یې ویل: «ملګرو، اوس زه په هر څه پوه شوی یم! نورې تیروتنې به رانه ونه شي!» هر ځل به باور پرې وشو او خلک به (دعملي اقداماتو) په انتظار وو. هغه به بیا دګوند (دبنسټ) په لړزولو لاس پورې کړ، خلکو ته به یې رجوع نه کوله او ښایي ددغه کار ورتیایې نه درلوده او یا ورته دغه کار اصلاً بې فایدې بریښیده. یو د

دولتي او گوندي چارو کې يې يوه لويه بيروکراتيکه اداره منځ ته راوړه. د گوند او دولت ډيرې غوره پريکړې به همدلته بندې پاتې کيدې، له بده مرغه ډيرو په کارمل پورې هسې زړه تړلی و، او دهغه فريب به يې خوړ. »

ښکاره ده چې دشوروی اتحاد داستخباراتو دولتي کميټې (ک. گ. ب.) د ۱۹۷۹ کال په پای کې دافغانستان دنوی مشر په توگه دببرک کارمل په ټاکلو سره لويه خطا کړې ده. د ک- گ-ب مشرانو چې نه غوښتل په خپلی دې خطا اعتراف وکړی، داگيله چې کيدای شی د کارمل ټيټ معنوی استعداد او په هغه کې دلارښوونې دوړتيا نشتوالی زموږ د گوندي او پوځی سلاکارانو د هڅو په مرسته جبران شی، خو دوخت په تيريدو سره له يوې ورځې نه بلې ته د کارمل اداره کول لا پسې گرانيدل، اوس يې نو په ښکاره (زموږ له خوا) دشويو لارښوونو له پامه غور ځول پيل کړی. د کارمل دشخصيت فساد دزياتو او ښکاره شرابو دڅښلو له امله نور هم زياتيده.

له دې سره چوخت دافغانستان دموکراتيک گوند دننه دډلو تر منځ خپل منځی شخړې نهايی حدته ورسيدې. فرکسيونی گټو له دولتی تقاضا وو نه زيات ارزښت موندہ. ورو ورو په ټولو دولتي او گوندی څوکيو د پرچم دډلې غړو خيته واچوله.

کارمل په هيواد کې دسياسی واک دتقسيمولو له مفکورې سره چې زموږ سلاکارانو يې په اړتيا زورا چاوه، کلک مخالفت کاوه. دانقلابی رژيم دتجريد

صورت کې به هغه ډیر امتیازونه له لاسه ورکړي. د ۱۹۸۶ کال په پسرلي کې داخبره بیخي په ډاګه شوه چې کارمل دانقلابي بدلونونو له بهیر سره دمرستي پرځای، دهغو دمخنیوی له پاره هلې ځلې کوی. په کابل کې دا عقیده منځ ته راغله او په مسکو کې هم ورسره موافقه وشوه چې کارمل نور باید خپل ځای یوه نوي ځواکمن مشر ته خوشې کړي. سلا دافغانستان داستخباراتي اداري دمشر نجیب‌الله پر سر راغله چې د ۱۹۸۶ کال په « مې » کې دافغانستان د خلکو دموکراتیک گوند د عمومي منشي په توگه وټاکل شو.

## « په خبرو اترو دې پیل وشي »

څه دپاسه شپږ میاشتې دنجیب دریځ پوره جوت نه بریښیده، له یوې خوا دافغانستان دخلکو دمواکراتیک گوند دمرکزي کمیټې دعمومي منشي په توگه په دې پوهیده چې په کورنۍ سیاست کې دبنسټیزو بدلونونو راوستل ضروري دي او ددغو بدلونونو مقصد باید له اپوزسیون سره دمخامخ خبرو سرته رسول وي. شوروي مشرانو ددغې مفکورې مخالفت نه کاوه بلکې لاره نه وه پاتې. له بلې خوا د پخوا په څیر ببرک کارمل په کابل کې و، چې تر دغه وخته یې ایله « نیمه ستیه » غوڅه شوې وه! هغه لا اوس هم دافغانستان دموکراتیک جمهوریت دانقلابي شورا رئیس دافغانستان دخلکو دموکراتیک گوند دمرکزي کمیټې دسیاسي بیرو غړی پاتې شوی و. په دې توگه نو نجیب مجبورو حکومتي چارې، هغه دچاخبره

« محرم

# د شوروی اتحاد د کمونیست گوند مرکزی کمیټه

دافغانستان دخلکو دموکراتیک گوند دمرکزی کمیټې دعمومی منشی په توگه د نجیب له ټاکنې وروسته منځ ته راغلی یو شمیر مثبت پر مختگونه مخ په پراخیدو دی. دگوندی ارگانونو کارچټک شوی، د تبلیغاتو بڼې او ډولونه بدلون مومی او د وگړو پرپراخو قشرونو داغیزې ښندلو له پاره دنوپولارو چارو موندل په چټکۍ سره روان دی. دافغانی وسله وال پوځ په حالت اود هغوی دجنگی وړتیا په برخه کې ټاکلی مثبت بدلونونه پیښ شوی دی.

خوله دې سره سره په هیواد کې د پوځی او سیاسی حالت ښکاره ښه والی منځ ته نه دی راغلی ملگری نجیب دحالاتو عینی جاج اخلی او دخپلو دندو پیچلتیاته یې پوره پام دی.

دهیــــواد دحـــالاتو په هکله خــپل نظریات ملگری نجــیب له ملگری ی.م.وارنځوف سره د ۱۹۸۶ کال د اکتوبر له ۱۸ - ۲۲ پوری په کابل کې دشویو خبرو اترو په ترڅ کې بیان کړی دی (له کابله په دی هکله رارسیدلی) ټلگرامونه لمبر: ۱۱۷۹، ۱۱۸۲، ۱۱۸۸، ۱۱۹۰.

نجیب دساری په توگه یادونه کړې چې دافغانستان د ۳۱ یا ۳۵ رزو کلوله ډلې نه شکلاً یوازی ۸ زره کلی ددولت واکمنی منی او دواک دسیمه ییزو مقاماتو له پاره دانتخابات له دې نه هم په کم شمیر یعنی په ۲۷۰۰ کلیو کې او هغه هم ښارونو

کوي او دا چې په کلیو کې دانقلاب ورته پلوی نه کیږي، ملامتي يې پخپله دافغانستان دخلکو دموکراتیک گوند په غاړه ده چې تر اوسه يې ونه شو کړای بزگرانو ته دانقلاب اصلي ماهیت او اهداف روښانه کړي. دملگري نجيب په عقیده، دگوند اوسنۍ دنده داده چې باید له ښارونو دکلیو په لورو خوځیږي.

ملگرې نجيب یا دونه کړې چې دانقلاب ضد ځواکونو جگړه ییزې هڅې کمې شوې نه دي. هغه وویل اوس اوس افغانستان دموکراتیک جمهوریت په خاوره کې دننه ۱۶۰۵ ورانکارې ډلې فعالیت لري چې عمومي شمیر یې ۱۸۳ زرو تنو ته رسیږي او له دې ډلې نه ۸۰ زره تنه دانقلاب ضد فعال جنگي ځواک جوړوي. دانقلاب ضد ځواکونو تاکتیک هم بدلون مومي او اصلاح کیږي. دکاروانی لارو یو برخه چې بانډونو ته پرې داړتیاوړ شیان رسیږي اصلاً بندې نه دي. داکار د پولو د تړلو له پاره زموږ دهڅو لا زیاتوالي غواړي.

ملگری نجيب ټینگار وکړ چې که وغواړو یوازې په پوځي وسایلو ټولې لانجې هوارې کړو، نو ددولتي واکمنۍ دپراختیا او ټینگښت له پاره دهڅو داوسنی سرعت په پام کې نیولو سره نور ۲۰ یا ۳۰ کاله دحالاتو دعادي کولو له پاره په کاریږي. په دې اړوند دهغه په نظر مهمه دنده، ملي روغې جوړې ته درسیدوله پاره د هڅو چټکتیا ده.

دملگري نجيب په عقیده دافغانستان د ننه او بهر له هغو اسلامي تنظیمونو

تر سره کیدی شي، ملګری نجیب داګڼي چې اشرافیت، فیوډالي کړی، غټ ځمکوال او مرتجع یعني «بنسټ وپال» ملایان به هیڅکله روغې جوړې ته غاړه کې نه ږدي. خوله دې سره سره له ځینو ځانګړو استازو سره یې تماس ټینګول شو نی بریښي. هغه وایي که ملي روغه جوړه هم وشي نو ددولتي شورا او وزیرانو شورا ریاستونه، ددفاع، ملي امنیت، کورنیو چارو، مخابراتو او مالیې وزارتونه، دبانکونو ریاستونه، ستره محکمه، څارنوالي او پوځي - حقوقي سازمانونه باید خامخا دافغانستان خلکو دموکراتیک ګوند په لاس کې همداسې پاتې وي. دمقابل لوری استازو ته کیدی شي ددولتي شورا او وزیرانو شورا مرستیالي او دغه راز دکرنې، عامي روغتیا او اوبولګولو وزارتونه او بیلابیلو وزارتونو معینیتونه او دولایتونو مقامونه وسپارل شي. پخواني پاچاته دپلار وطنې ملي جبهې یا پارلمان ریاست کیدای شي ورکړو. داسلامي ډلو سیاسي سازمانونه کولای شي دپلار وطنې ملي جبهې ډله ییز غړیتوب ترلاسه کړي، او خپل فعالیت په قانوني توګه پرمخ بوځي. ملګری نجیب په ځای ټینګار کوي چې دافغانستان دموکراتیک جمهوریت داساسي قانون د تصویب په کار کې بیړه په کارنه ده، ځکه چې دهغه ډیر مواد به په دې پورې اړه ولري چې په هیوادکې دملي روغې جوړې بهیر څنګه پرمخ ځي.

ملګری نجیب ددې امکان په څیړلو غور کوي چې د ملي روغې جوړې په هکله

ملګري نجیب دسیاسي حل مسایل او دشوروي پوځونو د ایستلو موضوع له ملي روغې جوړې سره په پیوند کې بولي، هغه وویل د حل دیوې لارې له موندلو وروسته دافغانستان دموکراتیک جمهوریت نه دشوروي پوځي ټولګیو دوتلو د مودې تر دوو کلونو راکمیدل له امکانه لیرې نه بولي او د لومړي او دوهم کال په ترڅ کې یې د ستنیدونکو عسکرو دشمیر په هکله یولړ نظر یې څرګندې کړې.
هغه دروغې جوړې دنور واړخونو په هکله نظر څرګند کړ چې ښه به وي دملګرو ملتو د موسسې له مخامخ ونډې اخستې پرته دروغې جوړې په عمومي چوکاټ کې د نړیوالې څارنې (سیستم) منځ ته راشي، دروغې جوړې بهیر ته یې دایران دراماتولو بیلابیل واریانتونه وړاندې کړل، له پاکستان سره یې دافغانستان دچارچاپیر حالاتو د هوارۍ په هکله زموږ دمخامخ تماسونو امکان وستایه.
ملګري نجیب پوهیږي چې تردې وروستیو وختو پورې دملي روغې جوړې له پاره ډیر لږ کار شوي دي. داسې ښکاري چې هغه له دې مسئلې سره د حقیقي چال چلند دلارو چارو دموندلو متې رانغښتې دي. په دې کار کې له هغه سره زموږ مرستې ته اړتیا لیدل کیږي، په تیره بیا چې دافغانستان دخلکو دموکراتیک ګوند زیات غړي، آن دهغه ځینې مشران دملي روغې جوړې مفکوره عملاً نه شي قبلولای. په دې لړ کې دشوروي اتحاد ته دروان کال تر پایه ته رسیدو مخکې دملګري نجیب رسمي سفر کولای شي مهم رول ولوبوي. ددغه سفر په ترڅ کې کیدی شي دملي روغې جوړې او دافغانستان د شاوخوا کشالې سیاسي لارې

لا تېنګولو سره مرسته کولای شي. ملګري نجيب دا ګڼي چې دافغاني مشرتابه دهڅو دلا اغېزمنتيا له پاره ديوشمير مقاماتو تغيير او تبديل حتمي بربښي.

هغه له ملګري وارنځوف سره دخبرو په ترڅ کې او دغه راز په دې وروستيو وختو کې په کابل کې جوړوشويو يو شمير نورو غونډو کې ټينګار وکړ چې بايد ببرک کارمل دافغانستان دخلکو دموکراتيک دمرکزي کميټې له سياسي بيرو رونه وايستل شي او دغه راز دافغانستان دموکراتيک جمهوريت دانقلابي شورا درياست څوکۍ هم بايد ترې واخيستل شي. ملګري نجيب وايي چې ب. کارمل په خپله له ګوندي او دولتي دندونه ځان ګوښه کړي، يوازې نيوکې کوي او دملي روغې جوړې له تګ لارې سره مخالفت ښکاره کوي. ملګري نجيب ويره څرګنده کړه چې د ببرک کارمل دځان غوښتنې حس چې دهغه دروغتيا د خرابۍ او د شرابو دزياتو څښلو له امله نور هم ژورشوي دي، کولی شي هغه نه اټکل کيدونکو اقداماتو ته اړ کړي، په کارده هغه له اوسينو مقامونو نه په سوله ييزه بڼه ليرې کړی شي، مثلاً کيدای شي هغه راضي کړو چې پخپله خوښه له دغوڅوکيونه لاس په سر شي.

دملګري نجيب له خوا دغه راز ددفاع وزير نظر محمد پرځای دسياسي بيرورود غړي محمد رفيع او د بهرنيو چارو دوزير شاه محمد دوست پرځای دعبدالوکيل دټاکل کيدو خبر دهم رااوچته شود (شاه محمد دوست له دغه مقامه له ګوښه کيدو وروسته کولای شي د مخصوصو چارو دوزير او دملګرو ملتو په سازمان کې

روغې جوړې په مسألو هم بوخت پاتې شي).

دځینو مقاماتونو د تغییر او تبدیل په هکله د ملګري نجیب نظریې معقولې برېښي. په کابل کې زمونږ د سلاحکارانو له مشاهداتو نه د ساري په توګه معلومېږي چې ببرک کارمل دځان له پاره (له دې پیښو نه) لازم جاج نه دی اخستی، له بلې خوا دهغه تندخویي چې په نوي زوړاو نویو بنیو ځان څرګندوي، دملګري نجیب دهڅو د پخیدو سبب ګرځي او افغانستان د خلکو دموکراتیک ګوند دمرکزي کمیټې په سیاسي بیوروا او مجموعاً په ټول دغه ګوندکې دهغه دکارونو خندکیږي. د ۱۹۸٦ کال دنومبر ۱۳

## « پوځې لاړو چارو له ځان سره بري رانه وړ »

**اشد محرم**

**یو نقل (خصوصي یادداشت)**

دشوروي اتحاد دکمونست ګوند دمرکزي کمیټې دسیاسي بیورو غونډه

د ۱۹۸٦ کال دنوامبر ۱۳

۱۱ - دظاهرشاه په هکله:

ګرباچوف: آیا ټول ملګري دملګرو چبریکوف، شیواردنادزې، سکولوف او دوبریلنین له یادداشتونو سره آشنا شول؟

دسیاسي بیوروغړي: هو آشنا شوو.

ګرباچوف: چې داسې ده نو راځئ د نظریو راکړه ورکړه پیل کړو. ما ته خو زړه

د پیښنوسبم جاج اخلي او دځان په وړاندې د پرتو ستونزو په سختوالي ډېر ښه پوهیږي. هغه د ملي روغې جوړې له پاره دهخو چتکوالي، له بزگرانو سره د یووالي پیاوړتیا او دهیواد دگوندي او دولتي مشرتابه یوموټي والي (خپله اساسي دنده بولي....

کارمل هسې لور په لوته تیره کوي.

داشپږم کال دی چې په افغانستان کې جنگیږو، که نورې لارې چارې ونه سنجول شي نو ۲۰ یا ۳۰ کاله نور به هم هلته دجگړې له پاره پاتې کیږو، داکار کولای شي پرحالاتو داغیزې ښندلو په هکله زموږ وړتیا له شک او تردید سره مخامخ کړي. زموږ پوځیانو ته هم باید وویل شي چې دجگړو له بهیرنه یې کافي لوست نه دی زده کړی. ښایي ددې کارله پاره زمینه نه وي چې زموږ ستر درستیز په خوځیدو راشي؟ اصلاً موږ ددې ستونزې دهوارولو لپاره سمه لارنه ده غوره کړې. څه، موږ مجبور یو دیوې ناپایه مودې له پاره وجنگیږو او په دې توگه نړیوالوته ثابته کړو چې دحالاتو درغولو وس نه لرو؟ موږ باید داپروسه په ډیره لنډه موده کې غوڅه اوختمه کړو.

گرومیکو: باید ستراتیژیکي هدف وټاکل شي. څه موده وړاندې مو په دې هکله بحث وکړ چې باید له پاکستان او ایران سره دافغانستان پولې وتړل شي. تجربې وښودله چې موږ ددې کارله بشپړې اجرانه دسیمې دگران جغرافیایي موقعیت او دسلگونو غرنیو لارو ذشته والي له امله، عاجز پاتې شوو. نن باید په

چارې وموندل شي.

گرباچوف: په پریکړه لیک گې باید د یوه کال او حداعظم د دووکلو په موده کې ددغې (جگړې) دختم خبره یاده شي.

گرومیکو: داکار باید داسې پای ته ورسیږي چې افغانستان دبیطرفه دولت په توگه پاتې شي. داسې ښکاري چې موږ دافغانستان مشرتابه ته دپوځي مرستو په هکله دموافقې څرگندولو په وخت کې احتمالي ستونزې پوره نه وې شمیرلې. دافغانستان ټولنیزو لانجو په لنډه موده کې ددغې ستونزې هواري ناشونې کړه. دننه په دغه هیوادکې چا زموږ ملاتړونه کړ. دافغانستان پوځ ته چې څومره کسان جبلیږي، هومره تري تښتي. ترکومه ځایه چې دافغانستان دکورنیو حالاتو په جاج اخستلو او تحلیل پورې اړه لري، دنجیب تقریباً هره خبره سړی منلی شي، خو لازمه نه ده چې دکارمل ستیه دې یوځل غوځه کړی شي، ځکه چې هغه په یو ډول سمبول بدل شوی دی. په کار ده چې زموږ استازي له هغه سره وغږیږي. باید هڅه وشي چې هغه په عمومي خط السیر کې باقي پاتې شي: دهغه بشپړغو ځول سمه خبره نه ده، غوره داده چې هغه لاهمداسې زموږ ترڅنگه پاتې شي.

نجیب د پراخو اقداماتو دکولو وړاندیزکوي. هغو ته پاملرنه کول په کاردي. یو اقدام له دولتي واکمنۍ نه د بزگرانو د ملاتړ جلبول دي، او بل اقدام: دافغانستان دننه او بهرله هغو اسلامي ډلوا و تنظیمونو سره خبرې کول دي چې د مصالحې خبره مني، دریم اقدام له پخواني پاچا سره دتماس ټینگول دي. فکر کوم چې د هغو

د نجیب وړاندیزدی، ترسره شي. اوس یو بل مشخص پاټکی له هغو سره د دې ستونزو د څیړنې له پاره په کار دی. دکار مشخص پلان په کار دی. ښه به وی که په دې کارکې له پاکستان سره د تماسونو د ټینګولو له لارې موږ هم ونډه واخلو.

ترکومه ځایه چې دامریکاییانو خبره ده نو هغوی دافغانستان دلانجې په غوټو لوکې خپلې ګټې نه وینی، برعکس دجګړې لاوږدیدل دهغوی په ګټه دی.

ګرباچوف: رښتیا همداسې ده.

ګرومیکو: په دې هکله هم فکر کول په کار دی چې څنګه کیدای شی د روغې جوړې بهیر ته هندوستان راجلب کړی شی. ددغو خبرو په سپینولوکې ځنډ، دحل دیوې لارې دموندلوله پاره زموږ دامکاناتو له زیاتوالی سره مرسته نشی کولای لنډه داچې دلانجې سوله ییز حل دې نورهم چټک شی، که موږ په دې لارکې ګامونه اچت کړو، زموږ ولس به آرامه ساه واخلی.

سالو منځوف: په زړه پورې به وی که داکتوبر (دانقلاب) تراویایمې کالیزې پورې سیاسی حل بشپړشی.

ګرومیکو: ددغسې یوې مودې ټاکنه ګرانه ده.

# چبریکوف: ددې مسئلې په هکله ډیرې پرېکړې شوې دی، خو له بده مرغه دافغانستان د ننه او دهغه چارچاپیر حالات لاهماغسې خړپړ دی. زه دمیخاییل سرګیوویچ (ګرباچوف) دهغه وړاندیز ملاتړ کوم چې وایې باید هڅې ګړندی او

یوې منطقي نتیجې ته ورسولی شي. رښتیا ده چې موږ د پولو د ټړلو تصمیم نیولی و. آندره آندره یوویچ (ګرومیکو) تروې اندازې په حقه دي چې دجغرافیایي یا نورو عواملو له امله ددغسې یوه عمل د سرته رسولو ستونزې یې په ګوته کړې. خو تریوې اندازې د پولو په تړلوکې زموږ د پاتې راتللو بل دلیل دادی چې موږ هر هغه څه چې دکولو وس مو درلود ، سرته نه دي رسولي. غلیم اوس خپل تاکتیکونه بدلوي. هغه تر ځمکې لاندې فعالیت ته لاس اچولی دی. باید دستونزې دسیاسي حل لارې چارې ومونډل شي. یوځی طریقو په تیرو شپږو کلونو کې نتیجه ورنه کړه.

څه کولی شو ؟ په لومړي ګام کې به غوره وي که نجیب مسکوته راوبولو. هغه هیڅکله دلته نه دی راغلی بنایي د کارمل ددې اوسینو نخرو دلیل هم داوي چې موږ تر اوسه نجیب رسمي نه دی میلمه کړی. له هغه سره موږ یوازې په تلفون کې او هغه هم د منځګړو له لارې خبرې کړې دي، خو دا بیخي بل شی دی. مخامخ خبرې اترې ضروري دي. کیدی شي دهغه په ترڅ کې ډیرې خبرې روښانه شي، مهمه ده چې په دغو خبروکې نورځنډونه شي، په کار ده چې دهغو (دسرته رسولو) له پاره یوه یادوده ورځې وخت ومومو. بله مهمه خبره دځینو کسانو تغییر او تبدیل دی.

ګرباچف: ددغو تغییراتو په راوستلوکې څوک دهغه دلارې خنډ ګرځي؟

چبریکوف: تریوې اندازې موږ تړل. د «دوست» دبدلولو په سرخبره همداسې

دموکراتیک گوند دسیاسی بیورو دنویو غړو دتاکنې په وخت کې هم هماسی وشول.

**گرباچف:** مافکره کاوه چې شاه محمد دوست ته مو دد غو خبرو دغو ځولو په کله خپله رپا څرگنده کړی ده.

**چبریکوف:** چې داسې ده نوولی هیڅ شی نه هواریږی؟ زمـــوږ زیات وخت دافغانستان دلانجې څیړل نه نیسی بلکه په دې هکله غږیږو چې دوست چیرته ولیږل شی او ددفاع وزیر به چیرته کار وکړی. په دې صورت کې باید ملگری کریوچکوف ته چې اوس په کابل کې دې لارښوونه وشی چې له نجیب سره په خبروکې دې ددې لانجوله څیړلو نه ځان نه تیروی او مخامخ دې ورته ووایی: دالانجې هسې چې معقولې بولې پخپله حل کړې....

**دوبرینین:** نجیب ته باید (دعمل) خپلواکی ورکړی شی. دلته دوه پوښتنې منځ ته راځی. لومړی: دملی روغې جوړې تگ لاره، او دوهمه: دافغانستان دشاوخوا حالاتو سیاسی حل دی.

کارمل باید له لارې لیری کړای شی، خو داخبره هم باید له یاده ونه ایستل شی چې دافغانستان دخلکو دموکراتیک گوند دسیاسی بیورو یو غړی هم دملی روغی جوړی په برخه کې له نجیب سره توافق نه لری. ددغسې یوې روغې جوړې نقشه هم وجود نه لری.

**گرباچوف:** دحل له پاره نقشه شته، موږ هغه تصویب کړې هم ده، خو په عمل

لانجي غوځولو ته لاس واچوي؟

اخراميف (دشوروي اتحاد ددفاع دوزير مرستيال): نه، ددې لانجې حل شونی نه دی.

**دورينين:** دافغاني مشر تابه له پاره دنقشې طرح کول لااساسي خبره نه بريښي. زه مسکو ته دنجيب درابللو غوښتنه کوم. اوس کيدی شي ملګري کريوچکوف ته له نجيب سره دکتنې لارښوونه وکړو. کريوچوف دې نجيب ته ووايي، چې هغه پخپله کولی شي د (شاه محمد) دوست او کارمل بر خليک وټاکي، خو داکار دې داسې وشي چې د (ګوند دننه) فرکسيوني شخړې بيا راپور ته نه شي.

**اخراميف:** په افغانستان کې زموږ دجنګيدو دادی اووه کاله پوره کيدونکي دي. ددغه هيواد دخاورې داسې ټوټه نه شته چې يو ځل دې شوروي عسکرنه وي نيولې. خو له دې سره سره دهيواد زياته برخه دياغيانو په لاس کې ده. دافغانستان حکومت کافي وسله وال ځواک لري: ۱۶۰ زره تنه په اردو کې، ۱۱۵ زره تنه په څارندوی او شل زره تنه داستخباراتو په ارګانونو کې (تنظيم دی) داسې هيڅ پوځی هدف نشته چې لاس ته دې نه وی راغلی، خو بيا هم نتيجه هيڅ ده. ددی ټولو خبرو دليل دادی چې پوځي برياوې دسياسي لاروچارو په کارونو سره نه ساتل کيږي. په مرکزکې واکمني شته، خو په ولايتونو کې وجود نه لري.

بایللې ده. د اولس کمه برخه دحکومت ملاتړ کوي. زموږ لښکرو پنځه کاله جګړه وکړه. هغه اوس هم ددې وس لري چې حالات په همدې اوسنۍ بڼه وساتي. خو په دې عمل سره به جګړه اوږده موده دوام ومومي.

پنځوس زره شوروي عسکر د پولې ترلوته اړم شوي دي خو بیا هم نه شي کولای ټولې هغه لارې وتړي چې له بهرنه پرې بارونه راوړل کیږي. یو ځل بیا وایم چې موږ حالات په اوسنۍ بڼه ساتلی شو، خو باید چې د حل یوه لاره ومونده شي او لانجه هسې چې اندره اندره یوري» (ګرومیکو) وویل غوڅه شي. باید له پاکستان سره تمامونه پیل شي....

وارنځوف (دشوروي اتحاد دبهرنیو چارو دوزیر لومړی مرستیال): غواړم دملګري اخرامییف له خوا دڅرګندو شویو نظر یو په اړوند یو څو خبرې وکړم. افغانستان یو بزګري هیواد دی (دوګړو په سلوکې اتیا برخه بزګران دي) خو انقلاب همدوی ته له هرچانه کم خیر رسولی دی. دانقلاب په اتوکلونو کې د کرنیز و محصولاتو اندازه یوازې په سلوکې اووه زیاته شوې اوبزګران له انقلاب نه په مخکی شرایطو کې ژوند کوي.

هم ملګري نجیب او هم دسیاسي بیورو غړي ملګري زیري له ماسره دخبرو په ترڅ کې دا ومنله چې «ګوند لاتر اوسه د بزګرانو منځ ته نه دی ورننوتی»، د ځمکو او اوبو اصلاحات ناموثر راوختل او په عمل کې پلې نه شول (اوس ملګري نجیب هڅه کوي «ګټورې» خپلاته دهغو دوه ګړځولي په منظور په هغو کې تجدید نظر

اوسني وخت کې لکه هغسې چې ملګرې زيرې وويل دهيواد داتلسو ميليونو وګړو له ډلې نه يوازې پنځه ميليونه تنه ددولت تر کنترول لاندې دي. (له دې ډلې نه درې ميليونه وګړي په ښارونو کې او يوازې دوه ميليونه يې په کليوکې اوسيږي او داله ۳۰۰ يا ۴۰۰ زروکورنيونه نه زياتيږي) ، دولت او ګوندته له مخکنۍ مشر تابه نه داسې مشخص پلانونه نه دي پاتې چې څرګنده کړي څه ډول کيداې شي ددغو درې - څلوړسووزرو بزګرې کورنيو مادي حالت چې ددولت تراغيزې لاندې (سيموکې ژوند کوي) په بيړه ښه کړې شي. دسياسي بيرو دغړي او داقتصادي او کرنيز وچارو دمسؤول ملګرې زيرې په وينا ، « دبيلابيلو عواملو له امله په ځينو برخوکې ددولت ترکنترول لاندې دميشتو بزګرانو حالت له هغه چانه ډير بد دي چې دانقلاب ضد ځواکونو داغيزې لاندې په سيموکې ژوند کوي » . ددې پوښتنې په ځواب کې چې ددې کار علت څه دي ملګرې زيرې ماته وويل چې « دانقلاب ضد ځواکونو تراغيزې لاندې سيموته دلومړنۍ اړتيا وړشيان په ښه بنه ور رسيږي (دغه مواد په قاچاقي توګه له پاکستانه هلته راځي) . په خوست ، ارزګان او نورو سرحدي سيمو کې حالات همداسې دي. دملګرې زيرې په وينا ځينې وخت داسې ضد او نقيض حالت هم منځ ته راځي چې زموږ تر کنترول لاندې سيمو کې ميشتو بزګرانو ته مواد زموږ له خوانه ، بلکه دباندونو له خوا ورکول کيږي. » . په دې مهمه برخه کې بايد عاجل اقدامات وشي ، يعنې ددولت ترکنترول لاندې سيموکې دبزګرانو حالت دې ښه کړاې شي.

نوښته دی، عادت شوی دی چی و دریزه مشاور صاحب څه وایی او پخپله څس له ځایه نه خوځوی. داسې بریښی چې زموږ سلاکارانو په لومړی سرکې «دوی بیا بیا په لنډتوو هلی او (ډارولی) دی».

خوملګری نجیب داسی نه دی. دهغه په څیره کې استعداد او قاطعیت له ورایه ښکاری. هغه ته باید دچارو په اجرا کې استقلال ورکړل شی، خو په عین حال کې دې دهغه داعمالو څارنه هم کیږی چی دعمر دکموالی په وجه تری افراطی اعمال راونه وځی، هغه ته باید امکان ورکړو چی خپل «تیم» په خپله غوره کړی.

**ګرباچف:** دتیر کال په اکتوبر کې موږ دسیاسی بیورو په غونډه کې دافغانی لانجې دغوځولو اصلی کرښه وټاکله. هغه هدف چې موږ غوره کړی و، دا و چې باید دشوروی پوځونو دایستلو بهیر ګړندی کړی شی، خو په عین حال کې باید دوست افغانستان ته هم دهغه داړتیا وړ تول شیان ورپوره کړی شی، ټاکل شوې وه چې دا مقصد دې دپوځی او سیاسی اقداماتو په همزمانه سرته رسولو سره ترلاسه شی، خوله دغو برخونه په یوه کې هم پرمختګ نه لیدل کیږی. دافغانی حکومت دپوځی دریځ دپیاوړتیا مقصدترلاسه نه شو. ملی وحدت هم زیات له دې امله تأمین نه شو چی ملګری کارمل هیله درلوده چې وراندې به هم همداسې په کابل کې ناست او زموږ مرسته په ورسره وی.

دې خبرې هم ناوړه اغیزه وښندله چې موږ دافغانی مشرانو دپریکړو په لاره

شوي، خو خبره پخپله په نقشه کې نه، بلکه دهغې د پلې کولو په څرنګوالي کې ده. باید هڅې ګړندی کړی شي خو په عین حال کې ددی دوو خبرو دقیق روښانول هم په کار دی؛ لومړی: ددووکلو په اوږدو کې له افغانستان نه زموږ د پوځونو ایستل په ۱۹۸۷ کال کی دې په سلو کې پنځوس او پاتی نیمایی برخه دې په راتلونکې کال کې وایستل شي. دوهم: دسیاسی ځواکونو دحقیقی دریځونو په پام کی نیولو سره درژیم دټولنیز بنسټ پراختیا په دې اړوند دې له ملګری نجیب او کیدی شي د افغانستان دخلکو دیموکراتیک ګوند دمرکزی کمیټی دسیاسی بیورو له نورو غړو سره لیده کاته وشي؛ باید له پاکستان سره خبرې پیل کړو. مهمه دا ده چی افغانستان ته دامریکاییانو پښه را اوږده نه شي. خو زه فکر کوم چې دامریکی متحد ایالتونه به په افغانستان کې پوځی لاس وهنې ته زړه ښه نه کړی.

**اخرامییف:** هغوی به خپل وسله وال ځواکونه افغانستان ته ونه لیږی.

**دوبرینین:** په دې لانجه کیدی شي دامریکی له متحدوایالتونو سره یوې موافقې ته ورسیږو.

## نجیب

د ۱۹۸۵ کال له پیله زما دنده داسې وه چې دافغانستان له لوړو حکومتی مشرانو، ددغه هیواد دپوځ، څارندوی او استخباراتو له مشرتابه سره مخامخ

شوی عمومي منشي نجیب سره معرفي شم. په دغه څوکۍ د ټاکلو تروختـه نوموړی داستخباراتي اداری (خاد) رئیس و. له نجیب سره لومړیو کتنو زما دا عقیده نوره هم پیاوړې کړه چې دا سړی دژوند ومغزو خاوند دی. هغه هم دافغانستان خپل حالات او هم په ګاونډي پاکستان، ایران او چین کې اوضاع ښه څیړلی شوه.

هغه پوهیده چې که له واک سره مینه پیدا کړي او هیڅ اصولي انتقاد داوریدو حوصله ونه لري پای به یې څه راوخیژي.

نجیب دافغانستان د پوځ په هکله پوره معلومات درلودل. فکر کوم هغه دخپلو پوځیانو په بالقوه ځواک باندی په عقیدې درلودلو سره اشتباه نه وه کړې. دځینو داسې ځانګړتیا وو شته والی، لکه د افغانانو په منځ کې: ګرانښت، بصیرت، قوي اراده، جدیت او مهارت هغه ته دخپلو اسلافو په انډول برلاسي ورکاوه. دافغانستان ددموکراتیک جمهوریت وروستی جمهور رئیس آن په ډیرو نازکو حالاتو کې جرأت او خوشبیني له لاسه نه ورکوله.

په دې برسیره باید دې ټکي ته هم اشاره وشي چې نجیب ددولت دمشرپه توګه دشوروی کارپوهانو له پراخ ملاتړ نه برخمن و. دهغه ترڅنګ وتلو کارپوهانو او مسلکي وګړو کار کاوه.

د پوځي برخې مسألې لوی پوځي سلاکار له نجیب سره څیړلې. وخت ناوخته له هغه سره په کابل کې دشوروی اتحاد ددفاع وزارت داوپراتیفي ډلې او دڅلویښتم

مشاورينو سره مې کتنې نه دي شوي، خو دهغه کار داندازې له مخې چې پوليا ينچکو يې په سرته رسولو کې مخامخ ونډه درلوده، دا پته لګيدې شي چې په دغه هيواد کې زموږ دګوندي سلاکارانو په اوږوهم درانده بارونه پراته وو.

ددولتي سياست داساسي کرښو طرحه، له پښتنو قبايلو سره اړيکې، دافغان–پاکستان دګډې پولې تړل، ولايتونو ته دخوراکي موادو او دلومړنۍ اړتياوړ نورو موادو بې ځنډه رسول، دافغانستان دوسله وال پوځ اکمال او دهغه ليکوته دنويو سرتيرو جلب او احضار، دملي روغې–جوړې سياست او دې ته ورته يوه مسئله هم دشورويانو له حضور پرته نه څيړل کيده او نه حل کيدلې شوه.

دټولو هغو شوروي ادارو چارې چې په افغانستان کې يې استازو کار کاوه، په کابل کې دشوروي سفير له خوا همآهنګ کيدلې. هغه دډيلوماتيکې نماينده ګۍ دو رئيس په توګه په افغانستان کې دشوروي اتحاد دسياست مشر پلې کوونکی ګڼل کيده. نورو ادارو خپلې مشخصې او ځانګړې دندې سرته رسولې.

زه ماکتنه له نجيب سره يوازې دټاکلو پوځي مسايلو دڅيړلو له پاره وه. څرنګه چې دجګړه ييزو عملياتو دسرته رسولو له پاره دهغه غوښتنو ته هم د بهرنيو چارو په وزارت، هم ک. ګ. ب او هم دګوند په مرکزي کميټې کې ارزښت ورکول کيده، نو زه مجبوريدم ورشم او دراتلونکو عملياتو تخنيکي اړخونه ورسره وڅيړم او هماهنګ يې کړم. دساري په توګه موږ په عملياتو کې دافغاني لښکر و دګډون،

لیدنې کتنې د افغانستان د خلکو دموکراتیک گوند مرکزي کمیټې په ودانۍ کې سرته رسیدې چې د کابل په زړه کې پرته وه. دامانۍ دشوروي کوماندویانو له خوا شپه او ورځ ساتل کیده. دننه په مانۍ کې د ک. گ. ب کار کوونکو یو جدي امنیتي سیستم رواج کړی وه. نجیب ته راغلي کسان لمړی په ډیر دقت سره تلاشي کیدل او له هغو نه وسلې اخستل کیدی.

د نجیب له ظاهري په زړه پورې بڼې سره سره، له هغه سره خبرې کول چندان آسان کار نه و. دهغه سترگې لږې کږې غوندې وې او دې خبرې تر یوې اندازې نامناسب حالت منځ ته راووړ. ما هیڅکله باور نه کاوه چې هغه دې گڼې موضوع ته غوږ نیولی وي او د کوم بل شي په هکله دې فکر نه کوي. خو چې کله به هغه د (مقابل لوری) په دې شک پوه شو نو په ډیر مهارت سره به یې په ډوو – دریو ټکوکې دابحران له منځه وړه.

یوه مهمه خبره مې یاد ته راغله: نجیب تل غوندې له هغو خبرو پیل کوله، په کومې چې به تیره غونډه پای ته رسیدلې وه. ښایي هغه د دې کار له پاره ځانگړی یادداشت درلود او یا یې یاورانو ورسره مرسته کوله. هر څه چې وو، خو په دې وسیله خبرې خپل منطقي مسیر ته ورلویدلې.

د افغانستان له مشرانو سره د کتنو په وخت او یا هغو ته له ورایه په کتلو سره مې تل دافکر په سر کې گرزیده چې داموقتي خلک دي. نن یو، سبا بل. له هر څه نه داخبره ښه څرگندیدله چې داټول شیان د یوې لنډې مودې له پاره دي ... غونټل

کولو ته اړباسو. غوښتل مو داکار هم عمودي او هم افقي سرته ورسوو. دهیواد له مشره پیل، تر هغه بزگره چې دهیواد په یو دلیرې پراته ولایت کې ژوند کوي. ډیر ځله به ما او زما همکارانو ته داسې پوښتنې به ذهن کې ورگرزیدې چې دځه له پاره افغانستان ته دومره تخنیکي وسایل وسله او مادي نعمتونه راوړل کیږي دټول دځه لپاره او ولې؟ ځکه هر چاته دلمرغوندې روښانه وه چې افغان اولس داشي نه مني او دعادي افغانانو دا «نوی ژوند» اصلاً په کارنه دی. البته دافغانستان مشران ددغه انترناسیونالسیتي مرستې له امله زموږ شکرگزار وو، خو دغې شکر گزارۍ هم خپل رازونه درلودل: هغوی پوهیدل چې یوازې زموږ په متو او زموږ دمرستو په زور په دغو ځوکیو ناست دیله همدې امله هغوی دقیقاً زموږ خولې ته کتل او زموږ مشورې او لاښوونې به یې تکي تکي سرته رسولې.

دافغانستان مشران په دې ښه پوهیدل چې په هیواد کې اصلي ځیرې هغه دي چې زورلري، نو ځکه هغوی زموږ دهیواد دبې شمیره استازو په منځ کې دیوه ډیر ساده اصل پربنسټ دجدایی کرښه ایستله: څوک چې زورور دی، هغه مهم هم دی. په دې لړکې لومړی مقام دځلویښتم لښکر دقوماندانو، که څه هم دمقام له پلوه هغه په افغانستان کې دنورو شوروي پوځیانو په منځ کې ډیر لوی سړی نه گڼل کیده، خو قوماندان بې حده ستر پوځي ځواک درلود. دوهم مقام د، ک. گ. ب دمامورینوو ځکه چې هغو هم پر حالاتو داثر ښندلو له پاره خپل خپل امکانات درلودل.

## بُن بست

په افغانستان کې دلوی درستیز داستازی په توګه په لوړه سطحه دمسأیلو په
څیړلو کې له ګډون وروسته په غوڅه راته دا پته ولګیده چې دافغانستان په هکله
ټولې پریکړې په مسکو کې کیدلې، او هغه هم نه ددفاع په وزارت، اونه هم
دستردرستیز په قرارګاه کې، بلکه په لوړ و دولتي اوګوندي کړیو کې اوتر هرڅه
لومړی دافغانستان په هکله دسیاسي بیورو په ځانګړی کمیسیون کې. ددغه
کمیسیون اصلي غړی دا وو: د. ک. ګ. ب. رئیس، ددفاع او بهرنیو چارو
وزیران او دشوروی اتحاد دکمونیست ګوند دمرکزی کمیټې دنړیوالو اړیکو
دڅانګې مسؤول، ب. ن. پوناماریوف. دافغاني مشرانو ټولې غوښتنې او آن
شخصي هیلې مسکو ته استول کیدلې. له دې حالت نه یو شمیر هغو سلاکارانو
چې مخې ته یې بیلابیلې ستونزې راجګې شوې وې هم ګټه اوچتوله. داغوښتنې
ترهرڅه لومړی په وسلو، جنګي تخنیک او دملکي اړتیا وړشیانو په برابرولو
پورې مربوطې وې، چې په هغو کې په سلګونو زره ټنه بوره، غنم، اوړه... راتلل. دا
ټول شیان هغه دچا خبره افغانستان ته دسین په څیر را روان وو. شک نه شته چې
افغاني مشرانو لکه دعیسی (ع) په غیږ کې چې وی، (هوسا) ژوند درلود.
هغوی دداسې یوه غښتلي ګاونډي دننګې په سیوری کې چې دهغو هرې
بوالهوسې ته یې په ورین تندی مثبت ځواب وایه، دکلې په مستقیمې مانا له
واکمنې نه خوند اخیسته. افغاني (مشران) پوره پوهیدل چې هر څه غوښتلی شي

مثلاً په خپل ذهن کې دراجوړ کړی کوم غلیم خلاف له موږ نه دجګړه ییزو عملیاتو
دطرحې او پیل غوښتنه وکړه. په افغانستان کی دشوروی محدود وپوځی ټولګیو
قوماندانی ددې غوښتنو په وړاندی مقاومت کاوه، زه داقتصادپوهانو
یادپیلوماتانو په هکله په دې برخه کی کوم مشخص مثال نه شم راوړلی خوموږ
پوځیانو غوځ مقاومت کاوه. ان هغه وخت چی دڅلویښتم لښکر قوماندانی په
افغانستان کی دجګړو پنځه کلنه تجربه لاس ته وروړې وه، ښه پوهیدله چې له دې
وروسته به دجګړه ییزو عملیاتو دپیل او پرمخ نیولو ټولې خبرې یوازې دشوروی
سرتیرو او افسرنو په اوږو باریږی. دافغانستان لښکرو هیڅ مستقل عملیات نه
دی ترسره کړی او که ترسره کړی یې هم وی نو سری کولی شی ووایی چې نتیجه به
یی هیڅ وی او بالاخره ددې اړتیا پیدا کیده چې مرستې ته یې دڅلویښتم لښکر
پوځی ټولګیو وبلل شی. دڅلویښتم لښکر قومدانانی ډیره وسه کوله چې دافغانی
مشرانو فریب ونه خوری او په هغو جګړو بوخته نه شی چې موږ له مخکې نه وې
پلان کړې.

په ۱۹۸۵ کال کې جنګی عملیات عموماً دیوې میاشتی له پاره پلان کیدل او
دا قاعده له افغانستان نه دشوروی عسکرو دوتلو تروخته، په خپل حال باقی پاتې
شوه. دعملیاتو دپلان په سر به په افغانستان کې زموږ دټولو مهمو استازو موافقه
اخیستل کیده. دپلان جوړولو کار دڅلویښتم لښکر دقرارګاه او په افغانستان کې
دلوی پوځی سلاکار ددفترله خوا سرته رسیده. همدلته دا پریکړه کیده چې څوک

لاسلیک دا پلان د تصدیق لپاره مسکو ته استول کیده. بیا هغه په سیاسي بیورو کې او تر ټولو مخکې د افغانستان په هکله دهغې په ځانګړی کمیسیون کې څیړل کیده. یوه –یوه نیمه اونۍ وروسته موږ ته په کابل کې د شوروي اتحاد د وسله وال پوځ دلوی درستیز یا د دفاع وزیر په لاس لیک شفري تلګرام –رارسیده چې په کې ویل شوي به وو: ستاسي د پلانکي میاشتې پلان بشپړ تأیید دی. وړاندې به ویل شوي وو چې کومو ټکو ته ځانګړی پام په کار دی.

ما تل دا احساس کاوه چې دلوی درستیز داستازي په توګه زما په اوږو درونډ بار پروت دی په داسې حال کې چې هیڅ آمر مې نه درلود، کیدای شوای مثلاً دڅلوېښتم لښکر او یا دهغه دبیلابیلو فرقو دقوماندانانو داعمالو دڅیړنې په وخت رانه خطاوې راوو ځي. لوی درستیز زما دشفاهي او تحریری څرګندونو پر اتکا کولی شول دحالاتو په پرمختګ اغیزه وکړي.

هیله من یم چې دافغانستان او دهغه دحکومتي پوځونو دځانګړتیاوو په هکله زما معلوماتو او دغه راز دبیلابیلو پیښو تحلیل له لوی درستیز مارشال، س. ف. اخرامیف سره دامرسته کړې وی چې په دغه هیواد کې دروانو حالاتو په هکله عیني معلومات ترلاسه کړي. فکر کوم چې دڅلوېښتم لښکر له قوماندان سره به مې هم تا کلي مرسته کړې وی. قوماندان دیروخت دا امکان نه درلود چې دشوروي اتحاد له لوړو پوځي مشرانو سره مخامخ وغږیږي او هغوی ته دبیلابیلو ستونزو دهواری دلارو چارو په هکله خپله غوښتنه وړاندې کړي. دا کار یوازې د

هومره چې مې له وسه پوره وه له څلويښتم لښکر سره يې مرسته کړې ده.

په افغانستان کې زما ددوهم ماموريت موده (۱۹۸۵-۱۹۸۶ کلونه) زما په ذهن کې د يوې پيچلې او غيرنې خاطرې په توگه پاتې شوې. ما دافغانستان روانو پيښو ته له بلې زاويې په کتلو پيل وکړ او اوس پوهيدم چې زموږ پوځونه او ټول شوروي استازي اصلاً ددې هيواد نه دي په کار. امکان نه لري له داسې يوه هيواده لکه افغانستان چې دژوندانه خپله ځانگړې بڼه او جلا مذهب لري او دخپلې جنترۍ په حساب اوس هم لا په څوارلسمه پيړۍ کې دي، شوروي اتحاد جوړ کړو، دابنکاره چټيات وو.

سره له دې چې داتيايمې لسيزې په نيمايي کې جگړې ډيرې پراخې او سختې شوې خو په حالاتو کې لاهماغسې بن بست ليدل کيده. له يوې ورځې نه بلې ورځې ته د قدرت بحران ژوريده، دافغانستان حکومت دڅلويښتم لښکر دهڅو نتيجې نه يوازې نه ساتلې، بلکې ددې کار له پاره يې يوگام هم نه پورته کاوه. له دې سره جوخت له موږ نه بيا بيا دنويو او لانويو عملياتو دسرته رسولو غوښتنې کيدې. په همدې وخت کې ډيرو وگړوته معلومه شوه چې دا هسې دلمبوله منځه په لاس دسکروټو دراايستلوله پاره عبث هځې دي. په زيار راايستل شوې دغه سکروټې، عمدتاً دچا په کارنه دي. شوروي محدودو پوځي قطعاتو افغانستان ته دورتگ په لومړيو څو مياشتو کې خپلې دندې ډيرې ښې سرته رسولې. زموږ سرتيرو تروسه هڅه کوله چې داپريل انقلاب له مرگه وژغوري. دافغانستان

شي چارو دسرته رسولو امکان ترلاسه کړ. خو دکابلي رژیم واکمنو په لوی لاس
ځلوېښتم لښکر دپراخو پارتیزاني جګړو په لومه کې ښکیل کړ. دافغانستان
حکومت تر وروستیو شیبو حالاتوته په دراماتیکې بڼې ورکولو سره خپل ټول وس
په کاراچاوه چې دځلوېښتم لښکر په څیر له پیاوړي حامي نه بې برخې نه شي.

له ټولو مخکې پوځیان په دې خبره پوه شول چې له منځ ته راغلي بن بست نه
دوتلو یوازنۍ لاره اوسمه لارشته او هغه له افغانستان نه دشوروي ځواکونو ایستل
دي. دشوروي اتحاد ددفاع وزارت او پراتیفي ډلې، دځلوېښتم لښکر قوماندان،
اوما دلوی درستیز داستازي په توګه د حالاتو له جاج اخستني وروسته پر له پسې
دغه موضوع (دمسکو) غوږونوته رسوله. البته که په ۱۹۷۹ کال کې چا
دپوځیانو خولې ته کتلې وای چې دافغاني لانجې له پوځي حل سره یې مخالفت
ښوده، نو په ۱۹۸۵ کال کې به دا اړتیا نه وای چې له دغه هیواده دسرتیرو
دایستلو په اړوند په کابل کې په سوچ وهلو خپل ماغزه وخوړو. میندو به خپل
بچیان له لاسه نه وای ورکړي، زرګونه زلمیان به اړ نه وای چې له افغانستان نه
معیوب راستانه شي.

پوځیانو دافغاني لانجې له پاره دغوځ حل دیوې لارې دموند لواړتیا هغه وخت
درک کړې وه چې ډیر شوروي مشران لا په دې نه پوهیدل چې یوازې په زور تکیه
کول مطلوب نتایج منځ ته نه شي راوړي. برسیره پر دې هغوی نه غوښتل په دې پوه
شي چې موږ له یوې ورځې نه بلې ته لازیات په افغاني پلندۍ کې ښخیږو.

چې پوځي حرکت يې پيل کړي، غواړي هغه په بري سره پای ته ورسوي. تر ۱۹۸۶ کاله پورې دشوروي پوځونو دايستلو پريکړه نه شوه کيدای. دشوروي دواک په گدي ناستو خلکو او هغو چې افغانستان ته دعسکرو دلېږلو په پريکړه کې يې ونډه درلوده، نه شوای کولای په عيني توگه خپل دريځ بدل کړي. اصلي هدف لاس ته نه وراغلی: افغانستان په هسې يوه هيوادنه وبدل شوی چې زموږ دپوځونو له وتلو وروسته هم دخپل «شمالي مشر ورور» په پله روان پاتې شي، اوبالاخره په کاروچې دپراخو مادي لگښتونو او دسر دزيانونو دتوجيه له پاره هم دمنلو وړ دلايل ومو ندل شي. هيڅا په پوره قاطعيت سره دا دعوه نه شوای کولای چې افغانستان که په سوسياليستي هيواد بدل شوی نه دی، نو لږ ترلږه خو په هغه وخت کې زموږ دمنځني آسيا جمهوريتو ته ورته شوی دی.

په افغانستان کې زياتو مادي لگښتونو مطلوبې نتيجې ورنه کړې. موږ له پوره بن بست سره مخامخ شوي وو. په کار وه چې دنوښت مزی دافغانستان حکومت ته په لاس ورکړل شي او له هغه هيواده زموږ دلښکرو دوتلو پريکړه وشي. دا نو هغه وخت دی چې (په شوروي اتحاد) کې دواک واگې د م. س گرباچف لاس ته ورځي. دهغه زړه غوښتل او که نه (خوله دې پرته) بله لاره نه وه پاتې. موږ دخپلو پوځونو روحي کمزورتيا نه پټوله او پرله پسې موپه دې هکله مسکو ته خبر ورکاوه اوويل موچې نوره دا بيړۍ په دې توگه وړاندې نه شي تللی، زموږ سرتيري دڅه له پاره او دچا په ځای مري او ټپيان کيږي؟

## «وروستۍ» ورځې

دمارچ په میاشت کې زه جنرال وارینیکوف چې هغه وخت په افغانستان کې دشوروي اتحاد ددفاع وزارت داوپراتیفي ډلې مشرو ، ځان ته وبللم. هغه ماته وویل چې په افغانستان کې زما ددوهم او احتمالاً وروستي ماموریت وخت بشپړ شوي دي. ترډغه وخته مجموعاً ما په افغانستان کې درې نیم کاله تیر کړي وو او دا ډیروخت دی. والنتین وارینیکوف خبر راکړ چې زه داته ویشتم عمومي لښکر دقوماندان په توګه ټاکل شوی یم چې دبیلاروسیې د «ګرودنو» په ښار کې میشت دی.

داپریل په څلورمه دمسکو په لور والوتم.

زه سهار وختي له افغانستان نه والوتلم او شک نشته چې فکر مې کاوه دا په دغه خاوره کې زما وروستي حضور و. ما په دې خبره پوره باور درلود. له یوې خوامې په دې علت چې ډکور خواته روان یم دخوښۍ احساس کاوه. داځل مې په افغانستان کې ایله څه دپاسه یوکال تیر کړی و. له وخت نه مخکې زما دبدلولو پریکړه ترهرڅه لومړي له دې امله شوې وه چې په شوروي کې مې دوه زامن پاتې وو. ما هیله درلوده چې بالاخره زامن له ځانه سره بوزم او عادي ژوند پیل کړم. له بلې خوا له کابل نه دتللو په وخت کې مې په زړه له پاسه لکه ډبره چې پرته وي. وروستي ځل هوایي ډګر ته راغلی وم ، وروستي ځل مې د کابل دکوڅو ننداره وکړه. دلته ددندې اجرا خورا ګرانه وه ، خو چې څومره په سړې سخته تیریږي هومره له

دی. زما دژوند او روغتیا یوه برخه دلته په دې امید پاتې کیده چې په یوه یا بله بڼه دڅلویښتم لښکر دافسرانو او سرتیرو لاس نیوی وکړم.

ماته په زړه پورې وه چې دمخه ښې له پاره هوایي ډګر ته نه یوازې دستر درستیز دنماینده ګی دهیئت غړي افسران چې بشپړ یو کال مو ګډ کار کړی و، بلکه دغه راز ددفاع وزارت داوپراتیفي ډلې، دڅلویښتم لښکر دقوماندانۍ او دلوی پوځي سلاکار ددفتر جنرالان او افسران هم راغلي وو.

الوتکې ته وختم، هغه په بیړه لکه دمار، په څرخونو، څرخونو کې هواته جګه شوه. له الوتکې نه لاندې ښه ښکاریده چې مشایعت کوونکي لاهماغسې ولاړ دي، څو داډه شي چې الوتکه په خیر اوبې له کومې پیښې ولاړه.

دکابل له پاسه دالوتلو په وخت کې مې البته چې په ذهن کې هم نه ګرزیده چې یو کال وروسته به بیا اوددریم ځل له پاره دې هیواد ته راستنیږم دغه وخت لازه په دې نه پوهیدم چې قسمت راته له افغانستان نه زموږ د پوځونو دایستلو درنده، خوله ویاړه ډکه دنده راپه برخه کوي او کولای شم په دغه هیواد کې دشوروي پوځونو نهه کلن حضور پای ته ورسوم.

## دریم سفر
## ګرودنو

زه داپریل په پیل کې مسکو ته راستون شوم او دلته په پایتخت کې مې ایله څو ورځې تیرې کړې، خپل وړاندیزونه او نظریې مې لوی درستیز مارشال اخرامیوف

اجازه یې راکړه چې (دبیلاروسیې مرکز) مینسک ته وخوځیږم. په دې ښارکې دبیلاروسې دپوځی حوزې قرارګاه پرته وه. ددوله مخې مې ځان د بیلاروسیې دپوځی حوزې قوماندان ډګر جنرال والیری شورالیف او دهغه مرستیالانو ته وروپیژانده. په دې لړ کې مې دحوزې له درستیزوال او تکړه افسر تورن جنرال والیری سکولوف سره هم پیژندګلوی وشوه.

دګرودنو ۲۸ لمبر لښکر دشوروي اتحاد دوسله وال پوځ دغوره پوځی ټولګیو په ډله کې راته هغې شته منی جګړه ییزې تجربې درلودې. دې لښکر دوه دټانک او دوه پلې موتوریزه فرقې درلودې چې دپولنډ پولې ته نږدې ځای پرځای شوې وې. څرنګه چې لښکر دبرست او ګرودنو په ولایتونو کې ځای پرځای و، ماته دا امکان وچې تقریباً ټولې سرحدی سیمې له نظره تیرې کړم. تراوسه مې دبیلاروسیې دوګړو په نسبت په ذهن کې خوږې خاطرې پاتې دي.

ښکاره ده چې دګرودنو له تګ مخکې یوځل ساراتف ته هم ولاړم چې زامن مې په کې اوسیدل. ډیر مې زړه غوښتل چې هغوی له ځانه سره بوځم، خونه پوهیدم څنګه به په بیلاروسیه کې هم دپلار او هم دمور دنده سرته ورسوم. دلښکر قوماندان او هغه هم داسې لښکر چې په پوله کې پروت وي، مجبور دی جدي کار وکړي، هسې نه چې په څوکې یې خیته اچولې وي. مخې ته غټ کارونه پراته وو.

په ګرودنو کې دقوماندان داوسیدو له پاره ښه شرایط موجود وو، خو دا چې له

زغملی. یوڅوک باید پیدا شوی وای چې دهغو غم یې خوړلی، لوست یې ورزده
کولی او یا لږ تر لږه یې خواړه ورته برابرولی. زما کارنا وخته خلاصیده او دغه
وخت باید هغوی ویده وای، او له کوره سهار وختی وتلم. . لنډه دا چې دستونزو
هیڅ کمی نه وه. د ۱۹۸٦ کال په دوبی کې هغوی دلته راغلل او نږدې یوه نیمه
میاشت مو یو ځای سره تیره کړه، خولا می نه شو کولای هغوی له ځانه سره په
گرودنو کې وساتم.

وخت لکه دباد الوته. دلښکر قوماندانی آسانه بریښیده، ځکه چې عملاً پوره
سمبال میکانیزم و. ځینی ستونزې سمدستی هواریدلی او ځینی به را تلونکی ته
پاتی کیدې. ژوندانه خپله لاره وهله. اوس بیخی ښکاره پوهیدم چې یوې خواته
راکښل کیږم: غواړم او که نه افغانستان می بیا ځان ته وربولی. دخپلی ارادې
خلاف می غوښتل بیرته هلته ستون شم ستر گوته می تل زما تر قوماندې لاندې
پنځمه فرقه او ټول هغه کسان ولاړ وو چې په کابل کې پاتی شول.

د ۱۹۸۷ کال په جنوری کې زما او مارشال اخرامییف ترمنځ یوه تلفونی
مکالمه وشوه. ما هغه ته وویل چې افغانستان ته له دریم ځل استولو سره به می
مخالفت نه وای کړی. ما گومان کاوه چې داسی خبرې ژرنه فیصله کیږی او زه
داسی په خپلو کارونو کې ډوب شوم چې له لوی درستیز سره دغه تلفونی خبری
رانه چوری هیرې شوې وې. خو د اپریل په میاشت کې دلوی درستیز مرستیال
جنرال وارینیکوف راته تلفون وکړ او وې ویل چې له لوی درستیز سره دځو

ترخېړنې لاندې ده. هغه داهم زيات کړه چې کومه دنده راته غوره شوې ده نو «هغه ډېر زيات کار غواړي».

زه ښه پوهېدم چې په افغانستان کې د «زيات کار ايجابوونکې مقامونه» کم نه دي. د ۱۹۸٤ کال له ورووستيو نه دڅلوېښتم لښکر قوماندانی دجنرال و. پ. دوبينين په غاړه وه. څرنګه چې دهغه دماموريت دوره پای ته رسېدلې وه، نو پوه شوم چې دهمده له پاره دعوضي لټېه شروع شوې ده. وارېنيکوف په دې هکله يوڅکې هم ونه وايه، يوازې يې زيات کړه چې دمقررۍ خبره په نږدې راتلونکي وخت کې حل کيدونکې ده.

تورن جنرال ويکتور پتروويچ دوبينين دڅلوېښتم لښکر دقوماندان په توګه خپلې دندې ډېرې ښې سرته ورسولې. ما دی سړی ته چې آن دستر درستيز په اکاډيمۍ کې د زده کړو په وخت ورسره آشنا شوی وم، خورا زيات درناوی درلود. دغه راز په افغانستان کې زما ددوهم ماموريت په ترڅ کې هم موږ په ګډه چارې ډېرې ښې سرته رسولې. بايد اعتراف وکړم چې ددغو خبرو له امله خورا خوښ شوم او تازه ساه مې واخسته. دغه وخت مې هلته، په افغانستان کې خپلې تيرې دندې په زړه راواړولې هم مې دفرقې قوماندانی او هم مې دوهم ځل دلوی درستيز داستازی په توګه کار کول راپه ياد شول. يوځل بيا مې دخطر هير شوی احساس بيا په وجود کې را ژوندی شو. ښايي دا يو ډول دويرې احساس هم و، ځکه چې

له ځانه سره مې وویل: راځه اوس هم وختي دی، معذرت به وغواړم؟ هسې مې هم دوه زامن بې له ما، له پلاره لیرې لوییږي. هغه وخت ماکسیم دڅوارلسو او آندره داووکلو وو. برسیره پردې پوهیدم چې لږ ترلږه ره نږدې راتلونکې کې دوهم واده نه کوم. هغه سړی به پیدا نشي چې دژوند په ټولو پیچو موکې مې څنګ ته روان اوسي. داسې ښځه به هم پیدا نه شي چې زما دزامنو بار په اوږو واخلي او دهغوی له پاره ددوهمې مور حیثیت ومومي. ترقیامته خونشي کیدای چې زه دې یوځای خدمت کوم او بچیان دې بل ځای اوسیږي. هغو باید دپلار ترڅنګه وي او زه باید هغوی دزوزنې مسؤولیت په اوږو واخلم. خو زما په فکر، په نږدې راتلونکې کې دکوم مهم بدلون راتللو ته انتظار ایستل هسې بې فایدې وو. کله چې مې داټولې خبرې وسنجولې او په تله مې وتللې نو پریکړه مې وکړه چې بیرته افغانستان ته ستنیږم. زه لاترد غه وخته په دې نه پوهیدم، چې وختي دځلویښتم لښکر دقوماندان په توګه غوره شوی یم.

ډیر ژر دخه مودې له پاره رخصتي راکړی شوه. څوورځې مې په مسکو کې تیرې کړې او دوه اوونۍ له زامنو سره په ساراتف کې واوسیدم. درخصتۍ له ختم نه ډیر مخکې دمې دمیاشتې دجشنونو په درشل کې ګرودنو ته ستون شوم. هیڅ انتظار مې نه درلود چې د ۱۹۸۷ کال دمې په ۹* راته دتورن جنرالۍ رتبه راکړل شوه. سمدستي پوه شوم چې دا کار ددې له پاره شوی چې په نوې رتبه دځلویښتم لښکر د قوماندانۍ له پاره چمتو شم، دمې په اواسطو کې خبر راکړل شو چې زما

دنده تصدیق شوی یم.

هره ګړی داړوند فرمان درارسیدو تمه کیده. دهغه تر رارسیدو په کار وه چی په داسی مواردو کی یو شمیر معمول مراسم ترسره کړم. په لومړی ګام کې مجبوروم ددفاع وزیر مرستیال او د پیژنتون رئیس ستر جنرال، د. ت. یازوف ته ورشم. نوموړی څه موده وړاندې د ستر جنرال شکادوف پرځای په دې دنده ټاکل شوی و. شکادوف دعمر دډیروالی او دروغتیایی معاذیرو له کبله «دجنتی ډلی» په غړیتوب منل شوی و.*

جنرال یازوف دعادت له مخی وچ نیغ سړی دی او ځکه یی نوبی له مقدمی رانه وپوښتل: – څه غواړی چی دریم ځل افغانستان ته روان یی؟ بل هیڅوک ستا هومره کافی دلایل نه لری چې له تګ نه معذرت وغواړی. لومړی داچی تادوه ځل هلته دنده سرته رسولې، دوهم داچی ستا بچیان بی موره دی.

خو زه نور افغانستان ته د تګ په هوا کی وم او هیڅ شی مې په پریکړه کی بدلون نشو راوستلی. له جنرال یازوف سره تر خبرو وروسته لوی درستیز مارشال اخرامییف او ددفاع وزیر مارشال سکولوف هم ومنلم.

دهغه وخت دمعمولی قاعدې له مخی له فرقی نه نیولې پورته دټولو قوماندانانو ټاکنه یوازې هغه وخت کیدی شوای چی دشوروی اتحاد دکمونیست ګوند دمرکزی کمیتی دوسله وال پوځ څانګی به تایید کړل. په «ستاروی

---

پلوشچاد » کې دمرکزي کميتې ودانۍ ته لومړی ځل دپنځمې فرقې دقوماندان په توګه دټاکنې په وخت کې راغلی وم. هغه ځل دوسله وال پوځ دڅانګې درئيس مرستيال ن. ی. شليا ګا حضورته منلی وم. وروسته نوموړی دشوروي اردو او سمندري پوځ دسياسي چارو لوی رئيس وټاکل شو.

له نوموړي سره زما تر لنډو خبرو وروسته پوه شوم چې دمسکو دماښو په دهليزونو کې مې سرګرداني نوره پای ته ورسيدله.

زه ساراتف ته ولاړم چې خپله رخصتي پوره پای ته ورسوم. هلته راته ديازوف يوه ياور تلفون وکړاو رانه وېې غوښتل چې سمدستي دشوروي اتحاد دکمونيست ګوند دمرکزي کميتې له منشي ا. ی. لوکيانف سره دکتنې له پاره مسکوته راشم. په ما پسې الوتکه هم رالېږل شوې وه.

معلومه شوه چې د«مرزا قلمانو» په کار کې څه وراني راغلې دی. اسناد په ټاکلې لاره مرکزي کميتې ته رارسيدلي او دلوکيانف په ميزپراته دي. هغه چې پوه شوي و دا دهغه جنرال اسناد دي چې دڅلويښتم لښکر دقوماندان په توګه افغانستان ته روان دی، نو سمدستي يې امر کړی وچې ما وروغواړي.

په سبا يې زه مرکزي کميتې ته ورغلم. ديوې څانګې مشر زه دلوکيانف دفترته وروستم. دهغه دفتر «ستاروي پلوشچاد » دګڼو زړوو دانيو په مجموعه کې ديوې نوې جوړې شوې ودانۍ په پنځم پوړ کې و. دمرکزي کميتې دمنشي نسبتاً کوچنی دفتر دنورو آمرانو دفترونو ته ورته و.

پراته وو. لوکیانف دافغانستان دحالاتو په هکله دمرکزي کمیټې نظر راته واوراوه. دهمده له خولې مې دلومړي ځل له پاره واوریدل چې دڅلویښتم لښکر درا ایستلو خبره دخیړلو په حال کې ده لوکیانف زیاته کړه چې ددې خبرې غوڅول ماته په غاړه اچول کیږي. دانو هغه وخت دی چې په ژنیو کې دڅلورو هیوادو: شوروی اتحاد، دامریکې دمتحدو ایالتونو، افغانستان او پاکستان په ګډون مقدماتي خبرې پیل شوې دي.

اناتولي لوکیانف راته وویل چې ماته حق راکول کیږي چې په پوځ کې دمعمول دود خلاف باید په افغانستان کې دڅلویښتم لښکر په حضور پورې اړوند ټول مسایل مخامخ له همدوی سره مطرح کړم.

له دې خبرو وروسته زه بیا دیازوف دفترته وبلل شوم. ښکاریده چې هغه له دې امله په جامو کې نه ځاییږي چې له ساراتف نه یې زه په دومره بیړه مسکوته دمرکزي کمیټې له منشي سره کتنې له پاره رارسولی یم. هغه یوځل بیا ماته دبریاوو هیله څرګنده کړه. یوازې دسیاسي بیرو پریکړې ته خبره بنده وه چې دهغې له مخې زما دټاکنې په هکله ددفاع وزیر فرمان صادر شي.

دپایتخت په دفترونو کې تردې ځغاستو وروسته مې پخپله خوښه دالوتکې ټکټ وانه خسته او په اورګاډي کې مخامخ دخپل ۲۸ لښکر په لور وخوځیدم. ډیر کلونه وروسته دا لومړی ځل وچې له مسکونه دهیواد تر ډیرې لیرې پرتې لویدیځې پولې پورې په اورګاډي کې راغلی وم. او داټوله لارمې په مینه وهلې ده.

افغانستان ته لیږل کیږي. هغه دځلویښتم لښکر د مرستیال او د قرارګاه د آمر په توګه تاکل شوی و . څرنګه چې پوهیدم د قوماندان په دنده ټاکل می اوس یقیني شوی دی، نو خوښ شوم چې هلته به می یو مرستیال، همدا واسینین وی. مور له هغه سره خدای پاماني وکړه او په اوږده لاره (مسکو–تاشکند) مو د کابل په لور رخصت کړ .

یو اوونۍ وروسته زما د ټاکنې اړوند فرمان هم راورسید. زه بیخي چمتو وم ټول کالي می په یوه بکس کې ځای شول د ۲۸ لښکر له منسوبینو او د ولایت له مشرتابه سره تر مخه ښې وروسته مسکو ته وخوځیدم.

زما مقرري تصادفاً سره د ګرته ډیر نږدې د آلمان د فدرالي جمهوریت د تبعه، م. روست د سپکې الوتکې له جنجالي کیناستو سره په یوه وخت کې وشوه. له دې پیښې وروسته په وسله وال پوځ کې ځینې بدلونونه راغلل. په دې لړ کې د مارشال س. ل. سوکولوف پر ځای ستر جنرال د. ت. یازوف د شوروی اتحاد د دفاع وزیر وټاکل شو.

د غه وخت چې نوی وزیر له خپلې دندې سره په آشنا کیدو مشغول و، له ما سره مارشال اخرامییف وکتل. لوی درستیز راته وویل چې د څلویښتم لښکر د قوماندانۍ په وړاندې څو مهمې دندې پرتې دی. باید تر وسه وسه د سرتیرو او افسرانو ژوندانه ته د خطر اندازه کمه شي.

د ژلمو ژوند په افغانستان کې زموږ تر ټولو ارزښتمن شیز دی. بر سیره پر دې

تولګي وایستل شي. خو مارشال زیاته کړه چي دا به بیخي منظمه وتنه وي او نه تیښته. مارشال اخرامیف زیاته کړه: افغاني ملګروته باید زمونږ دریځ سم روښانه کړی شي او ددغسی یوې پریکړې داړتیا په هکله ورته کافي دلایل وویل شي.

دخبرو په پای کی اخرامیف وویل باید یوځل بیا جنرال یازوف ته ورشم. دقاعدې له مخي دلښکر نوي قوماندان هیڅکله ددفاع وزیرته نه ورځی. دا دهغه دمسؤولیت ساحه نه وه. زما زړه چندان نه غوښتل یوځل بیا یازوف ته ورشم او ځان ورته وروپیژنم. لومړی په دې علت چی هغه زه پیژندلم، ځکه په لنډه موده کی مو دوه ځلی سره لیدلی وو. وروستی ځل یوه نیمه اوونۍ مخکې ورغلی وم. دوهم په دې علت چی له هغه سره مې په ټولو موضوعاتو بشپړې خبر کړې وې. خو لوی درستیز په خپله خبره ټینګار کاوه.

سبا سهار چی مخکی له مخکی می نوم دراغلو کسانو په لیست کی لیکلی و، ددفاع وزیر کوټې ته ننه وتم. دهغه په شعبه کی دسیاسی چارو لوی رئیس جنرال ا. د. لیزیچف ناست و. وزیر په څه خبره عصبي بریښیده. هغه په همدغه عصبی حالت کی زه ومنلم. یوځل بیا یی راته په لنډو ټکو کې یادونه وکړه چی په افغانستان کې دڅه کارونو سرته رسول په کار دی: دهوایی ډګرونو ساتل، دسترو ښارونو مدافعه.

له دغو لارښوونو وروسته تاشکند او وروسته دکابل په لور والوتم.

# څلوریشت ساعتونه

کابل ته له تګ نه مخکې خبر راکړل شو چې په هغه ښار کې اوس یوازې د شپې الوتنې کېدی شي. دورځې الوتنه ډېره خطرناکه شوې وه: نه یوازې جنګي الوتکې او هیلیکوپترونه ویشتل کېدل، بلکه ترانسپورتي الوتکې هم په امن کې نه وې.

چې څنګه د (څلویښتم) لښکر قرارګاه ته ورسیدم نو سمدستي مې له ستر جنرال وارینیکوف سره وکتل. هغه دشوروي اتحاد ددفاع وزارت داورپراتیفي ډلې مشر او په افغانستان کې زموږ د پوځونو دفعالیت سیاسي او پوځي اړخونه یې څېړل. والنتین وارینیکوف پوره وس وکړ چې بالاخره دژنیو تړون لاسلیک شي. په افغانستان کې زما دغیابت په یوه کال کې اوضاع څه ډېره بدله شوې نه وه. دڅلویښتم لښکر ډېر افسران مې دمخکینې ګډ کار له وخته پیژندل، هغو مې دجګړو په ډګر کې هم لیدلي وو. تقریباً یوه هفته په کار وه چې دڅلویښتم لښکر له قوماندان جنرال دوبینین نه دچارو تسلیمي واخلم. کله چې به مې دهغه ننداره کوله چې څنګه دهوايي ځواکونو، توپچي قواوو، فرقو، مستقلو لواګانو او دضربتي قطعو لارښوونه کوي او څنګه له افغاني حکومت سره اړیکې ساتي، سوګند دی چې شک به راته پیدا شو چې ګنې زه به هم دده هومره په مهارت داټول کارونه سرته ورسولی شم.

په شوروي اتحاد کې دننه مثلاً د ګروډنو کې د ۲۸ لښکر قوماندانۍ بیخي بله خبره وه. البته چې دافغانستان پیښې مې تل تعقیبولې. خو فکر مې کاوه چې

(زه پوهیدم) چې دافغانستان په هکله خپریدونکې خبرونه په سلو کې سل سم نه دي. ډیر شیان به له سره پالش کیدل او په ډیرونورو حقایقو، په تیره بیا پر هغه څه چې جګړې پورې یې اړه پیدا کوله، آن دغه وخت یعنې په ۱۹۸۷ کال کې هم پرده اچول کیده.

کله چې زه افغانستان ته ستون شوم او دځلوېښتم لښکر دمشر تابه درونډ بارمې په اوږو واخیست (هغه وخت دلښکر دپرسونل شمیر ۱۲۰ زروتنو ته رسیده او دا په افغانستان کې زموږ دپوځي حضور په ټولو نهو کلونو کې دشوروي پوځونو دمحدودو قطعاتو اعظمي شمیرو.) نو سمدستي پوه شوم چې زه او یوازې زه دټولو هغو کارونو مسؤول یم چې دغه لښکر یې سرته رسوي. دټولو هغو کارونو مسؤولیت چې په افغانستان کې پېښیږي، په تیره بیا دوګړو دژوندانه مسؤولیت زما په غاړه دي.

دځلوېښتم لښکر په هکله ما پوره معلومات درلودل، خو په ذهن کې مې هم نه ګرزیده چې هره ورځ دې دقوماندان پر سرله هرې خوا داطلاعاتو داسې باران جوړ شي. دهمدغو لاس ته راوړو معلوماتو له مخې باید لازمې پریکړې شوې وای. دا باید هسې پریکړې وای چې هم یې زموږ او هم یې دملکي خلکو دسر دزیان مخنیوی کړی وای. دځلوېښتم لښکر په پوځي حرکاتو کې مهمه موضوع همدا وه.

قوماندان دډیرو موضوع ګانو په حل مکلف و، لکه: داړتیا وړشیانو رسول،

مرستي تېنگول. برسيره پردې دشوروي پوځونو محدودو ټولګيو په افغانستان کې زموږ (ملکي) کارپوهان لکه: دګاز او تيلو د را ايستلو کارپوهان چې دکانونو په څېر لوا ورا ايستلو اخته وو او دغه راز سلاکاران، هم ساتل شک نه شته چې دغو ټولو خبرو د (پوځ) په روحي حالت اغېزه ښندله. ما هلته په افغانستان کې خپل رول ښه درک کړی و. خو له دې سره سره، ځيني شکونه او ترديدونه مې په زړه کې را پيدا کېدل.

ويکتور دوبينين زما په څېره کې ددغو خيالو داغېزې او زما دعمومي حلات په ليدلو سره ګواکې زما په آرامولو خوله پرانيستله.

- هيڅ خبره نه ده، چې يوځل په دغه څوکۍ کينې - او په سريې دقوماندان دکارميزته اشاره وکړه - ټول شيان به سم شي.

رښتيا هم همداسې وشوه.

موږ له جنرال دوبينين سره دشوروي په لوړ دتګ په وخت توده مخه ښه وکړه او ما دخپل ماموريت په سرته رسولو پيل وکړ.

زما دماموريت پيل (که ددې اصطلاح استعمال دلته مناسب وي) دسهار په اووبجو و. دغه وخت دلښکرو دقرارګاه کارکوونکو دسهار ډوډۍ خوړل پای ته رسول.

ما په لومړي ګام کې دهغو فرقو او مستقلو لواګانو دقوماندانانو رپوټونه اوريدل چې د مسؤوليت په ساحه کې يې اوضاع کرکيجنه وه. سمدستي مو

دمرستو تصمیم نیوه او هغه سیمی به مو په گوته کولې چې باید هوایي یا توپچي ځواکونه پرې گوزار وکړي.

دسهار په اتو بجو مو دجگړې دسوق او ادارې په مرکز کې دروانی ورځی په اوږدوکې د قطعاتو دندې په گوته کولې. په تیرو څلورویشتو ساعتو یا تیره شپه کې منځ ته راغلی حالات مو مخکی له مخکی څیړل. فرقو، غنډونو، مستقلو قطعو، استخباراتو او دغه راز گوزاریزو جزو تامونو لکه هوایي او توپچی ته دهغوی دندی په گوته کیدې. ترټولو زیاته پاملرنه مو په پایتخت کې دحالاتو انکشاف ته اړوله. تقریباً دنهو بجو په شاوخوا کی له تاشکند او مسکو سره تلفونی خبری پیل کیدې. دغه وخت نو دلوی پوځی سلاکار ددفتر کارکوونکی چی دنده یې له افغانی پوځ سره په گډه دچارو دسرته رسونی هماهنگ کول وو، هم دعمل ډگرته راوتل.

هره ورځ له افغانی مشرانو سره دلیدنو کتنو اړتیانه وه، خو بیا هم دلښکرو قرارگاه یو یو افسر به خامخا دافغانستان ددموکراتیک جمهوریت دوسله وال پوځ داعلیٰ سرقوماندانی په غونډو کې دگډون له پاره ورته چی پخپله نجیب الله دایرولې. حقیقت دادی چی ددغه عنوان په اوریدو سره به زموږ په شونډو بی اختیاره موسکا خپره شوه. دافغانستان وسله وال پوځ دومره سترنه و چی «اعلی سرقوماندان» دې ولری، خوله دې سره سره دغسی غونډې سرته رسیدلی. ددې غونډو دجوړولو نوښتگر تر هرچا لومړی خپله سترجنرال وارینیکوف و. فکر کوم

وای چې په هیواد کې څه تیریږي. که دغه غونډې نه وای نو هغوی به په ولایتونو، مثلاً په کندهار کې په پنجشیر کې او آن پخپله په کابل کې له حالاتو اصلاً خبر تیا نه درلودی.

داله جمهور رئیس سره غتیه مرسته وه: (په دې ترتیب) هغه دهیواد داوضاع له انکشاف او ورځنی بدلون نه ښه خبریدلی شو. برسیره پردې، دې کار دهغه پوځیان او ملکی مامورین اړایستل چې زیاتی خولې توی کړي.

دڅلویښتم لښکر جزوتامونه دپراخو پوځی فعالیتونو ترڅنګ مجبور وو، هره ورځ څو ساعته درارسیدلو اسنادو تحلیل ته هم ځانګړی کړي. افغانستان ته ډول ډول کاغذونه رارسیدل. دغه اسناد له مسکو، تاشکند او باکونه چې دجنوبي برخی دپوځونو مرکز په کی واقع و، رالیږل کیدل. هغه لارښوونې، امرونه او پریکړې چې دپخوانی شوروی دننه پوځی حوزو، او یا له پولې نه دباندې پوځی ټولګیو ته صادریدل، (په افغانستان) کی محدودو پوځی ټولګیو ته هم حتمی الاجرا ګڼل کیدل. په کار وچې دغه اسناد ولوستل شي، ټولو مادونانو ته دهغو په هکله خبرورکړل شي او دهغو دپلی کیدو بهیر تعقیب شي.

دغرمې له ډوډۍ وروسته دلښکر دقوماندان له مرستیالانو، دبیلابیلو ادارو له مشرانو او دهغو څانګوله استازو سره چې په افغانستان کی یې نماینده ګی درلودې غونډې سرته رسیدلې.

تقریباً دشپې په لسو بجو، کله لږ څه مخکې او کله ناوخته دخپل کارله دفترنه

مخابراتي وسايل ځاى پرځاى شوي وو چې په دفتر كې وو.

كورته له تگ نه مخكې هره ورځ خامخا دجگړه ييزو عمليا تو دسوق او اداري مركز ته ورتلم. هره ورځ له استثنا ء پرته دياد شوي مركز، دلښكر دقرارگاه او داساسي څانگو دافسرانو پوځي محاسبي دغه ځاى ته رارسيدلې. نوكريوالو افسرانو دمحدودو پوځي ټولگيو له ټولو قطعو او په دې لړ كې دتوپچي او هوايي ځواكونو په څير گوزاريزو جزوتامونو سره دپرله پسې مخابراتي تماس ددرلودو په مرسته دبدليدونكو حالاتو جاج اخيسته او داړتيا په وخت كې يې دلښكر دقوماندان يا درستيزوال تر رارسيدو، دپوځونو فعالتيونه هماهنگ كول.

زه دهغو نسبتاً پنډو، ډبرينو، دريو كورونوله ډلې نه په يوه كې اوسيدم چې داتيا يمې لسيزې په نيمايې كې دلښكر دقوماندان او دهغه دمرستيالانو له پاره آباد شوي وو. له دفترنه كورته معمولاً په پښو راتلم. چې سړى په كراره او بې عجلې تلاى، نو دغه مزل له لسو دقيقو زيات وخت نه نيوه. يوازې سړى كولاى شواى آزاده هوا تنفس كړي بلكه په سړه سينه دتيرى ورځې دحالاتو جاج هم اخستل كيداى شواى.

په ټولو جگړو، خو په تيره بيا دافغانستان دجگړې په ترڅ كې شپه ترټولو ستونزمن او پيچلى وخت گڼل كيږي. دشپې دتيارې په خوريدو سره ناڅاپه دډزو باران پيل كيده. غليمان پوهيدل چې دشپې مور پراخ هوايي يرغل او يا توپچي دقيق گوزارونه نه شو كولاى.

ټول په کاغوشونو کې راټولیده. که چیرې دشپې کومه ګولۍ په کاغوش لګیدله یا دهغه خواته چاودله، دورځې په پرتله یې دسردرونډ تاوان رسولی شوای.

سربیره پر دې مجاهدینو دشپې له تیارې نه دورانکاریو له پاره هم ګټه اخیسته. دورانکارو باندونو هڅې دغه وخت ګړندۍ کیدلې. ډیر ځله دیوې شپې په ترځ کې حالات څو ځلې بدلیدل رابدلیدل په داسې حالاتو کې زما داپارتمان تلفونونو، تر سهاره شرنګا کوله.

دلته داپارتمان دکلمې استعمال چندان سم نه راته برېښي. دقوماندان کور له دوو کوټونه جوړ و. سالون ددفتر کارهم ورکاوه. همدلته میز، تلفونونه، دوې څوکۍ، یو کوچ، تلویزیون او اوسپنیز صندوق (ګاوصندوق یا سایف) هم اینبودل شوی وو. دخوب په کوچنۍ کوټه کې په سختۍ سره یو کټ، الماری، یو کوچنوټی میز او یوه څوکۍ ځای په ځای شوی وو. دجګړې دوخت په حساب یوازنی لوکس څیز چې می درلود هغه دځان مینځلو عصری تشناب و. دقوماندان مرستیالانو هم تقریباً همداسې ژوند درلود. دلښکر دبیلابیلو قطعاتو او ادارو غنډو آمرینوته په دوو تنو، یو دغسې اپارتمان رسیدلی و.

که ورځ به عادي تیره شوه او ماښام به هم تریوې اندازې کراری وه او ډزې او د سرزیانونه به کم و، نو ټولو عمدتاً ایله دشپې په دولسو بجو استراحت پیل کاوه.

موږ ټول دجنګي الوتکې یا هیلیکوپټر دغرهاری په څپو کې چې ټوله شپه به دلښکر دقرارګاه له پاسه په ګزمه تیریده، خوب اوړو. پیلوټانو دجګړې دسوق او

سیمو تاکلی برخی یا هغه لوری به یی ځارل چې معمولاً به پرې دلښکر برقرارګاه دډزوله پاره کار اخستل کیده. دغه هیلیکوپټر دورځی هوا ته نه پورته کیده. ددی له پاره چی ونه ویشتل شی، موږ به (دورځی) یوازې په ځمکنۍ ځارنې بسینه کوله، خو دشپې به خامخا هغه دلښکر دقرارګاه او دکابل دهوایی ډګر له پاسه تیریده راتیریده.

## اساسی دنده دوګړو دژوند ساتل دی

په ۱۹۸۷ کال کې زه بیخی متیقن وم چی زموږ دپوځونو دایستلو پریکړه کیدونکې ده. ما دڅلوېښتم لښکر دمشرتابه غړی راټول او زما په نظر مهمه خبره می له هغوی سره مطرح کړه: دسرزیان دې هم په جګړو او هم په تیره بیا له جګړې پرته حالت کې بیخی راکم کړی شی. ما دخپلې پریکړې په سم والی باور درلود او دژوندانه بهیر هم داخبره تایید کړه. ماله افسرانو نه وغوښتل چی باید دسرتیرو او وړو ضابطانو دمرګ دمخنیوی له پاره دې خپل پوره وس وکړی. دجګړې په ډګر کې او یا ددښمنانو له خوا، دهوایی ډګر، ګارنیزیون، پوستی او یا هری بلی موضع دویشتو په ترڅ کې دهر وژل شوی پوځی په بدل کی باید دهغه دقوماندان غوږونه سخت تاو کړی شی.

سمه ده چی په افغانستان کې زموږ تلفات مثلاً په ویتنام کې دامریکاییانو دسر دزیان په په پرتله څلور ځله کم وو، خو زه فکر نه کوم چی دمړو شویو وګړو دمیندو، کونډو او یا بچیانو زړه ګی به دې خبره تسل کیدای شی.

رسيدونكو عملياتو شمير بايد حداقل اندازې ته كم كړاى شي. قوماندان مجبور وځوابي او يا دشرايطو په اقتضا يرغليز گوزارونه يوازې ددې له پاره ترسره كړي چې زموږ دهيوادوالو دډله ييزې وژنې مخنيوى وكړي او يا ددغسې قتل خطرله منځه يوسي. قوماندان يوازې هغه وخت حق درلود عمليات وكړي چې پر دښمنانو دزورور گوزار دكولو اړتيا دلمرغوندې روښانه وبرېښي.

دځلويښتم لښكر درستيزوالۍ ته چې مشري يې هغه وخت ديوري پاولوويچ گريكوف په غاړه وه، دكوچنيو محافظتي پوستو ترسطحې پورې زموږ دټولو قطعاتو دسختې څارنې د يوه مركزي سيستم دمنځ ته راوړلو دنده وسپارل شوه. موږ بايد دافغانستان په هره سيمه كې آن له كوچنۍ بدلون نه خبر شوي واى.

موږ په همدې شدت په افغانستان كې دځاى پرځاى شويو جنگي او ترانسپورټي الوتكو دلارښوونې څارنه كوله. ځلويښتم لښكر پيياوړې هوايي ځواك درلود.

. ما دخپلې قوماندانۍ په لومړيو مياشتو كې هڅه كوله چې هرافسر پوه شي: دراپيداشويو ستونزو په پام كې نيولو پرته بايد پخوانۍ بتان نورمات كړي. له افغانانو سره، دهغو له پوځ، حكومت او سيمه ييزو مشرانو سره دپراخ مټ مرستي بندول په كار و.

تجربې ښودلې وه چې افغانان زموږ دجگړه ييزو برياوو پخلى نه كوي، له هرې

زیرمی له سره جوړولې، بیا زموږ دتأسیساتو څنګ ته رارسیدل او بیا یې ډزې او یرغلونه پیل کول. پوښتنه رامنځ ته کیږي: دڅه له پاره دومره اوږده موده وجنګیدو او دزلمیانو غوښې مو په غرونو کې پاتې شوې؟

## ددې بهیر تمول په کار و.

دڅلویښتم لښکر دقرارګاه دریځ دزیاتو په طبعه برابرنه و. موږ تر هر چا لومړی، دافغانی مشرتابه له خوا، زورور فشار احساس کړ. کله چې نجیب الله او اطرافیان یې په دې وپوهیدل چې موږ نورنه غواړو دهغوی پرځای وجنګیږو، نوله خپلو زړو چلونونه یې په نوې بڼه کار اخستل پیل کړل. افغانی مشرانو په هره وسیله او آن کریو چکوف* یا ګرباچف ته دشخصی مراجعی له لارې زیار ایسته دشوروی محدودو قطعاتو پوځی تولګی دهغو ستونزو هواری ته راکاږي چې په کابل کی دواکمن رژیم دبقا له پاره یې حیاتی ارزښت درلوده.

په افغانستان کی پوځی – سیاسی حالت ورځ په ورځ پیچلی کیده. چې څومره به دحکومتی واکمنو دریځونه کمزوری او مړاوی کیدل، هومره به په شوروی پوځی قوماندانۍ فشار زیاتیده. له یوې ورځی نه بلی ته دکابل واکمنو، له موږ نه دزیاتو شیانو غوښتنه کوله.

موږ دخپلی وسلی په زور دانقلابی رژیم ډیر چوپړ وکړ، خو دافغانی مشرانو طفیلی عادتونه او زموږ په حساب دحکومت چلونې ښکاره هڅی بالاخره ددې سبب کیدلی چې دحکومت تر کنترول لاندې سیمه له یوې ورځې نه بلې ته محدوده

دیو شمیر ولایتونو یوازې یوه برخه زموږ په لاس کې وه. عمدتاً شوروي عسکرو ولایتي مرکزونه په لاس کې ساتل چې په هغو کې به دنجیب الله سړي ځای پرځای وو، د ساري په توګه دبامیانو په ولایت کې دشوروي کوماندو کنډک ددرې کیلومترو په مساحت ارزښتناکه ستراتیژیکي سیمه په لاس کې لرله چې له هرې لوري ددښمن په محاصره کې و. په داسې حالاتو کې به موږ ویل: دولایت یوه برخه داپوزسیون په لاس کې ده. خو په اصل کې خبر دېخې بالعکس وه.

دافغانستان حکومت ونه شو کړای دلسو کلو په ترڅ کې په ډېرو ولایتونو کې خپل دریغ پیاوړی کړي. کونړ، پکتیکا، بدخشان او کاپیسا په دې لړ کې راتلل. په ۱۹۸۷ کال کې دهیواد دخاوري چې دا داري ویش له پلوه پکې ۳۱ ولایتونه او یوه دخوست لویه ولسوالي راتله، په سلو کې ۸۵ برخه دمجاهدینو په لاس کې وه. حکومت یوه ولسوالي په بله پسې او یوولایت په بل پسې له لاسه ورکاوه.

## که روسان ووځي...

دافغانستان اکثریت وګړو دسیاستمدارانو خلاف په خپل هیواد کې دشوروي پوځونو شته والي دپوځي، سیاسي او اقتصادي عمومي معیارونوله مخې معقول اقدام نه ګاڼه.

عادي افغانانو چې دقرآن په روحیه روزل شوي وو، زموږ یعني شورویانو په ځېرو کې داسې «کفار» لیدل چې نه یوازې دهغوی په عقیده، مذهبي دودونه تر پښو لاندې کوي بلکه وسله په لاس دمسلمانانو خلاف جنګیږي هم. زموږ خلاف

وړل شوي نه وي.

زمـا په نظر دانقـلابي رژيم بدمرغي په دې کي وه چي تقـريباً ورته عـقـيـده دافغـاني پوځ ډيرو افسرانو هم درلوده، دغي عقيدې دجگړې دبهيرله څرنگوالي سره په ارتباط کې ځان (په بيلابيلو بڼو) څرگنداوه. توپير يوازي دومره وچي افغاني پوځيانو دمقام خيال ساته او ملکي مامورينو دڅوکی.

له يوې خوا هغوی دافغانستان دکورني لانجو دهواري له پاره شوروي پوځيانو او سلاکارانو ته اړتيا درلوده، خوله بلي خوا هغوی په دې هم پوهيدل چي دا په کومه سيمه ييزه لانجه کي گډون نه، بلکه په مورني هيواد کې بشپړه کورني جگړه ده. نن يا سبا به دخپل اولس خلاف جگړه کې دهغو برخه اخستنه ټولو ته رسوا شي. زما په نظر دنجيب الله حکومت ترهر څه زيات له دغه ټکي نه ډاريده. هغوی په خوله دانترناسيوناليستي مرستي له امله زمونږ منّنه کوله خوله دې سره جوخت دنجيب الله سړي په دې هم پوهېدل چي زمونږ پوځونو نه ترقيامته په افغانستان کي پاتي کيداي خونه شي؛ ډير ژر به هغه وخت راورسيږي چي انقلابي مشران به وي او دهغوی ستونزې، دوی به وي او مخالفين.

زه دافغـاني پوځيانو خيانتونه او بدعـهدي چي تقريباً په هر گام کي ورسره مخامخ کيدو، يوازې په همدغو پورتنيو دلايلو توضيح کولی شم. مثلاً: ډير ځله به داخبره راولاړه شوه چي افغاني اردو دې په خپل لاس په دښمن گوزارونه وکړي.

دحکومتي لښکرو افسرانو په خبره کي دبېلابېلو ډنډو داجر الله يار دېښي جمتو

شویو پلټنو کې به داسې خبرې جوتې شوې چې دسرې خوله به ورته خلاصه پاتې کیده. افغاني پیلوټانو ته چې به د باندېنو دراتوليدو دسیمې له پاسه دالوتنې امر وشو، دهغو په سربه څوځله تاوراتاو شول او بیا به یې خپل بمونه بیخې په بل ځای وغورځول. موږ داسې ډیر مواردو پلټل او مستند مو وښودل.

کمزوري روحیه او ټیټه مسلکي روزنه دافغانستان دوسله وال پوځ دمنسوبینو بیلوونکې ځانګړتیاوې وې.

البته چې دافغانستان پوځ لوا ګانې، غنډونه او فرقې درلودې. دافغانستان ددفاع وزارت هوایي ځواکونو، آن الوتکې هم درلودې، البته دشوروی محصول (!)

په هوایي ډګرونو کې میګ- ۲۱ ډوله او ایل-۲۸ ډوله بم غورځوونکې الوتکې چې په خپل وخت کې بدې نه وې، ولاړې وې. ایل-۲۸ ډوله الوتکې که څه هم زړې دي او اوس نوې الوتکې منځ ته راغلي، خو دشوروي لومړي اتومي بم دهغو په مرسته ګوزار شوی او اوس هم دښو الوتکو په ډله کې ګڼل کیږي. هغوی دالوتلو ډیرې ښې ځانګړتیاوې لکه سرعت او دمانور ځواک لري. خو بیا هم افغاني پوځ ددې وړتیا نه درلوده چې مخې ته پرتې لانجې دنورو له مرستې پرته غوڅې کړي. موږ په دې خبره کې هیڅ شک نه درلود، خو خوله مو پټه ساتله.

دمحدود پوځي قطعاتو وتل په حقیقت کې دحکومتي پوځونو دغوڅې ماتې

پارد جگړې ایله څواوونې اوږدې کړې شوې. کله چې له څلویښتم لښکر نه پاتې درې میاشتنې زیرمې ختمې شوې، دکابل انقلابي رژیم دمخالفینو دګوزارونو لاندې سادوړکړد (؟!!!)

## استخبارات

دافغانستان دپینبو جاج اخستنې تر زیاتې اندازې داستخباراتي ارګانونو په اغیزمن فعالیت پورې اړه درلوده. پوځي استخباراتو تول وس په کار اچولی و، چې دمحدودو پوځونو قوماندانی، دپریکړو د کولو په وخت کې داپوزیسیون له پلانونو نه پوره آګاه وساتي.

داستخباراتو ادارې ډیرې قطعي او جزوتامونه درلودل. نه غواړم چې دقیق شمیر یې یاد کړم، ځکه هغه سیستم لا تراوسه هم فعالیت کوي. فکر کوم داستخباراتو د ادارې ددننی جوړښت او دهغې دکار دځانګړتیاوو راسپړلو ته اړتیا نه لیدل کیږي. یوازې دومره ویل غواړم چې سلګونه افسران، واړه ضابطان او سرتیري چې داستخباراتو په برخه کې یې کار کاوه د څلویښتم لښکر سترګې او غوږونه ګڼل کیدل.

که چیرې له سیاسي پلوه ډیر تینګ دولتونه نه شي کولای د زرګونو ښو روزل شویو افسرانو له مرستې پرته په حالاتو لاس بري ومومي، موږ خو په افغانستان کې داستخباراتو دادارې له مرستې پرته هیڅ له شو کولی.

دافغانستان په خاوره کې دشوروي پوځونو په ګټه داطلاعاتو د راټولولو او

رهبري کيده. ټول پوځي مخبران په همدې اداري پوړي تړلي وو.

داستخباراتو په لويې اداري پوړي يو استخباراتي مرکز، دوه دجاسوسۍ څانګې او دغه راز په فرقو، لواګانو او مستقلو غنډونو کې داستخباراتو مديريتونه تړلي وو.

داستخباراتو په سيستم کې دغه راز مستقل غنډونه او هم دوه ضربتي ټولګاني راتللې چې دافغان- پاکستان دګډې پولې په اوږدو کې ځای پرځای شوي وې. هرې لوا څلور کنډکونه او هر کنډک په منځنۍ توګه پنځه سوه تنه پرسونل درلودل.

پردې برسيره دپلو او کوماندويي فرقو داستخباراتو کنډکونو او دپلو او ټانک غنډونو استخباراتي ټوليو هم دجاسوسۍ په کار کې مرسته کوله. دپوځي استخباراتي اهم لوړه څوکه (رأس) دځلويښتم لښکر په قرارګاه کې و.

له پوځي استخباراتي لارونه لاس ته راغلي معلومات دهيواد په بيلابيلو سيمو کې دځلويښتم لښکر له پاره دمحدودو جګړو دسرته رسولو په وخت کې ډير ارزښتمن ثيز ګڼل کيده. په دې وسيله به مثلاً دوسلو يا مهماتو دزيرمو دقيق ځايونه، داپوزسيون دډلو مرکزونه او يا دهرې ډلې دغړو شمير موږ ته معلوميده. له دغسې معلوماتو نه يوه قوماندان هم ستر ګې نه شواى پټولاى.

خو موږ په افغانستان کې هره ورځ جګړه نه کوله، ولې دمعلوماتو لاس ته راوړل هره شيبه په کار وو.

تخنیکی وسایلو او یا انفرادی جاسوسانو په مرسته لاس ته راتلل. دځلوېښتم لښکر قوماندانۍ دا امکانات درلودل چې نه یوازې دنسبتاً لنډې مودې له پاره دحالاتو جاج واخلي، بلکه دا وړدي راتلونکي مودې له پاره هم دحالاتو دپرمختګ اټکل وکړي. موږ نه یوازې دهر مخالف ګوند دمشرتابه له مزاجي حالت نه چې دهیواد بیلابیلي سیمې یې په لاس کې وې پوره زیات خبریدو بلکه دشوروي یا حکومتي عسکرو خلاف ددښمنانو داحتمالي ګډو اقداماتو په هکله موهم کافي معلومات لاس ته راوړل.

دمحدودو پوځي قطعاتو قوماندانۍ پرله پسې دعلاقې وړ معلومات حاصلول. داستخباراتي اداري افسرانو داطلاعاتو د لاس ته راوړلو بیلابیلې لارې چارې منځ ته راوړې او کارولې. ددغو اطلاعاتو طیف ډیر پراخ و: دنظروړ سړي، شي یا سیمې له نظري څارنې نه نیولې، دمخابراتي څپو او له هوانه داخستل شویو عکسونو تر مطالعې پورې. داتیایمي لسیزې په دوهمه نیمایي کې دتخنیکي څارنې جزوتامونو آن د افغانستان په خاوره کې دکیهاني جاسوسۍ په ګډون، ډیر پراخ معلومات لاس ته راوړل پیل کړل.

موږ داستخباراتو هغې بنې ته ډیر ارزښت ورکاوه چې دتخنیکي وسایلو په مرسته دامنیتي پوستو دغړو له خوا دهغوی دمسؤولیت په سیمه کې ترسره کیدله.

دډلګیو دقوماندانانو په ګډون تقریباً ټولو افسرانو دمزدورو جاسوسانو یوه

مجاهدینو سره دتماس ترڅنګ موږ ته هم په دې هکله معلومات را کول چې مثلاً په کلي کې څه حالت دی، دشوروي عسکرو تر کنټرول لاندې سړک په اوږدو کې څه پیښیدونکې دي، دخلوینبتم لښکر په جزوتامونو کې دکوموورانکارو عملونو ته کیږي.

شوروي پوځي مشران په افغانستان کې دخپل حضور په لومړنو میاشتو کې دې نتیجې ته ورسیدل چې له سیمه ییزو خلکو سره ماهرانه او پراخ کار داسې نتیجې لاس ته راوړلې شي چې ستر ګې پټول ترې شوني نه دي. له همدې امله موږ نه یوازې دغه کار ته اجازه ورکړه بلکه ټولو لویو او کوچنیو قوماندانانو ته دند وسپارل شوه، چې دخپلو اجیرو جاسوسانو شمیر دې پرله پسې زیاتوي.

دجاسوسي څانګوله لارې مو وکړای شول داپوزیسیون زیاتو قوماندانانوته لار پیدا کړو. قاعدتاً له هغو سره په خپله دقطعي قوماندان یا درستیزوال تماس نیود. په هغو سیمو کې چې له جغرافیایي پلوه یې ځانګړی ارزښت درلود دهمدې مقصد له پاره خاص سیستم منځ ته راوړل شو او زموږ داستخباراتي شبکې ترلارښوونې لاندې چارې سرته رسیدلې.

په افغانستان کې زموږ دحضور دنهو کلونو په لړ کې دمجاهدینو داسې کوچنۍ، منځنۍ یالویه ډله نه وه چې مشرانو دې یې دخلوینبتم لښکر له استازو سره دهمکارۍ تړون نه وی لاسلیک کړی. که له دغسې هڅو په تیره بیا له قوماندانانو سره دمخامخ کتنونه مو ډډه کړې وای، نوتر زیاتې اندازې به مو په

... ماهدینو سره آن دیوه لنډ او ربند کول زمونږ له پاره تردې زيات ښه وچې
...لا وجنګيږو او دخپلو ۱۹ کلنو سرتيرو په ژوندانه لوبې وکړو.

زما په نظر دفرقو قوماندانانو ډير زيار وايسته چې داطلاعاتو دحاصلولو
...يستم منځ ته راوړي. که چيرې هغوی داپوزيسيون دوسله والو ډلو په مشرانو
داغيزښندلو امکانات نه درلودای نو ترکنترول لاندې ولايت يا ولسوالۍ کې ورته
په حالاتو کنترول درلودل خورا ګرانيدل.

تقريباً دافغانستان په هره سيمه کې موله اپوزيسيون سره تماسونه ټينګ کړی
وو. ځينی وختونه به هغه ډير لنډ او کم دوامه وو، خو کله کله به په يوه دوه دبدل او
دخو کلونو له پاره ثابت پاتې کيدل. افسران له دوه کلن خدمت وروسته شوروی ته
ستنيدل، خوارتباطی سيستم له يوه نه بل ته لکه په ميراث پاتې کيده.

د «حياتی لارې» په اوږدو کې چې له کابله تر سالنګه او بيا تر ترمزه اوږده وه،
په تيره بيا دسالنګ په جنوبی برخه کې، دچاريکارو په شاوخوا، جبل السراج او
دغه راز د درې په خوله او دننه په غرنيو سيمو کې موږ ښه ټينګ تماسونه تأمين
کړی وو. له يو شمير تشو سره سره په شمالی سالنګ، ددوشی په سيمه او پلخمری
کې او دغه راز دشمال په لورې وړاندې هم نسبتاً اغيزمن تماسو منځ ته راغلی وو.

دغه راز له هغو ډلو سره چې دکابل په شمالی او ختيځو څنډوکی يې دسروبی
داوبو ترينده دجلال آباد په لور دلوی واټ په اوږدوکې فعاليت کاوه هم ټينګه
همکاری منځ ته راغلی وه. خو دکابل په لويديځ او جنوب کې دفعالو ډلو امو اتو...

دپوځي استخباراتو غړو په جلال آباد، دکندهار په ځینو سیمو او فراد کې دمخالفو ډلو له مشرانو سره مخامخ تماسونه پیدا کړل. له مخالفینو سره پرله پسې کار په شینډنډ کې دځلوینښتم لښکر دهوایي ځواکونو پراډې دغلچکیو یرغلونو خطر ډیر کم کړی و. دپنځمې پلې فرقې قوماندان برید جنرال الکساندروا سیلویچ - او چکین او د ۱۰۱ لمبر غنډ قوماندانۍ دهرات په سیمه کې دبیلابیلو مخالفو گوندونو له خپل منځي اختلافونو څخه دځان په گټو ماهرانه کار اخیسته. په بگرام او دهوایي ډگر په چارچاپیر «شنه سیمه» کې دحالاتو دآرامۍ له پاره ډیرې هڅې په کار وې. خو په دې ولایت کې هم بالاخره دفرقې قوماندان جنرال ویکتور میخایلیویچ بارینکین وکړای شول زموږ په گټه گټور تماسونه ټینگ کړي.

دځلوینښتم لښکر ترڅنگ داطلاعاتو په راټولولو نه ک. گ. ب او دشوروي اتحاد دکورنیو چارو وزارت هم مشغول وو. کله کله دشوروي سفارت کارکوونکی هم ددغسې چارې له پاره گمارل کیدل، خو دغو وگړو له داسې «جزئیاتو» سره لکه ددښمن ناڅاپي یرغل یا زموږ په موټري قطار دهغوی له برید سره هیڅ علاقه نه بنودله.

د ک. گ. ب. دبهرني جاسوسي څانگه په غټو کارونو لگیا وه. دهغوی پاملرنه داسې خبرو ځان ته راارولې لکه: دافغانستان دپینبو، جگړه پیژ

جاسوسانو په مرسته هغه کوله دافغانستان په خاوره کې دننه داپوزیسیون دنویو غټو اډو دجوړولو له پلانونو نه په خپل وخت خبر شي. هغوی زیاراېسته اّن په یود ځانګړې سیمه کې دمجاهدینو دمشرانو دکوم موقتي ائتلاف په هکله معلومات ترلاسه او په ځو ولایتونو کې دحالاتو د پرمختیا اټکل وکړي.

دبهرنی جاسوسۍ د ادارې له همیشنی ځانګړی دریغ سره سم په کابل کې (زموږ) پوځي قوماندانۍ دهغې له لارې لاس ته راغلې اطلاعات په ډېر احتیاط کارول. دې ادارې ډیر ځله یوازې خپلې ګټې په پام کې ساتلې. دبهرنی جاسوسۍ د ادارې غړو کله کله دخپل پټ دخوندي ساتلو له پاره اّن دمخابرو او هوایي عکسونو له لارې لاس ته راغلې عیني شواهد داسې تحلیلول چې نتیجه یې له هغه څه نه بله راونه خیژي چې په مسکو کې ددوی غټ آمرین پرې باور لري. دشوروی اتحاد د ک. ګ. ب. استازو په داسې حالاتو کې خپل اطلاعات بې له دې چې دځلوېښتم لښکر قوماندانۍ پرې خبره کړي، مسکوته استول.

کله کله به دجاسوسۍ دبیلابیلو ارګانونو ترمنځ دسیالۍ او غیر هماهنګه اقداماتو نتیجه دا راوخته چې موږ به ددښمنانو دکوم کیدونکي او یا راپیل شوي عمل خبر له مسکو نه ترلاسه کاوه. په داسې حالاتو کې به دځلوېښتم لښکر په قوماندانۍ تور لګید: چې له اوضاع نه پوره خبر نه دداو نه پوهیږي چې « تر سونې لاندې » یې څه تیریږي. قاعدتاً، له څه زیات تحلیل او نورو څیړنو وروسته به ثابته شوه چې دشوروی اتحاد د ک. ګ. ب، داستازو اطلاعات که سړي په نرمه

داسې پېښې له بده مرغه ډېرې منځ ته راتللې او د پوځي استخباراتو او د ک.

گ. ب د غړو ترمنځ د اړيکو د خرابېدو سبب گرزېدې.

دستر د رستيز د پوځي استخباراتي ادارې له لارې د لاس ته راغلو معلوماتو يوه غټه ځانگړتيا د هغوی سم والی . د پوځي استخباراتو افسرانو هر د لاس ته راغلي اطلاع بيا بيا آزمېيله او سپينوله د اطلاعاتو د حصول ځانگې . ځانگی او خو پوړيز سيستم چې په کې زرگونه روزل شوي افسران . جاسوسان او اجير مخبران په کار اخته وو ، ددې امکان ورکاوه چې د اطلاع سقم او صحت ډېر ژر روښانه شي .

خو دهغو نورو ادارو حالات چې په کابل کې يې نمايندگي درلودې ، بيخي بل ډول وو . ډېر ځله به يو د کار کوونکي ټول اطلاعات انحصار کړي وو .

د استخباراتي ادارې د غه غړي چې له مخبر سره يې مخامخ تماس درلود ، نه شو کولای د لاس ته راغلو معلوماتو سم والي يا ناسم والي ځان ته روښانه کړي . شک نشته چې د استخباراتي ادارې ځينې رپوټونه چې د مسکو د لويو امرينو د ميزونو په سر ( دکتنی له پاره ) اېښودل کېدل ، له کوم چرسي د ښمن نه له لاس ته راغلو او توبوتو پر ته بل څه نه وو .

وروسته ، وروسته د استخباراتي ادارو غړو په خپل منځ کې د کار ... همآهنگي هم پيل کړ د . تقريباً د ۱۹۸۵ کال له پيله د ځلويښتم لښکر په قرارگ ا کې د هغو د يو کولو له پاره د ځانگړو جلسو جوړول رواج شول . په هغو کې د پوځي

دلوی سفارت استازو برخه اخیسته. لاس ته راغلی معلومات په ګډه یو یو روښانیدل او تحلیلیدل. له دې کار وروسته به پریکړه کیده: په څه شي باور په کار دی او په څه شي نه دی.

داستخباراتی تحلیلوونکو څانګو ګډو هڅو ترډیره حده ددې لاره هواروله چې په خپل وخت د مشرتابه له پاره داجرأ وړ مشورې برابرې کړی شي.

# هوایی ځواکونه

دشوروی اتحاد په ټول تاریخ کې څلویښتم پوځ یوازنی پوځی قطعه دد چې خپل هوایی ځواک یې درلود. داځو راپیاوړی ځواک وچې بیلا بیل ډولونه الوتکې او هیلیکوپترونه په کې راتلل. دهغوله دریونه دوه برخې یرغلیزې الوتکې وې. دڅلویښتم لښکر دهوایی ځواکونو اصلی مرکز په بګرام کی و. دغه راز دکندهار او شینډنډله هوایی ډګرونونه هم پراخه ګټه اخستل کیده (زموږ ۳۰۱ لمبر کوماندوییً فرقی او درې واړو پلو فرقو خپل خپل هیلیکوپترونه درلودل د پنځوسم لمبر هوایی مختلط غنډ هیلیکوپترونو په جلال آباد او کندهار کی له میشتو ۱۶٦ او ۷۰ لمبر مستقلو لواګانو او دغه راز د ضربتی کنډکونو قطعو سرد هوایی مرستی کولې.

پوځی هوایی ځواک ډیر ښه سمبال و. موږ د می – ۲٤ ډوله جنګی هلیکوپترو بیلابیل ډولونه په کافی شمیر درلودل. دهغو ترڅنګ د می ۸ – ت ډوله جنګی – ترانسپورتی او یوازې ترانسپورتی هیلیکوپترونه هم کار اخستل کیده. تقریباً په

راوړل. داډېر ډاډمن او دقوي وسلې درلودونکي هیلیکوپترونه دي دجګړې ییز
توان له پلوه هغوی له اصلي جنګي هیسکوپترونه کم نه دي. ددې هیلیکوپترونو
اصلاح شوي او بشپړ شوي انجن پیلوټانو ته وس ورکاوه، له دوزره کیلوګرامه بار
سره تر پنځو زرو مترو پورې لوړ شي.

پیلوټانو د ښې زده کړې او چمتو والي له امله کولای شوای خپلې دندې په
ډېرو سختو، اقلیمي جغرافیایي او جنګي شرایطو کې ترسره کړي. زموږ دامنیتي
پوستو له دریو برخونه تقریباً دوې برخې پاس په غرونو کې پرتې وې. هغوی ته
دمهماتو، خوړو، اوبو، لیکونو، ورځپانو او نوروشیانو درسولو له پاره موږ
یوازې له هیلیکوپترنه کار اخستلی شو. دځلوېښتم لښکر د هوایي ځواکونو
افسرانو په هر ډول شرایطو کې که به عادي استخباراتي الوتنې وې یا په پنجشیر
کې جګړې ییز عملیات، خپلې دندې په میړانې او مهارت سرته رسولې.

پوځي هوایي ځواکونو، کوماندویان په ډېر مهارت پلې کول قاعدتاً داسې
عملیات دډښمنانو دمتقابلو ډزو په باران کې سرته رسیدل. دځینو پوځي
عملیاتو په وخت کې پیلوټانو دورځې پنځه - شپږ الوتنې کولې او هر ځل به دری،
درې نیم زره مترو، لوړې ته پورته کیدل. البته چې دناستې له پاره به ډګرګوټی نه
و. قطعه به په منډه دشلو - دیرشو ثانیو په ترځ چې هیلیکوپتر به په هواکې
ځوړند او یا به یې یوازې یو ټایر په کومه ډبره ښتی و، کښته کیدله.

دجګړو په وخت کې پیلوټانو له جدي زیات کاروندونو په شو ... دځلوېښتم

مهمات او دارو درمل رسول، تپیان، رنځوران او مړي به یې لیږدول. په افغانستان کې د محدودو پوځي ټولګیو د حضور له هماغه لومړي ورځي داسي امرو چې هیڅ پوځي کـه هسي ټکیدلی وي، زخمي وي یا مړ، باید د جګړې په ډګرکي پرې نه ښودل شي. دوی ټول آن د مړو په ګډون باید ومونډل شي او ولیږدول شي. په افغانستان کی د خپل اوږده ماموریت په ټولو کلونو کی می داسي یوه پیښه په یادنه ده چي مونږ دې سر تیری یا افسر هسي په ډاګ پریښی وي. کله کله داسي هم شوي چي دورکو پوځیانو په لټه پسي موله سره نور عملیات پیل کړی دي.

په ۱۹۸۱ کال کی د فراه ولایت دا نار درې په سیمه کې همداسي پیښه منځ ته راغله. هغه وخت د جګړې په بهیر کې پنځه تنه راڅخه ورک شول. هیڅوک نه پوهیدل چي هغوی چیرې دي. وروسته معلومه شوه چي هغوی د جګړې په وخت له خپل ټولي نه لیرې پاتي شوي وو، دښمنانو په غرونو کی هغوی را ایسار کړی وو، اوږده او درنده جګړه نښتي وه، له پنځو تنو نه څلور وژل شوي او یوازې یوژوندي پاتي شوی و.

څو ساعته مونه شو کولای دا ډله ومومو. دلته ون کار له دې امله هم سخت وچي سر تیرو د مخابرې دستګاه نه درلوده او نه یې شو کولای د مرستي آواز جګ کړي. یوازې هیلیکوپترونو د هغوی پته ولګولی شوه.

مرغه د دغو عملیاتو په ترڅ کې د ود نور سرتیري هم ووژل شول. په جګړه کې هیڅوک له مرګ نه په امان کې نه وي. د جګړې د بیا پیل په وخت کې ښه پوهیدو چې د سرد نور زیان د پیښیدو امکان شته، خو بیا موهم ځان ته حق نه ورکاوه چې آن د خپلو ستیرو مړي په ډاګ پریږدو.

دا پوښتنه په ځای بریښي: آیا په کار وه چې د څو تنو په خاطر بشپړې قطعې د جګړې ډګر ته واستول شي او د مرګ له خطر سره مخامخ کړی شي په بله ژبه، آیا د پسه پوستکي په ایستلو ارزیده؟

هر ټولي یا کنډک چې به د جګړې یوه برخه پای ته ورسوله (نوره جګړه به لا روانه وه) سمدستي به دوګروشمېرنه پیل کیده چې څنګه به د چادورکیدوخبره روښانه شوه مونږ به سمدستي ور اقدامات کول. که چیرې د جنګي عواملو له امله به هغې سیمې ته د بیرته ستنیدو امکانات نه وو چې قعطه ترې همدا اوس - اوس راوتلې وه، عملیات به د یوې لنډې مودې له پاره تمیدل، قطعو په نیول شویو سیمو کې خپلې مورچلې پیاوړې کولې او هغه سیمې به مو دډزو په مرسته له نورو سیمو نه بیلولې چې زمونږ سرتیري یا افسر په کې پاتې شوي و. ددې کار مقصد دا وچې څوک ونه شي کړای د سرتیري مړي (که هغه موجود وي) له ځانه سره یوسي.

مونږ به درې او غرنۍ ترې دوه، درې او کله کله څلور ځله دهوار و ځمکې له لارې بمبارې کولې څو دښمنان له منځه یووړل شي او له خپلو پوځیانو سره مرسته وشي. له دغو بمباریو وروسته به بلو ځواکونو یا کومانډو یانو په جګړه لاس پورې

که چیري مو یو ځل له دغې قاعدې نه سرغړولی وای نو نه مو شوای کولای دمحدودو پوځي قطعو روحیه لوړه کړو. هر څوک چې دجګړې ډګر ته روانیده باید په دې پوه شوی وای چې په سخته شیبه کې په ډاګ نه پرېښودل کیږي او خیانت نه ورسره کیږي، او ملګري یې دخپلو سرونو په بیه هغه راباسي. زما په ګډون ټول په دې خبره پوهیدل. کله چې به «دشنه شپول» ترڅنګ په تیر شوي سړک کې د پرتو پوستو معاینې ته تلم نو پوهیدم چې که په ما او یا زما په زغرده وال ګاړي کومه پېښه راشي نو خامخا به مې دڅغورلوله پاره اقدامات تر سره کیږي؛ مړ یا ژوندی خو به مې خامخا بیرته ستنوي. شک نشته چې دې ټکې دهر افسر او سرتیري په زړه کې د ډاډ احساس منځ ته راوړه.

په همدې اړوند هغه پېښه دیادولو وړ ده چې دڅلوېښتم لښکر دقرارګاه دآمر دګروال واسینین پر سر راغلې وه. موږ دشرایطو په اقتضا مجبور شوو یو افغاني جنرال په پټه په خپل زغرده وال ګاړي کې جبل السراج ته ورسوو. دغه جنرال دننه په ګاړي کې دڅلوونکي شاته ناست و او واسینین د ګاړي له پاسه دهغه په پاسنۍ کړکۍ کې ناست و. دچاریکارو «شنه شپول» ته څیرمه په سړک د تیریدو په وخت کې په دغه ګاړي د ډزو باران جوړ شو. د توغندیو ډزې هم کیدلې. یو توغندی دګاړي دمنځ په کینه برخه داسې ولګید چې په ټوټوټوټې افغاني جنرال سوري سوري شوی و. دهغه ساه ځای په ځای داسې ختلې وه چې آن رپ یې هم نه ؤ وهلی.

کنده کې په ماین ور برابر شو. دچاودنې څپې د ګروال واسینین له ګاډي نه پورته او وړاندې غورځولی و. دګاډي مخابره له کاره ولویده او ل هغه سره تماس پرې شو.

ددې واقعي خبر، څنګ ته دبلې پرتې پوستې له خوا تقریباً لس دقیقې وروسته قرارګاه ته ورسید. سیمې ته دالوتکو په ګډون نورې قطعې سمدستي واستول شوې. کله چې جګړه ختمه شوه واسینین ماته وویل: «کله مې چې لومړی ځل غرهار واوریده او بیا هیلیکوپترونه په هوا کې راښکاره شول، ډاډه شوم چې ژوندی پاتې کیږو.»

یوبل امر هم سخت مراعاتیده، او هغه داوسیدو په سیمو له هوایي بمباریو نه په کلکه ډډه کول و.

لومړی دا چې دهوایي ځواکونو افسران پوهیدل چې په کلیو کې داسې ملکي خلک اوسیږي چې دخپلو کورونو څنګ ته له پیښیدونکو پیښو سره هیڅ اړیکې نه لري، دوهم داچې دکلیو بمباري آن په هغه صورت کې چې به له هغه ځایه پر موږ ډزې وشوې هم، جنایي عمل ګڼل کیده.

په افغانستان کې مونه شو کولای له الوتکو نه ګټه اخستل بیخې بند کړو. پیلوټانو پرله پسې الوتنې کولې او بمونه یې غورځول. داپر دښمن زموږ دزورور او زما په نظر داغیزمنو ګوزارونو یوازنۍ لاره وه چې په عین حال کې یې زموږ له پاره خطر هم کم نه و.

له هوايي بمبارۍ مخکې دځلوېښتم لښکر قوماندانۍ دهغو سيمو حالات چې بايد زموږ هوايي يرغل پرې تر سره شي، په غور سره څېړل قاعدتاً دانسبتاً هغه ورې سيمې وې چې ددښمن ډېر ځواک په کې راټول شوی و.

موږ له هوايي ځواک نه کار اخستلو ته اړ کړی شوی وو. موږ په دې وسيله په شوروي پوځي قطعو او حکومتي چوڼيو دغليمانو ډېر غلونو مخه نيوله.

## دپاکستان په خاوره گوزارونه

دځلوېښتم لښکر قوماندانۍ داسې يوه قاعده جوړه کړې او کلکه يې په پام کې نيولې وه چې دپاکستان په خاورې دهر ډول گوزارونو کول يې قطعاً ممنوع کول. ددې خبرې دليل دا وچې په افغانستان کې دشوروي پوځي حضور په هماغو لومړيو مياشتو کې دپاکستان حکومت په خپلو سرحدي کليو باندې زموږ دعسکرو دډزوله امله اعتراض کړی و.

ددې له پاره چې آن دتصادفي تيري مخه هم ونيول شي دځلوېښتم لښکر دهوايي ځواکونو د هر پيلوټ په کابين کې نقشې وې چې په هغو کې دلسو کيلو مترو په پراختيا سرحدي سيمې نښه شوې وې چې اصلاً پيلوټ ورته دننوتلو اجازه نه درلوده. له څمکې نه دشوروي الوتکو لارښوونه آن دافغان - شوروي ترپولې پورې تعقيبيدله. ځمکنيو مرکزونو دپاکستان خاورې ته دځلوېښتم لښکر دالوتکو دننوتلو دقاعدې څارنه له دې امله هم په کلکه کوله چې څنگه به زموږ الوتکې پولې ته ور نژدې شوې له هغې بلې خوا به سمدستي ښکاري الوتکه په هوا

دساري په توګه: له هوانه هواته ویشتل کېدونکو توغندیو یې تر لسګونو کیلومترو پورې واټن ویشتلی شو. په کابین کې دننه تخنیکي امکاناتو پاکستاني پیلوټانوته داوس ورکاوه چې په هوا کې هرڅه پوره روښانه ویني. سربېره پردې ورته له ځمکې نه هم پرله پسې د هدف په هکله معلومات مخابره کېدی شي. دغه پیلوټې دخپل تخنیک په مرسته کولای شول، بې له دې چې په خپلو سترګو ددښمن الوتکه ویني (د آلاتو په مرسته) هغه د توغندي په مرسته راوغورځوي. دډګروال ا. و. روڅکوي* الوتکه په همدې ترتیب ویشتل شوې وه.

په لومړي سرکې موږ دا ګڼله چې ګني هغه یې له ځمکې نه په «ستینګر» ویشتلې ده، خو په اصل کې هغه دپاکستان دهوایي ځواکونو دښکاري الوتکو له خوا ویشتل شوې وه. موږ له خپل لوري هڅه کوله دپاکستان له وسله والو ځواکونو سره آن دتصادفي مخامخ کیدو مخه هم ونیسو. دغه امر د هوایي ځواکونو په ګډون زموږ دټولو پوځونو له پاره و. مثلاً: توپچي قواوو حق نه درلود پولې ته له پنځلسو کیلومترونه زیات ورنژدې شي. زموږ دتوپونو تخنیکي خصوصیات داسې دي چې له دغې اندازې نه په زیات واټن کې هدف نه شي ویشتلی.

## د آبي خولیو لرونکي پوځیان*

په افغانستان کې زموږ دټولو قطعو دندې خورا درندې وې. هرې فرقې دخپلې

---

سیمی دځانګړتیاوو په پام کی ساتلو سره دوې دندې سرته رسولې: لومړی داچی له خپلی چونی نه تر سړکونو پورې یی د خپل مسؤولیت په ساحه کې پراته تأسیسات محافظه کول؛ دوهم دا چی په جګړه ییزو فعالیتونو کی یی برخه اخسته. دجزوتامونو ټول پرسونل به یوځل جګړې ته نه لیږل کیده. په لومړی ګام کې د کشف، توپچی او استحکام قطعی او دغه راز یو یا دوه پلی غندونه استول کیدل. خو داسی عملیات نه وو چی کوماندویانو دې پکی ګډون نه وی کړی.

په څلویښتم لښکر کی له هماغه لومړی ورځې تر پایه د (ویتیبسک Vi-tebsk) ۱۰۳ لمبر هوایی کوماندویی فرقه، ۳٤٥ لمبر مستقل پاراشوتی کوماندویی غنډ او ٥٦ لمبر هوایی کرماندویی لوا، شامل وو.

له یوه کال نه بل ته دهغو دندو شمیر زیاتیده چی کوماندویانو باید سرته رسولې وای. د اتیا یمی لسیزې په پیل کې له پلیو قطعو سره اوږه په اوږه دکابل دحکومتی تأسیساتو په ساتنه کې د ۱۰۳ لمبر هوایی کوماندویی فرقی جزوتامونو هم برخه اخستله، خو وروسته دمحدودو پوځی ټولګیو قوماندانی اړه شو چی قاعده لږ څه بدله کړی. وروسته دپایتخت دساتنې کار د ۱۰۸ لمبر پلی فرقی په غاړه واچول شو او یو شمیر کوماندویی قطعی دافغانستان لیرې پرتو سیمو ته واستول شوې او هلته ددولتی واکمنۍ دساتنې مسؤولیت ورته وسپارل شو.

دهوایی کوماندویی قطعو دننني جوړښت او جګړه ییز چمتو والی په

هماغو لومړیو شیبونه په حالاتو تسلط موندهاو ترپایه یې نوښت له لاسه نه ورکاوه.

دوسلو دغتیو زیرمو او دشوروي او افغاني پوځي چونیو دپرله پسي تهدیدوونکو مخالفو بانډونو دورکاوي او دافغانستان خلکو ته داړتیاوړ شیانو درسوونکو سړکونو په خلاص ساتلو کې ډیره فعاله ونډه کوماندویانو اخستې ده. کافي به وي که ووایو کوماندویان لومړني شوروي پوځیان وو چې افغانستان ته ننوتل: ۱۰۳ لمبر هوایي کوماندویي فرقه د ۱۹۷۹ کال په دسمبر کې تر ټولو لومړي په پوځي ترانسپورتي الوتکو کې کابل ته واستول شوه او له ټولو وروسته له دغه هیواده ووته.

یوه کوماندویي غنډ دافغانستان دمشرانو دساتنې دنده درلوده. هغه دپایتخت په زړه کې دجمهوري ریاست په مانۍ (ارگ) کې ځای پرځای و.

دڅلوېښتم لښکر قومانداني داتیایمې لسیزې ترنیمایي پورې په ډیرو استثنايي حالاتو کې دهیلیکوپترونو په مرسته دکوماندویانو له پلي کولو نه کار اخسته. وروسته مجبور شو، کوماندویان بیا بیا او په زیات شمیر کې له هوانه (دجگړو سیموته) ولیږدوو. «دآبي خولیو لرونکو پوځیانو» (کوماندویانو) تر ټولو سختې دندې سرته رسولې: هغوی دجگړې دسیمې په ډیر برسر کې، آن ددښمن دڅواکونو په زړد کې له هوانه کښته کیدل.

دکوماندویي قطعاتو بنسټ له ۱۰۳ لمبر هوایي کوماندویي فرقې او ۳۴۵ لمبر

دښودلو وړتيا درلوده. کله کله به د ٥٦ لمبر هوايي کوماندويي لوا له قطعونه هم
چې په گرديز کې ځای پرځای وه، کار اخستل کيده.

د کوماندويي قطعو دبری راز تر ډيره حده په دې کې و چې دې لښکر ته
سرتيری په پوره غور غوره کيدل. مخکې له دې نه چې زلميان په افغانستان کې په
جگړه اخته فرقوته واستول شي (په شوروي کې) به يې شپږ مياشتې ځانگړي
تمرينات سرته رسول. ويتيبسک ته څيرمه په تعليمي مرکز کې به سرتيروته
انداخت، له پاراشوت سره دتوپ وهلو، لاس په لاس جگړې او نورو هغو څيزونو
ښوونه کيده چې له هغو پرته سرتيری نه شي کولای په جگړه کې برخه واخلي.
ځوانو کوماندويانو دښې روزنې په مرسته کولای شوای ډير ژر په حالاتو حاکم
شي او خپلې دندې په ځلانده توگه سرته ورسوي.

د کوماندويي قطعو قوماندانانو دجگړه ييزو عملياتو دطرحې په وخت کې
بنسټيز چمتوالي او د جگړې په ترڅ کې دخپلو مادونانو ښه لارښوونه له ځانه
ښودله. دشوروي اتحاد اتلان پاول سرگيوويچ گراچف*، البرت سليوسار او دغه
راز والیري واستروتين، ايوان ريابچنکو او واليري ايفينوويچ ددغو کسانو په ډله
کې دی. کوماندويانو تل په غوښه توگه عمل کاوه او بری يې لاس ته راووړ.

## دروغتيايي چارو کارکوونکي تولو په نامه پيژندل

دځلويښتم لښکر روغتيايي کارکوونکو دافغانستان په جگړه کې زياته
تجربه ترلاسه کړه. افغانستان ته دلښکرو دليږلو له وخته بيا ترهغې شيبې پورې

دژغوولو او هغوی ته د روغتیا د بیا ورستنولو له پاره غټ خدمتونه کړي دي.

په افغانستان کې څلویښتم لښکر څو پوځي روغتونونه درلودل. مرکزي روغتون په کابل کې جوړ شو. پوځي روغتیایي کارکوونکي ورته د ۱۹۸۰ کال د فبرورۍ په پای کې د لیننگراد له پوځي حوزې نه راوغوښتل شول. په سر کې روغتیایي پرسونل کابل ته څېرمه په کیږدیو کې ژوند کاوه. همدلته رنځوران عملیات کېدل. څو اوونۍ وروسته افغانانو زموږ له پاره یوه ودانۍ وزګاره کړه (دا د مرکزي قواوو د پخواني روغتون ودانۍ وه- د.ج) او روغتون همدلته د ښار مرکز ته ولیږدول شو.

سربېره پردې نسبتاً نور غټ روغتونونه په کندهار، پلخمرۍ، د کندز په ۲۰۱ لمبر پلي فرقې او شینډنډ کې هم پرانیستل شوي وو. وروسته بیا د څلویښتم لښکر د قوماندانۍ له خوا په دغو ښارونو او جلال آباد کې د ساري ناروغیو روغتونونه هم منځ ته راغلل.

د روغتیایي خدمتونو د کارکوونکو په غټه شبکه کې د روغتیایي کنډکونو او د قطعاتو د روغتیایي چارو د ټولیو پرسونل هم راته، چې لومړنۍ مرستې د همدوی له خوا سرته رسیدلې.

زموږ طبي پرسونل هغه د چا خبره خلک له سختو ټپونو او رنځونو وروسته له هغې نړۍ نه بیرته را ستنول.

د پوځي ډاکترانو لومړنۍ ستره آزموینه هله وه چې د «زېړي» ناروغۍ

کړای په وقایوي تدابیرو سره ددغي ناروغۍ دخپریدو مخه چې په جنوب ختیځې آسیا کې ډیره معموله ده، ونیسو، وچ اقلیم، سختې تودوخې، دڅښاک داوبو کموالي او دقطعو دصحرایي ژوندانه شرایطو له ساري ناروغیو سره مبارزه گرانو له «د زیړي» رنځ له اشرارونه سخته دښمني له موږ سره را اخستي وه.

دساري په توگه د ۱۹۸۱ کال په اکتوبر، نوامبر او دسامبر کې دشینډنډ په پنځم لمبر پلي فرقه کې چې قوماندانې یې زما په غاړه وه، په یوه وخت له دریو زرو زیات کسان په «زیړي» اخته شول. له ماسره یوځای له یوه تن پرته زما ټول مرستیالان چې دځینو حالت په کې بیخي خراب و، روغتون ته ولیږدیدل. دغنډونو له قومانداانانو نه دوه جوړ پاتې وو، دځلورونو رو سر روغتون ته ووت. په دې توگه زموږ فرقه دغه وخت په سخت حالت کې راگیر شوې وه.

په راتلونکو کلونو کې هم زیړي او هم دمحرقي ناروغۍ راخرگندیدې خومقیاس یې دلومړیو وختو په شان گواښوونکی نه و، خو بیا هم دمحدودو پوځي ټولگیو زیاتو سرتیرو او افسرانو دغه ناروغۍ تیرې کړې دي. پوځي ډاکترانو په دې حالت کې خپل لوړ مهارت وښوده. له ناروغانو سره مناسبه مرسته کیده. دوخت په تیریدو سره له شوروي نه مخصوصه دستگاه، لابراتواري سامان آلات او دتشخیص وسایل راوړل شول.

په افغانستان کې دشوروي محدودو ټولگیو دپوځي ډاکترانو په منځ کې دپوهانو او په دې ډله کې ،دعلومو ډاکتري،

په څلويښتم لښکرکې دروغتيايي کارکوونکو ښه ساتنه کيده او ټولو ورسره مينه درلوده. ډيرو هغوی په نامه پيژندل. دساري په توگه: د پوځي جراح ډگروال اندري ليوفينگ دطلايي لاسونو په هکله هره خوا نکلونه کيدل. هغه ډيره موده په کابل کې دمرکزي روغتون مشرو. دهغه په وخت کې دافغانستان په جگړه ييزو شرايطوکې دجراحۍ فن خپل اوج ته ورسيده. پوځي جراح ډگروال يوري نيميتين هم دډيرو سرتيرو او افسرانو ژوند ژغورلی دی. ددغه شان وگړو شمير کم نه و. فکرنه کوم چې هغوی په افغانستان کې دخدمت له پاره خاص غوره شوي وو. داسي نه وه. پخپله اردوته دجذب سيستم ددې امکان ورکاوه چې دې لورته واقعي کارپوهان رامات کړي شي.

دنهو کالو جگړې په ترڅ کې پوځي طبيبانو شته منه تجربه راټوله کړه. په تيرد نيمه پيړۍ کې د شوروي پوځونو دگډون له پلوه دافغانستان جگړه ترټولو ستر د گڼيل کيږي. تر ۱۹۷۹ کاله پورې هم شوروي پوځيانو دمصر، سوريې او د «دريمې نړۍ» په نورو هيوادو کې په سيمه ييزو جگړو کې برخه اخستې وه، خو هلته ددوی دنده يوازې پوځي سلاکاري وه. که کله شوروي مشرانو دخپلو منظمو لښکرو دجنگولو پريکړه هم کړې نو زيار ايستل شوی چې د گډون کوونکي پرسونل شمير يې تر ممکنه ځايه کم وي.

دالومړی ځل و چې له دوهمې نړيوالې جگړې وروسته مجبور شو ... بشپړ ... يو

یوځای دجگړو ډگرته تلل، له ځانه ډیره میړانه ښودلې ده. دغتهو جنگی عملیاتو په وخت کې نور طبی پرسونل او دجراحانو او پراتیفی ډلې هم دهغو مرستی ته استول کیدې. دجراحی صحرایی روغتون دجگړې له ډگرنه ایله څو کیلو متره لیری پرانیستل کیده.

دافغانستان دجگړې په موده کې له پنځوسو زرو زیات کسان په بیلا بیلو اندازو ټپیان شوی دی. پوځی پرسونل او نرسانو دټپیانو څنگ ته خپل ټول وخت تیراوه څو دهغوی پالنه وشی او بیرته په پښو ودریږی.

دروغتیایی چارو کار کوونکو دیوې ډیری سختی دندی په اجرا کې مخامخ گډون کاوه او هغه دجگړې له ډگرنه دټپیانو راایستل وو. په جگړه اخته ډلگی، ټولی، کنډک یا فرقی ته چی به په هره بیه تمامیده او هر چیرې چی به لازمه وه، په غرونو، شنو شپولونو او یا هسی دلارې په اوږدو کې مجبور وو دخپلو ټپیانو لټه وکړی او حق یی نه درلود یو افسر یا سرتیری هلته پریږدی. په ډیرو دغسی حالاتو کې ټپیانو سملاسی طبی مرستوته اړتیا پیدا کوله، اوتل به دپوځی ډاکترانو لاس دمرستی له پاره ورغځیدلی و.

## جگړې ته دقرارداد له مخی تگ

دمحدودو پوځی تولگیو په روغتیایی مؤسسو کې پر پوځی ډاکترانو برسیره، دشوروی اردو یو شمیر کارگرانو او کارکوونکو هم دندد سر ته رسوله. په افغانستان کې دهغوی ټول شمیر لهاتو زره تنونه اوښته. دا عمدتاً ښځی وی،

افغانستان ته هغوی ټولې په خپله خوښه د پوځي کميسارېو (دمکلفيت دمديريتونو) له لارې استول کيدی. قاعدتاً داسې دخپلې خوښې اجير کسان مخکې له مخکې پوهيدل چې دکومو کارونو له پاره افغانستان ته استول کيږي. هغوی په ځان تيريدنې سره خپلې ښې ځانګړتياوې څرګندولې. داخبره مې اړباسي چې يوځل بيا د زړه له کومې له هغوی نه منننه وکړم. هغوی هم دنورو په څير شپه او ورځ نوکريوالې کولې او يا دتېپيانو دبالښت ترڅنګ له استراحت پرته دهغو دپالنې له پاره کيناستلې. دغو کسانو تروسه وسه ځان خپل خپل کارته وقف کړی او هڅه يې کوله زمونږ له سرتيرو او افسرانو سره مرسته وکړي.

افغانستان ته دراغلو ښځو زياتې برخې په قطعاتو کې دټايپستانو، دتلفون دسوچبورد دکارکوونکو، او نورو په توګه کارونه سرته رسول.

په افغانستان کې شوروي محدودو پوځونوتل دسفربرۍ په حالت کې صحرايي ژوند درلوده. دشوروي نه راغلې سرتيري او افسران مجبور وو له خپلو کورنيو نه ليرې دوه کاله په کيږديو او يا موقتي کوډلو کې تير کړي داسې شرايط آن که جګړه هم نه وي، په خپله ډير ګران کار دی. شک نه شته چې په داسې حالاتو کې ښځوته يوازې له دې امله نه چې ټاکلې پوځي دندې سرته رسوي، په درنده سترګه کتل کيږي.

دجګړې په بهير کې ژوندانه خپل رنګ نه بايلو ده. ښکاره ده چې ډيرې ښځې افغانستان ته يوازې ددې له پاره نه تللې چې «دبهرنۍ سوداګرۍ» په مؤسسو ک

له پاره څه پیسې ذخیره کړي. ځینو ښایي غوښتل هلته دځان له پاره ملګرې، مېړه یا هسې دکورنۍ سرپرست ومومي. هغوی خپل داتمایل په ښکاره څرګنداوه هم.

په څلویښتم لښکر کې په تیره بیا دځوانو افسرانو په منځ کې دمجردانو شمیر خورا زیات و. ځینویې په افغانستان کې ودونه وکړل. دواده رسمي سندونه هم په قطعاتو او هم په شوروي قونسلګرۍ کې ثبت شول. زما په نظر په دې خبره کې هیڅ کوم بد شی وجود نه لري. دجګړې له ختم وروسته مې بیا (په شوروي کې) داسې افسران ولیدل چې هماغلته یې دځان له پاره ناوې موندلې وې. هغوی ښې او خوشحاله کورنۍ لري.

یو کم شمیر داسې ښځې هم وې چې سپک سپک کارونه به یې کول. داسې وخت به هم راغی چې افسر به په خپل هیواد کې ښځه او بچیان پریښودل او دلته له راغلې (وطن پالې) سره به یې چې مور پرې دغه نوم ایښی و، واده وکړ.

ښکاره ده چې په دې کار کې یوازې ښځې پړې نه شي ګڼل کیدی. دلته باید هغو نارینه وو ته هم ګوته ونیول شي چې له دغو ښځو سره یې تار زغلولی و. دغسې اړیکې له دوه اړخیز تمایل نه وروسته منځ ته راتللې. زما په نظر دهغو دټولو دولونو ردول بې مانا بریښي. هیڅوک حق نه لري دافسر په شخصي ژوندانه کې ګوتې ووهي. ولې زړه مې په هغو خوارانو خوږیده چې دهسې یوه مؤقتي اوډیر شکمن خوند له پاره یې خپل خوږ ژوند او کورنۍ دړې وړې کوله. له بده مرغه داسې کارونه هم ترسره شوي دي.

# اسیران

د ۱۹۸۹ کال په فبروري کې له افغانستان نه د شوروي پوځونو د ایستلو کار بشپړ شو. سرتیرو او افسرانو له دې امله خوښي کوله چې بالاخره (دهغوی له پاره) جګړه پای ته ورسیده. خو داخبره بیخي سمه نه بریښي. دغه جګړه اوس هم د ځلویښتم لښکر دهغو پوځیانو له پاره چې په بیلا بیلو وختو کې یې د خپلو قطعاتو له لست نه نوم وهل شوي، روانه ده. دهغو شمیر ۳۱۵ تنه و* زموږ رسمي پروپاګند هغوی په حساب کې نه نیول ځکه یا اسیران وو او یا تری تم شوي وو.

اوس ګرانه ده چې سړی په افغانستان کې پاتې شوي عسکر د فراریانو یا اسیرانو په دوو ډلو وویشي. دهغو ډیرو جنګي اسیرانو د برخلیک په هکله چې د مجاهدینو په لاس اسیر دي، موږ اوس هم پوره معلومات نه لرو. له ځینو کمو استثناء ګانو پرته، تر اوسه نه ده معلومه چې ځوک په خپله خوښه مجاهدینو ته ورا وښتي او ځوک د حالاتو په تقاضا اسیر شوي دي.

زما په فکر نن ورځ د دغسي یوې لیکې ایستل دومره ارزښت نه لري. لومړي داخلاقي د لایلو له امله د دغه کار کول غوره نه بریښي. په افغانستا کې د جګړې داور په بلولو کې خوځه سرتیري او افسران ملامت نه دي. ځلویښتم لښکر په خپله

---

* دلته راوړل شوي ارقام د ۱۹۹۳ کال تر مارچه پورې لاس ته راغلي دي. دهغو له مخې ۳۱۵ تنه تری تم شوي ګڼل کیدل: له دې ډلې نه ۱۵ تنه راستانه شول، ۳ وژل شوي او دریو نورو هیوادته له

خوښه افغانستان ته نه دي ننه وتي او جنګي اسیران په واقع کې د شوروي
د پخواني مشرتابه د پریکړو قربانیان دي. دولت خپل وګړي په لوی لاس
د بلاخولې ته واستول. هغوی په جګړې کې سخت کړاوونه وګالل. دا د هغو ۱۹
کلنو سرتیرو ګناه نه، بلکه بدمرغي وه چې نه یې شو کولای داکړاوونه وزغمي.

دوهم داچې له هر جنګي اسیر نه دلته په هیواد کې کورنۍ پاتې شوې ده.
هغوی ته د پخوا په څیر مور او پلار، خپلوان او ملګري سترګې په لاره دي. د دغو
خلکو اکثریت لاتراوسه نه پوهیږي، چې زوی یا وراره، پلار یا ورور یې په څه علت
په بند کیوتی دي. خپلوان یې داګڼي چې هغوی په خپله خوښه نه، بلکه د حالاتو
د ناوړه بهیر په ترڅ کې په هغه بل لوري کې څرګند شوي دي. له بده مرغه داسې
پیښې رښتیا هم وې چې پوځي خپلو ملګروته خیانت کړی او مجاهدینوته
وراووښتي دي. زیاته دردوونکې داخبره ده چې د دغسې کسانو په منځ کې یوکم
شمیر افسران هم وو. فکر کوم اړتیا به نه وي چې د ځینو پیښو ټول جزئیات دلته
بیان شي. نه ښایي چې د غمونو تربار لاندې د کړو شویو کورنیو په زخمونو بیا
مالګې وشیندو او ورته ووایو چې د هغوی پلار یا زوی پخپله خوښه له دښمن سره
یوځای شوي دي. په عمومي توګه هیڅ مور نه غواړي چې زوی یې خائن سترشي.

د ځلویښتم لښکر د پوځیانو تیښته یا اسیر کیدل، مورږ سختې فوق العاده
پیښې ګڼلې. په داسې حالاتو کې لښکر او قطعاتو قوماندانان تر سختې او آن
تر بیرحمې پوښتنې لاندې راتلل.

دې پلټنه کې پر پوځيانو سربيره د ښارنوالۍ مستنطقينو او د پوځي جاسوسۍ ضد اداري کارکوونکو هم برخه اخستله. مورږ تېنګار کاوه چې له پوځيانو سره دې اوږه په اوږه د شوروي اتحاد دلوی سفارت، ک. ګ. ب او کورنيو چارو وزارت استازی او د غه راز د افغانستان دخاد، ښارندوی او اردو کارکوونکي هم مرسته وکړي. د شوروي محدود و قطعو د هر پوځي د تری تم کيدو له پاره دغسې مختلطې ډلې منځ ته راتللي.

د ځلوېښتم لښکر قوماندانۍ نه شو کولای هر ځل د دې خبرې علت ځان ته معلوم کړي چې ولې زموږ پوځي د دښمن په لاس کيوتي دي. نن ورځ هم د دې خبرې روښانول ډېر ګران دي. د دې کار له پاره لازمه ده چې سړی له هر هغه چا سره چې په افغانستان کې پاتې شوي دي، په جلا جلا تو ګه وګوري.

خو د تحقيقاتو نتيجې ښيي چې عمدتاً داسې پيښې د جګړه ييزو عملياتو د سرته رسيدو په وخت کې منځ ته راتلې. ډير ځله به پوځيان د بې خودۍ په حالت کې، چې يا به د زخم او يا د سختې ضربې نتيجه وه، د دښمن په لاس کيوتل.

ډير ځله ځوان سرتيري د خپلې بې احتياطۍ په وجه اسير کيدل. مثلاً: د چا زړه شوي چې صحرا ته تير شي (حاجت رفع کړي) خو دا کار په هغه ځای کې چې قوماندان په ګوته کړی او پهره پرې ولاړه ده، نه کوي او لږ څه وړاندې تير يږي. سرتيری ډول ډول وو او ځيني يې ډير شر مګير وو.

ډيرو نورو کسانو خپله آزادي هله له لاسه ورکوله چې د شخصي ګټې له پاره به

یا یی له کارتو سوړ ک فلزي صندوق له تخرګ لاندې نیولی او یا یی څه پوره، اوړه یا دارو - درمل غلا کړي او غواړي هغه په کلي کې په چا وپلوري. هغه دشخصي انتفاع له پاره کلي ته ورته خوبیر ته نه راستنیده.

ډیرکم داسي پوځیان هم وو چي له پوره سنجش نه وروسته په خپله خوښه ددښمن خوا ته وراووښتل. دغسي کسانو هڅه کوله په چټکۍ ځان پاکستان ته ورسوي او دخپلو پخوا نیوملګرو له سترګو نه ځان ونغاړي. شک نه لرم چي دغه کسان دښمن ته ځکه وراووښتل چي نه یی غوښتل و جنګیږي او که په دقیقه توګه ووایم له جګړې نه ډاریدل.

دافسرانو او سرتیرو غوڅ اکثریت له اسارت نه دانسانانو په توګه ډاریدل. لومړی له دې امله چي زیات اسیران، یا په خپله خوښه تسلیم شوي شوروي سرتیري ددښمنانو له خوا له منځه وړل کیدل. دوهم له دې امله چي ټول پوهیدل دغلیم په لاس کیوتي شوروي پوځي دباندونو په کمپونو کې له څه تر ټنو او شکنجو سره مخامخ کیږي. په ۱۹۸۵ کال کې چي کله موږ دپنجشیر په دره کي داحمدشاه مسعود زندان ونیوه، معلومه شوه چي هغه په خپلو اسیرانو څه کړاوونه نه دي راوستي. ټول هغه شیان او هغه صحني دتلویزیوني کمري په مرسته عکاسي شوي دي. دا کوچني ویدیویي فلم مو تکثیر او په ټولو قطعو کې ننداري ته وړاندې کړ.

سربیره پر دې دهر پوځي دورکیدو یا اسیر کیدو خبر خامخا دشفري

غورونو ته رسول کیده. که چیرې مو دا کارنه وای کړی نو د اسیرانو شمیر بلاله دې نه څو ځله زیات وای.

موږ له اسارت نه دخپلو سرتیرو او افسرانو دخلاصون له پاره پوره هڅې کړې دی. له دې کارنه عاجله نتیجه لاس ته راتلل آسانه نه وه. دلښکر قوماندانی دپوځی استخباراتی سیستم او دجاسوسی ضد اداری له لارې او دغه راز په پاکستان، ایران او چین کې دخپلو مرستندویانو له لارې داپوزسیون له قوماندانانو سره لاره پیدا کوله.

دخپلو اسیرانو دخلاصون له پاره دهڅو په وخت کی مو حق نه درلود دمخالفینو په وړاندې له زورنه کار واخلو. جگړه ییزو عملیاتو یا هوایی اوځمکنیو گوزارونو نورهم زموږ دپوځیانو دریغ خراباوه، او دهغوی پر ژوند دلوبو کولو حق موږ ځان ته نه ورکاوه.

په افغانستان کې دشوروی پوځی قوماندانی دهڅو په نتیجه کی ۹۸ تنه بیرته خپلو قطعو ته راستانه کړی شول. دا کار عمدتاً له دې امله ممکن شو چې دغه پوځیان دکوچنیو باندونو په لاس کیوتی وو، چې هم یی مستقل فعالیت درلود او هم یې دهیواد په عمومی ډگر کی ونډه دومره دپاملرنې وړنه وه. دغو نسبتاً دټیټې کچې قوماندانانو په خپل صلاحیت کولی شول دیوې لنډې مودې له پاره له شوروی پوځی قوماندانی سره اړیکی ټینگی کړی.

غالباً موږ دخیل اسیر شوی افسر یا سرتیری دخلاصون په بدل کی

وړاندیز کاوه. په دې باب خبرو ډېر ځله زیات وخت نیوه. کله کله به یوه یا دوه میاشتې او کله کله یو کال په هغو تیریده؛ خو له دې سره سره مو کولای شوی د نظرونو پریکړو ته ورسیږو. په دې توګه د وروستی یو نیم کال په ترڅ کې چې زه د څلوېښتم لښکر قوماندان وم، په سلګونو اسیر شوی پوځیان موله بنده راخلاص کړل.

اسارت د هر سرتیري له پاره ډېره سخته آزموینه وه، او یوازې د هغوی خپلوان نه دي چې د هغو د خلاصون بهیر په دقت تعقیبوی. ټول هغه څوک د دوی د برخلیک له امله اندیښنه لري چې په افغانستان کې یې د جګړې خوند څکلی دی.

اوس د اخبره هم جوته شوې ده چې د څلوېښتم لښکر یو شمیر پخوانیو منسوبینو پریکړه کړې چې بیخي هیواد ته راستانه نه شي. ددې خبری یو دلیل سخت ایدیالوژیکی پروپاګند دی. له بلې خوا هغوی ته د اسلامی هیوادونو لکه افغانستان، پاکستان یا ایران له «غیرېږی» او د اسیرانو له کمپونو نه ترخلاصون وروسته په کانادا، امریکی، فرانسی یا نورو هیوادونو کې د اوسیدو اجازه ورکړل شوې ده. هغوی هلته څه موده ژوند کړی او ځینو یې ودونه هم کړی دی. ددې له پاره چې د دغو کسانو د اعمالو په اصلی انګیزو سرې و پوهیږی، په کار ده چې د یوه سرتیري په توګه ټول هغه څه وزغمی چې مخکی څو میاشتې په دوی تیر شوی دی. زما په فکر په دې خبره باید پر پوځیانو نیوه کې و نه شي، څکه هر سړی

دلایل شته چې سرې حکم وکړی چې له دغی ډلی نه ترسلو زیات کسان وژل شوی او یا وروسته د تېښتو او یا وهلو ټکولو له امله مړه شوی دی. ایله اوس د پاکستان په خاوره کې د ننه د بډابیر ګ (ښایی بډ بیره وی) د پوځی اسیرانو د کمپ له رازونو نه لږ تر لږه پرده پورته شوې ده. زموږ اسیرو سرتیرو په دغه ځای کې قیام کړی و. هغوی د شوروی سرتیری د یرې ښې ځانګړتیاوی لکه غیرت، اتلولی او زغم له ځانه ښودلی دی. سره له دې چې پوره موثق دلایل لا لاس ته نه دی راغلی، خو د هغو یو شمیر کمو اطلاعاتو له مخې چې حاصل شوی، کیدی شی نتیجه واخستل شی چې د څلویښتم لښکر پوځیانو د هیواد په نورو سیمو کې هم اسارت ته غاړه نه ده ایښې.

اوس چې له افغانستان نه د شوروی عسکرو د وتلو څومره زیاته موده تیریږی، هومره له بندنه زموږ د سرتیرو د خلاصون خبره ګرانیږی. له بده مرغه هغه فرصت چې کولای موشوای د جنګی اسیرانو لانجه په خورا اغیزمنه توګه غوڅه کړو، له لاسه وتلی دی.

د څلویښتم لښکر قوماندانی او د شوروی اتحاد د دفاع وزارت مشرتابه ټینګار کاوه چې خامخا دې د ژنیو په تړون کی د شوروی جنګی اسیرانو خبره یاده شی. پوځیانو د ګرباچف په ګډون د هیواد مشرانو بیا بیا داویل چې که یوځلی شوروی محدودو پوځی ټولګی د افغانستان له خاورې ووځی نو بیا د جنګی اسیرانو

موږ له اخلاقي پلوه حق نه درلود دخپلو اسیرانو دخلاصون او یا لږ تر لږه دهغو دبرخلیک دروښانولو تروختنه له افغانستان نه ووځو. ځکه له هیچانه پټ نه وه چې همهغه وخت چې څلویښتم لښکر په افغانستان کې و او هم اوس موږ، دخپلو څه دپاسه ۲۵۰ تری تم شویو پوځیانو په هکله هیڅ معلومات نه لرو. موږ نه پوهیږو چې هغوی ژوندي دي او که نه، او چیرې اوسیږي. دا چې دقطعو له لست نه دجنګي اسیرانو یا تری تم شویو ګروپونو اوس ایستل شوي، ددې مانا نه لري چې هغوی نور دخپل هیواد تابعیت نه لري او دهغه دولت ملاتړیې له لاسه ورکړي چې دوی یې جګړې ته استولي وو.

دافغانستان دلانجې دغوڅولو په هکله دژنیو تړونونو چې په تیارولو کې یې دشوروي اتحاد د بهرنیو چارو وزارت مخامخ ونډه درلوده، له مخکې زموږ دجنګي اسیرانو برخلیک روښانه کړی و. دڅلویښتم لښکر څه دپاسه درې سوه منسوبین عملاً دهغه وخت دشوروي او داوسني وخت دروسیې دولت دبهرني سیاست دګټو له ساحې نه بهر پاتې شول. دهغو دخلاصون خبره تریوې نامعلومې مودې پورې شاته وغورځول شوه.

دافغانستان دځړوپړ و حالاتو په پام کې نیولو سره خپل هیواد ته زموږ دپوځي اسیرانو دراستنیدو خبره لانوره هم ګرانه ښکاري.

تقریباً (دافغانستان) هر تنظیم چې دکابل رژیم خلاف جنګیدلی، زیات یا کم دڅلویښتم لښکر منسوبین په اسارت کې لري. نن ورځ له دغو کسانو نه زیات

پوځي اسيران په مرگ گواښويي او د روسيې حکومت ته يې د اولتيماتوم په بڼه غوښتنې وړاندې کړې دي. نن ورځ د څه د پاسه يوسل او شپږ شپږ زره ايز بیا شوروي ...

غوښتنې وړاندې کړې دي. نن ورځ دځه د پاسه يوسل او څلويښتو روسي زلميانو ، دشپيتو اوکرايني ، دير شو اوزبکو ، لسو بلاروسانو او دغه راز دنورو مليتونو دپوځي منسوبينو ژوند (په افغانستان) کې له خطر سره مخامخ دی.

## دافغانستان په «وژنتون» کې

سرتيری دڅلويښتم لښکر له پاره هم لکه دوسڼه وال پوځ دنورو برخو په څير دمکلفيت دمديريتونو له خوا غوره کيدل. په پيل کې د دغه لښکر دمنسوبينو په منځ کې چې تقريباً دشوروی اتحاد له سراسرنه راټول شوي وو ، دمنځنۍ آسيا په جمهوريتونو کې دزيږيدلو وگړو شمير زيات و. فکر کيده چې هغوی به دافغانستان په سختو شرايطو کې له خدمت سره ښه توافق ومومي. کله چې په ۱۹۸۱ کال کې دپنځمې فرقې قوماندانی ماته راوسپارل شوه نو دهغې دمنسوبينو له نيمايي نه زيات تاجکان، ازبکان قرغزان يا ترکمنان وو.

خو ډير ژر په دې پوه شوو چې دمحدودو پوځي قطعاتو دغنډونو ، لواگانو او فرقو د سرتيرو دغسې ترکيب بې لرليده کار دی. دشوروی اتحاد دمنځنۍ آسيا له جمهوريتونه راټولو شويو سرتيرو دزياتو عيني دلايلو په وجه نه شو کولای چې په هغو پوري تړل شوې هيلې ثمرته ورسوي. په خپل وار مجاهدينو په بری سره دهمدغو کسانو په مرسته دجاسوسۍ شبکې جوړولې هغوی دير ځله نه يوازې په قطعاتو کې له جالاتو نه ځان [illegible]

افسران له دې حقیقت سره مخامخ شول چې له منځنۍ آسیا نه راغلو سرتیرو په ښکاره په جګړو کې له ګډون نه سرغړاوه. سربیره پر دې له دغې سیمې نه دراتلونکو شویو سرتیرو دجګړه ییزې وړتیا سطحه دهغه چا په انډول چې مثلاً دهیواد له اروپایي برخې او یا شمالي قفقاز نه راوستل شوي وو، ډیره ټیټه وه.

دمحدودو پوځي قطعاتو قوماندانی اړشوه چې ددغې وضعې دبدلون له پاره عاجل اقدامات وکړي د ۱۹۸۲ کال له پیل نه دځلو ییښتم لښکر دسرتیرو په سلوکې اتیا برخه هغه کسان وو چې دشوروی اتحاد له اروپایي خاوري، سایبریا یالیري ختیځ نه افغانستان ته استول کیدل. له دې وروسته حالاتو عادي بڼه غوره کړه او چاري سمې شوې.

ځوانو سرتیرو چې افغانستان ته داستولو لپاره به کاندید شوي وو، په تعلیمي مرکزونو کې شپږ میاشتنۍ زده کړې کولې. دغه مرکزونه عمدتاً دترکستان په پوځي حوزه کې جوړ شوي وو. په دغو تعلیمي مرکزونو کې دژوندانه شرایط تر ډیرې اندازې دجګړې ډګر ته ورته وو. دوګړو دروزنې یو شمیر مرکزونه په نورو پوځي حوزو کې هم پرانیستي وو.

زده کړې په شدت سره پرمخ بیول کیدې. سرتیرو له وسلونه کار اخستنه، دقطعو په چوکاټ کې فعالیت او له سیمې سره دآشنایي لارې چارې زده کولې. یوازې له دغو شپږ میاشتنیو تمریناتو وروسته سرتیري افغانستان ته لیږل کیدل. دنویو سرتیرو جلب او احضار په کال کې دوه ځل؛ یعنې پسرلي او منې کې ترسره

له ځلوېښتم لښکر نه د کور خواته ونه لیږل شي. دود داسې وچې هغوی به یوه یا دوه اوونۍ او کله کله آن یوه میاشت «نوکیانو» او هغو وګړوته چې ددوی پرځای باید ډګرته ووځي، خپلې تجربې ورلیږدولې. ترخیصي سرتیرو نویو جلب شویو افرادوته په تیره بیا دافغانستان له شرایطو سره دبلدتیا چلونه وربښودل. په دې لړکې نه یوازې جګړه ییز مهارتونه، بلکه هسې دورځنی ژوند لارې چارې هم راتللې.

دافغانستان په خاوره کې له «نوکیانو» سره دافسرانو یو میاشتنی تمرین دا امکانات برابرول چې نوی سرتیری دراتلونکو جګړو ځانګړتیاوې او دمحدودو پوځی قطعاتو دژوند طرز زده کړی او دغه راز دهیواد دسیمه ییزو خلکو په هکله معلومات تر لاسه کړی.

په دې توګه هغوی اووه میاشتې تمرین کاوه او وروسته بیا دځلوېښتم لښکر لیکوته ورګډیدل. ددغې دورې دزیاتو لواړتیا نه لیدل کیده. ددغې مودې په ترڅ کې سرتیرو او وړو ضابطانو کافي مهارتونه زده کړل. هغوی کولای شوای دجګړې په شرایطو کې په زړورتیا عمل وکړی او خپلې روغتیا ته هم پام وساتي. ددې تکې په پام کې ساتلو سره چې دسرتیرو دخدمت موده ایله دوه کاله وه نو دتمرین دغه موده مناسبه بریښیده.

سربیره پردې دهرې جګړې له پیل مخکې مور څه وخت ددې له پاره ځانګړی کاوه چې هره قطعه په دقیقه توګه د راتلونکې جګړې له پاره چمتو کړی شي.

تمرین کاوه چی معمولاً دجګړې په ډګرکې منځ ته راځي.

د نهو کالو په ترڅ کې څه دپاسه نیم ملیون سرتیرو او افسرانو دمحدودو پوځي قطعاتو په چوکاټ کې دنده سر ته رسولې ده. دځلویښتم لښکر د منسوبینو ټولنیز ترکیب تقریباً په دغه ټوله موده کې یو ډول پاتې شوی دی. عمدتاً افغانستان ته دلیږل شویو سرتیرو زیاته برخه دکارګرو او بزګرو بچیان وو. دوی دځلویښتم لښکر د منسوبینو اکثریت جوړاوه او د کلیوالو شمیر په کې لږ څه زیات.

په څلویښتم لښکر کې دهغو سرتیرو شمیر بیخي کم وکړ چې په روښانفکرو کورنیو کې ستر شوي وو. هغوی هم بده جګړه نه کوله. په عمومي توګه افسرانو له هغوی نه ګیله نه ده کړې.

که څه هم په څلویښتم لښکر کې کومه خاصه پلټنه په دې هکله نه ده شوې، خو زه دخپلې تجربې له مخې ویلی شم چې افغانستان ته ډیر کم هغه کسان لیږل کیدل چې مور یا پلار یې په غټو دولتي څوکیو کار کاوه. که چیرې داسې کسان وو هم، نو به په عمومي قاعده کې یو استثنا وو او بس. خو بیا هم دښاري یا ولایتي ګوندي کمیټو د لومړیو منشیانو زامن هم افغانستان ته لیږل شوي، خو دهغوی شمیر ډیر کم و. مثلاً: ترکومه چې ما ته معلومه ده له ګرودنو او آستراخان نه (دغسې کسان راغلي وو) ښایي دهیواد له کومې بلې برخې نه هم ورته مثالونه موجود وي.

هغه به یې کوله داسې لارې چارې ومومي چې دغه هیواد ته یې د زوی استول عملي نه شي. زه نه شم کولای هغوی له دې امله پړ کړم، ځکه د هرې مور او هر پلار په ختهٔ کې د خپل بچي د ساتنې احساس اخښلی وي. د هیچا زړه نه کیده، خپل بچی، چې ځینو همدا یو بچی هم درلود، د افغانستان «وژنتون» ته واستوی. څوک په خپل دې مقصد بریالي کیده او څوک نه. ډیر والدین یوازې هغه وخت چې زوی به یې راستون شو، خبریدل چې هغه په افغانستان کې جنګیدلی دی. تر دغه وخته به هغوی ته د زامنو لیکونه رارسیدل چې په کې ویل شوي به وو، هغوی ګنې په چکسلواکیا یا جرمني یا منګولیا کې خدمت کوي.

تر کومه ځایه چې د افسرانو خبره ده نو کولای شم د هغوی یو د کوچنۍ ډله په ځینو برخو کې ملامته وبولم. د ځینو ناپاکو غښتو قوماندانانو چې به له چانه بد راتلل نو هره شیبه یې کولای شوای هغوی (جزایي) افغانستان ته ولیږي. که څه هم په دې هکله په جار خبرې نه کیدې خو هر سړي په دې ښه پوهیده چې په نوې دنده د تیاکنې دلیل یې څه دی.

زما په برخه کې هم تقریباً همدا خبره صدق کوي. هغه وخت په «مایکوپ» کې چا د درو-درملو زیرمه غلا کړې وه. د «پرومیدول» نهه سوه امپوله وهل شوي وو. زه د قطعي درستیزوال وم او مسؤولیت مې د قطعي د دننینو چارو او په دې لړکې د روغتیا چارو د زیرمو ساتل هم وو، نو ځکه ملامتي په ما هم راواچول شود.

په دې لړکې د يوې بلې خبرې يادول هم ضروري دي. دځلوينبتم لښکر دافسرانو يوه برخه دغتهو پوځي قوماندانانو زامن وو، مثلاً: دمارشال سکولوف او ستر جنرال وارينيکوف کشران زامن او دغه راز ديو شمير پوځي حوزو د قوماندانانو زامن په افغانستان کې په خدمت لگيا وو. نه شم ويلای چې دجنرالانو زامنو په لوی لاس هڅه کوله افغانستان ته ولاړ شي، خو دا خبره پوره روښانه ده چې هغوی هلته خدمت کاوه او چارې يې بدې پر مخ نه تلې.

افغانستان ته د ټولو ليږل شويو افسرانو دنظري پوهې سطحه ډيره لوړه وه، داهم له ارزښته ډکه خبره ده خو کافي نه بريښي. زما په نظر مهمه خبره عملي تجربه ده چې بايد له افسر سره ملگرې وي. په دې لړکې دياد ولو وړده چې په افغانستان کې زموږ د حضور لومړي پړاو د افسرانو له پاره د پوځي عملياتو د تجربې تر لاسه کولو موده وه. تجربه په خورا سختۍ سره لاس ته راتله. جگړه ييزو عملياتو د مجاهدينو د کوچينو ډلگيو خلاف د پارتيزاني جگړو ښکاره ځانگړ تياوې درلوې. دجگړه مارو دواړو غاړو ترمنځ مخامخ نښتې نه وې. د کلمې په واقعي مانا د «جبهې دشا» مفهوم وجود نه درلود. دغه راز د جبهې رښتينې کرښه هم نه ليدل کيده.

د ۱۹۸۲ کال تر پايه په افغانستان کې دشوروی محدودو پوځونو ټولگيو تر يوې اندازې جگړه ييزه تجربه خپله کړه. موږ د دغه هيواد دجلاجلا سيمو دځانگړتيا وو په پام کې نيولو سره دجگړه ييزو عملياتو بيلابيل ډولونه په

دوخت په تیریدو سره افغانستان ته له شوروي نه راغلو افسرانو کولای شوای په آسانۍ سره دجګړې له حالت سره ځان برابر کړی. دځو کیود اشغال یا نوروته دهغو دانتقال چاره دیوې یاد وو او ونیو په ترځ کې بشپړیده. په دغه موده کې تلونکي قوماندان نوي راغلي افسرته نه یوازې خپل مالکیت ورسپاره بلکه له حالاتو سره یې دآشنایۍ په برخه کې هم ورسره مرسته کوله. برسیره پردې دځلویښتم لښکر دافسرانو ترمنځ د «متقابل تعویض» اصل کلک رعایت کیده. مورږ نه پرېښوده چې مثلاً دیوه ټولي دمشرتابه ټول غړي دې نوي راغلي افسران وي. (مورږ به داسې کول) چې د ساري په توګه دټولي ددریو ډلګیو دقوماندانانو له ډلې نه به دوه پخواني او دجګړه ییزو عملیاتو دتجربې درلودونکي او یوازې یوه به یې په افغانستان کې خپله دنده نوې پیل کوله. په کنډکونو، غنډونو او له هغه نه په لوړو پوړیو کې هم حالاتو همدا بڼه درلوده.

## له دوړونه دډکو سړکونو د پاسه

دشوروي محدودو پوځونو له پاره خواړه، جنګي مهمات، دارو درمل، دسون مواد او دجګړه ییزو ورځینو چارو د پرمخ بیولو له پاره دقطعو داړتیاوړ نور مواد، دشوروي اتحاد له خاورې نه راوړل کیدل. اساسي تأميناتي مرکزونه دافغانستان له پولې سره په پرتو ښارونو: ترمز او کوشک کې ځای پرځای شوي وو. دمادي تأميناتو انتقالاتي لوا چې ځوموټري کنډکونه یې درلودل، افغانستان ته دضروري شیانو په لیږدولو بوخته وه.

پخپله دڅلوېښتم لښکر دځواکونو په غاړه وه. دوه دری ورځې دموټرو دبارولو له پاره په کارېدې. دبيرته رارسيدوله پاره هم نورې دوه ورځې او کله کله زياته موده په کار وه په لويديځ لوری کې يعنی دکندهار شينډنډ په لاره همدغه کار زياته موده غوښته. کله کله دترانسپورتی کنډکونو دمرستی له پاره په لويديځ او ختيځ لوری کی دسيمی دقطعاتو له ترانسپورتی وسايلونه هم مرسته غوښتل کيده. وروسته بيا دانتقالاتو چاره دڅلوېښتم لښکر دغونډونو او فرقو د انتقالاتی کنډکونويا ټوليوپه غاړه اچول کېده.

دمحدودو پوځی قطعو زيات ځواکونه دترانسپورتې لارو دامنيت دساتنی له پاره کارول شوی وو. له هر قطار سره مخابره چيان او دحالاتو په اقتضأ دتوپچی او هوايی ځواکونو لارښوونکی تلل. داساسی موټری لارو په اوږدو کې موساتونکې مورچلی او پوستی جوړې کړې وې. نوکريو الو ځواکونو دموټری وسايلو دتيريدو په سيمه کې دحالاتو دقيقه څارنه کوله.

دڅلوېښتم لښکر داړتيا دليری کولو له پاره مو دافغانانو له موادونه ګټه نه اخستله. دهغوی يوازنی شيان مو چی مصرفول، هوا او دوړې وې. دانتقالاتو له ستونزو او زياتو لګښتونو سره سره دقطعو دتأميناتو کاربې څنډه روان و. په افغانستان کې زموږ دپوځی حضور په ټولو کلونو کې هيڅکله دتأميناتو دکار بندښت خولاڅه کوی چی آن ددې خطر هم منځ ته نه دی راغلی چی دهيواد په کومه سيمه کی دی دڅلوېښتم لښکر کومه قطعه بې خوړو يا مهماتو پاتې شي ...

خو هیڅکله داسې نه دی شوی چې بیخي بحران منځ ته راغلی وی.

د تأميناتو په کارکې غټې ستونزې، ستره پوځی عملیاتو ته د تیاری او دهغو د سرته رسولو په وخت کې منځ ته راتللی. مور د راتلونکو عملیاتو سیمی ته دخورو، مهماتو او درو، درملو ښی ډیرې زیرمی لیږدولې. ددغې او ونې په ترڅ کې دانتقالاتو اندازه دومره زیاتیده چې مجبوریدو شوروی اتحادته په موادو پسی نه یوازی دلښکر له قرارگاه نه بلکه له فرقونه هم موټرې واستوو.

تیل او دوسایطو داړتیاوړنور مواد دنلونو په واسطه چې له ترمزنه دبگرام ترهوایی اډې اوله کوشک نه تر شینډنډه غزیدلی وو، رسول کیدل. زموږ له پاره داکار ډیر آسانه ځکه گڼل کیده چې دافغانستان په شرایطوکې د تیلو راوړل نه یوازې گران، بلکه ډیر خطرناک کارو.

دنلونو دساتلو کار ډیر زیار غوښته: دهغې ځینی برخې به تل دماینو توپه وسیله الوزول کیدلې یا تر ډزو لاندې راتلی. په نلونوکې د تیلو د راخوشی کولو وخت دډیر محرم راز په توگه پټ ساتل کیده. که چیرې بیا هم دښمنانو کولای شول داوخت ځان ته معلوم کړی نو بیا به یې نه یوازې نلونه له کاره غورځول، بلکه شوروی پوځونو ته یې زیات زیان هم اړا وه. کله کله دسختو ډزو او یا تخریبی عملونو په نتیجه کې مو په یوه شپه او ورځ کې تر ۵۰۰ ټنو پورې تیل هسې خوشی له لاسه وتل. ځینی وختونه به دازیانونه لږ یعنی ۲۰ – ۲۵ ټنه وو او داعادی خبره گڼل کیده.

دنل د تیریدو دسیمې په هر متر کې خپل یو سرتیری ودر وو . البته ممکنه وه چې د نلونو شاو خوا سیموکې ماینونه ښخ شي، خو دا بیا هم دحل لاره نه ګڼل کیده. دماشومانو په ګډون دنژدې پرتو کلیو خلک دنلونو شاو خواته راتلل. نه مو شوکولای دهغوی په ژوند لولی وکړو.

ددغو نلونو ساتنه دځانګړې ګزمې په غاړه وه. چې کوم سیمه به ډیره خطرناکه وګڼل شوه نو هلته به مو امنیتی پوسته ورته جوړوله. له سیمه ییزو خلکونه موهم دنلونو د تیریدو په سیمه کې دحالاتو دڅارنې له پاره کار اخسته. دشوروی پوځی قوماندانی استازو ددغو کلیو له اوسیدونکو سره په دې هکله تړونونه لاسلیک کړی وو. (ددغه تړون له مخې) اقعانانو دا ژمنه په غاړه اخستله چې دکوم تخریبی عمل له سرته رسیدونه مخکې باید زموږ دقطعو قوماندانۍ ته رپوټ ورکړی موږ له خپلې غاړې هغوی ته دسون مواد او دامکان په صورت کې خواړه او دارو درمل ورپیا ورکرل.

# برهان الدین ربانی

مخکې له دې چې دځلویښتم لښکر په ګډون دوروستیو جګړ ییزو عملیاتو په هکله خبرې وکړم، غواړم په افغانستان کې د شوروی پوځی حضور دوروستې پړاو پرځانګړتیا ووهم رڼا واچوم.

هغه وخت چې ماته د لښکر قوماندانی راوسپارل شوه، هیڅوک لا په دې نه

هغوی زیار ایسته په افغانستان کې موجود رژیم نسکور او یو مذهبي دولت منځ
ته راوړي. هغوی له انقلابي حکومت سره وسله والې مبارزې ته ډیر ارزښت
ورکاوه.

داپوزیسیون دعمل په کړنلاره کې له منظمو لښکر وسره نښتې، دورانکارو او
تروریستي اعمالو دسر ته رسولو لارې چارې او تبلیغاتي او پروپاګندي اقدامات
شامل وو.

که د ۱۹۸۰ کال په پیل کې دمجاهدینو غتو ډلو دشوروی لښکر و مقابله
کوله، وروسته یوه شول چې داکار دهغوی د سر دزیاتو زیانونو سبب ګرځي نو په
کوچنیو ډلو کې یې په مقاومت لاس لورې کړ. عملاً دادپار تیزاني جګړې د پیل
په ما ناوه. دافغانستان په مرکزي، شمالي او لویدیځو ولایتونو کې تقریباً زموږ
دتلو تر وخته همدغه حالت حاکم و.

دپاکستان او ایران پولو ته په څیرمه سیمو او تر ټولو لومړي دکونړ، ننګرهار،
پکتیا، پکتیکا په ولایتونو او په تیره بیا دخوست په لویي ولسوالي او دکندهار
په څنډو کې حالاتو بیخي بل رنګ درلود. دشوروي پوځي حضور په ټولونهو
کلونو کې ددغو سیمو یوه لویه ځانګړتیا داپوزیسیون له خوا دغتو ډلو ځای
پرځای کول او کارول وو، چې دغږو شمیر یې له دریونه تر شپږو زروتنو پورې
رسیده. قوماندانان په دغو سیمو کې له بشپړې کلابندي یا دخپلو باندونو له پو

ددښمنانو کوچينو ډلو له ګوندی له پلوه دهغی سيمې دعمومی آمر اطاعت
کاوه چې دوی پکی ځای پرځای شوی او فعال وو. خلويښتم لښکر داپوزيسيون
دمشهورو قوماندانانو په هکله که په هر څه نه پوهيده، نو ډير څه ورته معلوم وو.
دهغو يو شمير اوس هم، دانقلابی دولت له پرزيد وروسته په افغانستان کې
متنفذې څيرې ګڼل کيږی.

په افغانستان کې دخپل حضور په موده کې په دې قانع شوم چې دشوروی
لښکر وخلاف دپرله پسی جنګيدونکو اسلامی ګوندونو مشران زموږ له شان سره
برابر غليمان دی. فکر کوم دلوستونکو له پاره به په زړه پورې وی چې مثلاً د
«افغانستان اسلامی جمعيت» له مشر سره له نژدې آشنا شی.

برهان الدين ربانی دمحمد يوسف زوی، په ۱۹٤۱ کال کی د بدخشان ولايت
دفيض آباد په ښارکې ديوه ملا په کورنۍ کی دنيا ته راغلی دی. په قام تاجک
دی. لومړنۍ زده کړې يې په خپل پلرنی ښارکی وکړې. شل کلن و چې مدرسه يې
بشپړه کړه او په ۲۳ کلنۍ يې دکابل پوهنتون دشرعياتو له پوهنځی نه ديپلوم
ترلاسه کړ. دياد ونې وړده چې دزده کړې په ټوله موده کی نوموړی تل ښې نمرې
درلودلی دی.

ربانی دوه کاله دشرعياتو په پوهنځی کې درس ورکړ او وروسته بيا دلوړو
مذهبی زده کړو له پاره دقاهرې دالازهر پوهنتون ته واستول شو.

په اوه ويشت کلنۍ کی يې د «نورالدين عبدالرحمن جامی ژوند او علمی –

منځنیو پېړیو کې دختیځ لیکوال، پوه او فیلسوف تیر شوی دی). افغانستان ته
له راستنیدو وروسته یې دکابل پوهنتون د شرعیاتو په پوهنځی کې دفلسفې
تدریس ته دوام ورکړ.

همدغه وخت دافغانستان د «اخوان المسلمین» په سازمان کې چې ددې
غړیتوب یې په ۱۹۵۸ کال کې ترلاسه کړی و، دده سیاسي فعالیت ښه زور اخلي.

ددغه سازمان مشرتابه رباني ته دنده وسپارله چې په کابل پوهنتون کې دهغه
مربوط دځوانانو سازمان مشري په غاړه واخلي. رباني په دغه مقام دیو د فعال،
منطقي او جدي لارښوونکي په توګه ځان څرګند کړ. هغه وکړی شول د استادانو،
او محصلینو له منځه یو فعال سازمان راجوړ کړي چې عبدالرسول سیاف، ګ.
حکمتیار، احمد شاه او نوریې دغړو په ډله کې وو.

په ۱۹۷۳ کال کې رباني دافغانستان «داخوان المسلمین» دمشر په توګه
وټاکل شو او دغه مقام یې تر ۱۹۷۶ کاله پورې په لاس کې و. ددغه سازمان
خلاف د ترټنو له پیل نه وروسته رباني دبدخشان ولایت په غرنیو سیمو کې پټ شو
او له هغه ځایه یې دخپل سازمان دلاره یو لارښوونه کوله.

لږ موده وروسته رباني پاکستان ته لاړ او هلته یې د «افغانستان داسلامي
جمعیت» جوړیدل اعلام کړل چې هدف یې «دداود درژیم او په افغانستان کې
دروسي امپریالیزم خلاف» دوسله والې مبارزې سرته رسول ټاکل شوی و.

لاس واچاوه او ټول اسلامي ګوندونه یې په یوه متحده جبهه کې راټولیدوته راوبلل. افغانستان ته دشوروي لښکرو له ننوتو دوه میاشتې وروسته «اسلامي جمعیت» له نورو ډلو سره یوځای «دافغانستان دخپلواکۍ لپاره په اسلامي اتحاد» کې ورګډ او دهغه تړ ړنګیدو وروسته په ۱۹۸۱ کال کې «دافغانستان دمجاهدینو داسلامي اتحاد یا «اووه ګوني اتحاد» غړی شو. رباني ته په دغه سازمان کې دپوځي برخې مشري وروسپارل شوه.

دعربي هېوادو ددیني پوهانو په منځ کې درباني زیات شهرت هم له دې سره تړنه مرسته وکړه. هغه داسلامي حقوقو او فلسفې ماسټری لري. له ۱۹۷۱ کال راپه دې خوا رباني د «شرعیات» په نامه دمجلې مسوول مدیریت هم په غاړه درلود. درباني کتابونه لکه: «اسلام او کمونیزم» «دجولای دشپږویشتم (۱۹۷۲ کال) «ښایي سمه وي که وویل شي د ۱۹۷۳ کال دجولای د ۱۷ نیټې» (دج) پیښې او دداود خان فعالیتونه» او «داسلام سیاسي بنسټونه» په عربي او انګلیسی ژبو خپاره شوي دي.

رباني دپاچاهي نظام سخت مخالف و. د «اسلامي جمعیت» کړنلاره دنورو ورته ګوندونو له کړنلارونه دافغانستان دراتلونکي دولتي جوړښت په هکله درسا اوروښانه احکامو ددرلودو له امله پوره توپیر لري. په دغه کړنلاره کې دپان اسلامیزم پربنسټ شرعي احکاموته دپوره وفادار اسلامي جمهوریت جوړیدل اتکل شوی دی.

«د روسي امپریالزم درا پرزلو» له شعار سره سره چې «اسلامي جمعیت» د هغه په رڼا کې خپله وسله واله مبارزه پرمخ بیوله، هغه بیا بیا ویل چې زما په عقیده شوروي اتحاد د افغاني لانجې د ډېر ژر غوڅولو سخت پلوي دی. سربېره پردې هغه ویلي وو چې «اسلامي جمعیت له شوروي اتحاد سره دښمني نه لري، خو موږ د هغو روسي عسکرو خلاف جنګېږو چې افغانستان یې نیولی دی.»

د اسلامي جمعیت پانګه تر ډېره ځایه د افغانستان په خاوره کې د موندل شویو لاجوردو او زمردو پلورنې له لارې تولیدله. رباني د امریکا د متحدو ایالتونو او اروپایي هیوادونو په بانکونو کې د طفیل محمد په نامه شخصي پانګې لري. د ساري په توګه هغه یوازې په پاکستان کې د دوو سوو ملیونو روپیو معادل نقده پانګه او د ټوکراوبدلو او غالیو اوبدلو فابریکې لري.

د رباني د ګوند وسله والې ډلې په شمالي، ختیځو او لویدیځو ولایتونو کې نفوذ لري، لکه په بلخ، جوزجان، بدخشان، پروان، بغلان سمنګانو، کابل، کاپیسا، ننګرهار او هرات کې. رباني د پښتنو قبیلو په منځ کې چې ټل په افغانستان کې د پیاوړیو دریځونو درلودونکې وې، چندان ملاتړ نه لري. د اسلامي جمعیت د وسله والو ډلو شمیر [illegible] ي چې ټول ټال په کې څه د پاسه دیرش زره تنه عړیتوب نري.

په اسلامي نړۍ کې پوره اعتبار، د عربي هیوادو له علمي او لارښوونکو کړیو

[illegible]

جمعیت »دحکمتیار له اسلامي حزب وروسته دزور اونفوذ له پلوه دیاغیانو په
منځ کې دویمه ستره ډله ګڼل کېدله.

له نورو ډلونه دربانی دباندونو یوتوپیر ، له عادي خلکو سره په نسبتاً معتدل
چال چلندکي و . قاعدتاً دده سرو دخپلو هیوادوالو خلاف له سختو ترتینو او
ظلمونوځخه ډډه کوله خواسلامي قوانینو کلک رعایت ته یې خلک رابلل. ترډیرې
اندازې درباني شخصي ځانګړ تیاوې او دلاربشودني وړتیاوې ددې سبب شوې چې
هغه دافغانستان داسلامی دولت دجمهوررئیس په توګه وټاکل شي.

## دملي روغې جوړې سیاست

د۱۹۸۷ کال یوه ځانګړتیا دادچې دافغانستان دخلکو دیموکراتیک ګوند
عمومي منشي په توګه دنجیب الله «دهغه وخت دنجیب په نامه یادیده» په ټاکل
کیدو سره له دګماتیزم اوړانده تقلیدنه دګوند دسیاسي دکتورینو پاکول پیل شول
.همدغه وخت دافغانستان دخلکو دیموکراتیک ګوند دکورني اوبهرني سیاست
دبدلون اړتیا ټولوته روښانه وه. دشوروي ګوندي سلاکارانو په مرسته او دهغوی
په مخامخ ګډون داسې نوې ستراتیژي طرحه شوه چې هدف یې دکورنۍ لانجې
غوځول وو .دغه ستراتیژي په ټوله نړۍ کې دملي روغې جوړې دسیاست په نامه
مشهوره شوه.

مونږ پوهیدوچې زمونږ دهیلوپلي کیدل به خوراګران کاروي. دهیواد دخاورې

خـو مـور بله چارد نه درلودد: اوردې سـتـرې کـوونکي جګړې ،دغـه لـه خـا يـه وروسـتـه پاتې هيـواد دکندې پـر غـا ړه درولي و .دکـورنـی ورور وژوونکي جګړې دبندولوپه موضوع کې اساسي فشار په سياسي وسايلو دافغاني لانجې په غوڅولو راوړل کيـده دپاملرنې وړدد چې دملي روغـې جوړې سياست دملي ديموکراتيک انقلاب ودې يوپړاوګڼل کيده. دادسياسي مصالحې يوه ځانګړې بڼه ودچې په کې دديموکراتيک نظم دجوړولو ، دجګړې دبندولو اودګڼ ګونديز سيستم پر بنسټ (دافغانستان په شرايطوکې هم دا اطلاح کاريدله) ټولنيزې اواقتصادي ودې ته درسيدودندې ټولې غاړه غړې شوې وې.

په دغـه لړکې يواساسي شرط هيـڅکله له پامـه نه غـورځول کـيـدداو هغـه دافغانستان ،د ناپييلتوب د دريځ ساتنه ود.

دافغانستان حکومت دملي روغې جوړې پرلور دلومړني ګام په توګه دهيواد په ټوله خاوره کې دهرډول وسلو دخولو دبندولوپړانديز وکړ .ددې هدف لپاره دقيقه نيټه هم وټاکل شوه :د ۱۹۸۷ کال دجنورې ۱۵ .

دجګړه ييزو عـمليـاتو له بنديدو وروستـه په پام کـې وه چې شـوروي اودولتي پوځونه به خپلو دايمی قشلو ته ستينږي اودسولې دوخت دمهال ويش مطابق به خـپلې چارې پرمخ بيـا يي .دڅلويښتم لښکر ټولو قطعـو او جزوتامـونـو ته امروشوچې دجنورې له پنځلسمې نيټې وروسـتـه پردښمن هوايي او توپچي ډزې ونه کـړي، په دې شــرط چې دښــمن هم دملکي خلکوژوندانـه ته خطرپيښ نه

پوځي تاسيساتو په ساتنه بسنه وکوي.

دافغانستان حکومت دملي روغې جوړې په شرايطو کې په پام کې لرل چې د اداري دائتلافي بنې د رامنځته کيدلو لپاره هڅې ګرندی کړی. داپوزيسيون مشرانو ته دصدراعظم ،دستري محکمې رياست دملي شورا درياست ،نيم وزارتونه ،ددفاع وزارت دمرسيتالی اودزياتوولايتونو دمشرتابه مقامونه وړاندې شوي وو.

دهېواد مشرانو ته لرله چې دخپل نوي سياسي نوبت له امله (اوداپه خپل وخت کې له مبالغې پرته دحاکم رژيم لپاره نوې اوترديره حده ناڅاپې تګ لاره وه) به په ښارونو اوعسکري چوڼيو الوتکواونورو تاسيساتو داندا ختونو بندول ممکن شي دغه راز دافغانستان دديموکراتيک جمهوريت خاورې ته دوسلواو مهماتو دراوړلو دبندښت، په لاروکې دماينونو له ښخولو اودتروريستي اووړانکاروعملونوڅخه دلاس اخيستو مساله هم راپورته شوې وه.

دروغې جوړې دتحقق په صورت کې اوله هغه وروسته چې کلی،ولسوالی ياولايت دسولې سيمه اعلاميدل، انقلابی شورا حاضره وه، زيات دولتي امتياز ونه چې مخکې له مخکې طرحه شوي اوپه ټول هېواد کې پوره معرفي شوي وو، اعطاکړي.

ټاکل شوې وه، دملي روغې جوړې دسياست دپلي کيدو په بهير کې ځانګړې پاملرنه دافغاني کډوالودستونزو حل ته واړول شي. تردغه وخته څه دپاسه ٥ / ٤

دنشتوالي په شرايطو کې ژوند کاوه. د کډوالو دژوندانه له ناوړو شرايطونه انقلابي ضد ځواکونو او دغه راز دهغو ملاتړو لويديځو دولتونو اويوشمير اسلامي ملکونو دافغانستان پر حکومت دسياسي فشار او دغه راز دانقلابي رژيم خلاف دوسله والې مبارزې داوږدولو په منظور گټه اوچتوله.

دافغاني کډوالوزيات کمپونه په پاکستان (څه دپاسه درې مليونه وگړي) او ايران کې (څه دپاسه يونيم مليون کډوال) پرانستي وو. دغه راز په هندوستان، سعودي عربستان اودسيمې په يو شمېر نورو هېوادوکې هم دکډوالو کوچنۍ کوچنۍ ډلې دېره وې.

دکډوالو زياته برخه دافغانستان پولوته نږدې ميشته شوې وه: څه دپاسه دوه مليونه کډوال په شمال لويديځه سرحدي صوبه کې له کيږديونه په جوړو دوه سوه ځلوېښتو کمپونوکې ځاى پرځاى شوي وو. سربېره پردې څه دپاسه نيم مليونه خلک په بلوچستان اونږدې سل زره تنه په پنجاب کې دېره شوي وو. په ايران کې دکډوالو کمپونه عمدتاً دمشهد، تايباد، زابل، زاهدان کشمير او کرمان په ښاروانوکې آباد شوي وو.

له کډوالو سره دملگرو ملتو او نورو نړيوالوسازمانونو له لارې اقتصادي مرستې کيدلې دساري په توگه: په ۱۹۸۳ کال کې دهغو داعاشې اواباتې لپارد نږدې (۵۵۰) مليونه ډالرد، په ۱۹۸٤ کال کې څه دپاسه (٦۰۰) مليونه ډالرد او په ۱۹۸۵ کال کې څه کم اوږه سوه مليونه ډالرد بيل شوي وو.

دقامونو او قبیلو مشرانو خیته اچوله. دغلاو ناوړه ګټې اخیستنې له امله په کمپونوکې ډیر بد حالت حاکم وچې له یوې میاشتې نه بلې ته نور هم پسې خرابیدد دمقاماتو خپل سري، دیاغیانو ظلمونه، له حقوقوڅخه دکډوالو بشپړ بې برخې والي او دنیمکرغه راتلونکي دلرلید نشتوالی له یوې خوا او دافغانستان دحکومت پرله پسې هڅې ددې سبب کیدې چې یوشمیر کډوال خپل هیواد ته دستنیدو پریکړه وکړي دشوروي پوځي حضور په لومړیو اووه کلوکې ایله دولس زره تنه هیواد ته ستانه شوي وو خویوازې په ۱۹۸۸ کال کې ۱۲۰ زره کډوال خپلو کورونو ته راوګرځیدل.

پاکستاني او ایراني واکمنو دراستنیدونکو کډوالو په وړاندې ډول ډول خنډونه اچول هڅوی کډوالوته ترهرڅه لومړی دانقلابي ضدډلو-ټپلولپاره دجنګي ځواک دزیرمې په توګه کتل. سربیره پردې پاکستان په پراخ مټ له کډوالو سره کیدونکې مرسته راشکوله او دخپلې خزانې دډکولولپاره یې کارترې اخیست او ایران هم په خپله خاوره کې دافغاني کډوالو کمپونو دعراق خلاف جګړې لپاره دسرتیرو دجلب او احضاریوه اضافي سرچینه بلله.

افغاني کډوالو دوزګارانو دیوې لویې اردوبنه لرله. اوله دې امله یې له سیمه ییزو خلکوسره دکارموندلو په بازارونوکې لویه سیالي منځ ته راوړې وه، ځکه افغانانوته دنورو په انډول دکار په بدل کې ډیرې لږې پیسې ورکول کیدې. نیستي، وزګارتیا او بینوایې افغاني کډوال دجنایتونو، قاچاق وړلو او دنشه یې

افغاني انقلاب ضد ځواکونو د کډوالوله بدمرغه حالت نه په ناوړه ګټه اخیستې سره، له هغوی څخه د خپلو باندونو «ژوندي ځواک» د پوره کولو کار اخیست، هر کال د اپوزیسیون د وسله والو کسانو په توګه له پاکستان څخه څه د پاسه ۲۵ زره او له ایران څخه څه د پاسه ۱۵ زره تنه د افغانستان خاورې ته راصادریدل. د کډوالو د اجیر کولو لپاره پر ایدیولوژیک تبلیغ سربیره له ځینو نورو لارو چارو لکه تطمیع تهدید او هیبت څخه هم کار اخیستل کیده.

د پاکستان حکومتي ارګانونو د اپوزیسیون د ۳٤ پوځي ډوله کمپونو د چارو په سمبالښت کې مخامخ ونډه اخیستله، د اپوزیسیون د جنګیالیو د روزنې ترټولو ستر مرکز ونه پیښبور ته په څیرمه سیمو پاړه چنار او د کوټې ښار ته نږدې پراته وو.

عجیبه دا ده چې د هیواد د سیاسي او پوځي مشر تابه یوې ټاکلې برخې د ملي روغې جوړې له سیاست او په تیره بیا په راتلونکي یوه کال او وروسته بیا له هغه نه هم په لږه موده یعنې نه وو میاشتو کې له افغانستان نه د شوروی محدود پوځونو له وتلو سره ډیر سخت مخالفت وښوده. ډیرو دولتي کارکوونکو او انګیرله چې نوره يې نوله پښو لاندې زمکه تښتي. د څلوپښتم لښکر قوماندانې او پوځي مشاورین د افغاني حکومت د یوشمیر کارکوونکو لورې له ښکاره سبوتاژ سره مخامخ کیدل.

له بده مرغه د افغانستان د حکومت نوښت ته د اپوزیسیون لارښوونکو او د غه

په تنګ لاره کې یوازې دحاکم نظام کمز ،ورتیا لیدله ،نوځکه یې دهغه دنسکورولو لپاره ځپله مبارزه لانوره هم ګړندۍ کړه .داخبره په داسې حال کې داپوزیسیون دباندونودجګړه ییزفعالیت دلاتودیداو سبب شوه چې هم شوروي او هم حکومتي پوځونو نویواړخیز اوزبند اعلان کړی ؤ.

## «لویه لاره»

د۱۹۸۷ کال په دوبې اومنی کې دپکتیا ولایت اوپه تیره بیادخوست دلویې اولسوالۍ حالاتوافغاني مشران اوشوروي پوځي قوماندانې ډیر اندیښمن کړل.داله دې امله چې داپوزیسیون وسله والوډلو تقریباً دخوست دښار کلابندي بشپړیدوته نږدې کړې وه. په خوست کې دخوړوسخت کمی واوخلک له لوږې سره مخامخ شول.خواړه هلته عمدتاً دهیواله لارې رسول کیدل خود ۱۹۸۷ کال په منی کې دهواله لارې دهغو رسول هم خوراګران شول. ترانسپورتي الوتکې زیاتره دشپې له خوا دخوست لورته الوتلې.

له خوست نه دشوروي لښکر و ترو تلو وروسته ددغه ښار اوپه مجموع کې دټول خوست دسقوط ریښتینی خطرمنځ ته راغی. حالات له دې امله هم خړپړ بریښیدل چې خوست له دوه ګوني تجرید سره مخامخ و. دښار چاپیره لومړی کړی دانقلاب ضد باندونو راتاوکړې وه او دوهمه کړی د«ستهوکنډو» په غرنیو سلسلوکې تېره شوې وه چې لوړوالی یې درې زره متروته رسیده.

دکابل حکومت لپاره دخوست سقوط ددښمن ستربری و. له همدې امله

دښمنانو دشوروي پوځونو له غیابت نه په ګټه اخیستنه« ژوري » په سیمه کې
خپله ستره اکمالاتي زیرمه له سره جوړه کړه چې شوروي پوځونو ان د ۱۹۸٦ په
پسرلي کې دړې وړې کړې وه.

دخوست نیول دانقلاب ضد لپاره، له دې امله هم ارزښتمن کار و چې په
اصطلاح «دافغانستان حکومت» باید په همدغه ښارکې خپل فعالیت پیل کړی
وای.

افغاني اپوزیسیون، پاکستاني واکمنو اسلامی رژیمونو ،دانقلابی
ضدګوندونود یو کولواودهغوی دسیاسي فعالیت لپاره دلامناسبو شرایطو دمنځ
ته راوړلو په کارکې دیوه علی البدل افغانی حکومت دراجوړولونظریې ته چې
پخوا وړاندې شوې وه ،خوراډیر ارزښت ورکاوه.

دهغوی محاسبه داوه چې دد غسې یوه« حکومت » په منځته راتګ
سره ،کیدای شي له انقلابی ضد ځواکونو سره پراخې کیدونکې پوځي مرستې
قانوني بنیه وموموي ،د« دافغاني کشالې » دلاپیچلتیا لپاره نوي ګامونه پورته
شي ، دملګروملتو په ګډون بیلابیلو نړیوالو موسسوته داپوزیسیون داستازو
دګډون لارد خلاصه شي او دافغانستان دچارچاپیر حالاتود عادي کولوپه هکله
دژنیو خبرې اترې له خنډونو سره مخامخ شي.

ددغسي یوه« حکومت » دجوړولو مفکوردان په ۱۹۸۰ کال کې منځ ته راغلې
وه ،خوډیره موده دافغاني اپوزیسیون د سیاسی لاربښوونې دیوواحد ارګان منځ ته

نه بریښیدل خو « اوود ګوني اتحاد » دملاتړ کوونکو تر فشار لاندی ،له خپلو کورنیو اختلافونو سره د « افغانستان دحکومت » جوړولو ته غاړه کښوده . ددغسې یو اقدام هدف تر ټولو لومړی دا وچې دهغوی سیاسی وزن زیات کړي او له لویدیځ او اسلامي نړۍ نه ، له هغو سره دمالي مرستو بهیر همداسې جاري وساتي.

دپاکستان په خاوره کې د « جلاوطن حکومت » درلودل یو خبره او په خوست کې دهغه مستقرول بیخی بله خبره وه . په دغسې حالت کې کیدای شوای ، کورنۍ جګړه دازادي بخښوونکي جنګ بڼه غوره کړي.

دافغاني مشرانو له بیا بیا اوجدي غوښتنو وروسته دمحدودو پوځي ټولګیو قوماندانۍ ،دشوروی او افغاني عسکرو دګډو عملیاتو نقشه جوړه کړه . دهغو اصلي مقصد دښار دکلابندۍ ماتول او دخوست ښاریانو ته په لومړي ګام کې دخوراکي موادو او دغه راز دنورو ضروري شیانو لکه تیلو ،درو - درملو اونورو رسول وو . موږ مخکې له مخکې دخوست په شا وخوا کې رامنځته شوی حالت ښه وڅیړه . هغې سیمې ته مو دشوروي اتحاد ددفاع وزارت داوپراتیفي ډلې او دځلویښتم لښکر افسران واستول.

ددې سیمې دمخالفې وسله والې ډلې اصلي برخه دځدرانو دقبیلي له پوځي ډوله ځواکونو څخه جوړه وه . دا ډیر مغرور قام دی او دخپل تاریخ په ټوله موده کې یې هیڅ حکومت ته غاړه نه ده ایښې او څنګه چې یې زړه غوښتي ،هغسې یې عمل کړی دی . دمجاهدینو دډلې عمومي مشري دجلال الدین په غاړه وه چې پخپله هم

پر یکړ د و شو د چې عملیات به په نوامبر کې پیل کیږي. دځلو یښتم لښکر قوماندانی جګړ ییزو عملیاتو ته د تیاري ترڅنګ بیا بیا هڅه کوله چې دخوست کلابندي په سوله ییزه طریقه ماته شي. خبره دې ځای ته ورسیده چې ان زه دلښکر دقوماندان او دراتلونکو عملیاتو د لارښوونکیه توګه اړ شوم چې (په دې هکله) په روانو خبرو اترو کې ګډون وکړم. سر له دې چې زه د هغه غایبي سر ته چې دځدرانو دواکمنۍ سیمه دافغانستان له نورې خاورې نه بیلوي، وختلم، خوله جلال الدین سره مې مخامخ کتنه شوني نه شود. هغه له شورویانو سره له مخامخ کتنونه ډډه کوله. له هغه سره زمونږ مراوده یوازې دځولیکونو په ذریعه وشوه، خوبیا هم موږ دلانجې دسوله ییز حل لپاره له هڅونه لاس نه اخیست.

مادعملیاتو لپاره دچمتووالي په ترڅ کې دې ټکي ته ډیر ارزښت ورکاوه چې دځلو یښتم لښکر دسرزیان باید تر وسه وسه کم وي. ډیر وخت په دې تېر شو چې قوماندانان دراتلونکې جګړې له سیمو سره ځان بلد کړي. موږ د شوروي او افغاني یوځونو، دتوپچي او هوایي ځواکونو ګډو هڅو د شوني کولو لپاره ډیر دقیق کارونه سر ته ورسول په ټاکلو، سیمو کې د نظرو ځواکونو دځای پرځای کولو وخت په ګوته کړای شو.

دځلو یښتم لښکر له لورې په دغو عملیاتو کې د ۱۰۸ او ۲۰۱ لمبر موټریزد فرقو، د ۱۰۳ لمبر هوایي کوماندوي فرقې، دیرغلیز د بسانت د ۵۶ لمبر مستقلې

دافغانستان دوسله وال پوځ له لورې داتمې ،یوولسمې ،دولسمې څوارلسمې اوپنځمه ویشتمې پلې فرقې ،دټانک دپنځلسمې لوا ،اودیوشمېر ضربتي قطعو ځواکونو برخه اخیستې وه .سربېره پردې ،په دغو عملیاتوکې دڅارندوی اودولتي امنیت دارګانونو څه دپاسه لسوکنډکونوهم ګډون درلود .

موږ دعملیاتو لپاره دتیاری ان په وروستني پړاوکې هم لاتمه درلوده چې له جلالدین اوددغه قام له مشرانو سره د خبروله لارې به په دغه درة کې دخوست دکلابندښار پرلور ،په سوله ییزو بارونوډک موټري قطار دبې خنډه تګ امکان رامونډل شي .

داسې غوټه شوې وه ،که چیرې دځدرانوله قبیلې سره خبرې اترې بې نتیجې پای ته رسیږي ،نوبیا به زموږ هوایي ځواکونه هغه کارواني لارې سختې بمبارې کوي چې پرې دغې سیمې ته وسله اومهمات رسول کیږي ، څو په دې وسیله دجګړې دډګر رابطه له خپلو زیرموسره پرې شي .

په نظرکې وه چې د درې زره مترولوړپراته ستیوکنډوپه نیولوسره به ،دخپلوځواکونو دآزاد پرمختګ لاره جوتوواودګردیز - خوست لویه لاره به پرانیزو .

دخوست په ګارنیزیون کې دخوړو ،سون موادواودرو - درملو دلازمو زیرمو له برابرولو وروسته په پام کې وه چې دلارې په اوږدوکې پراته محافظ قطعات به

دنوامبر د ۲۲ ورځې ترپايه ټولې قطعې او جزوتامونه د دغو عملياتو دسرته رسولو لپاره چې د دلويې لارې، شرطي نوم ورکړشوی و، چمتو شول. په ګرديز او خوست کې د افغاني او شوروي پوځ او پراتيفي ډلې راجوړې شوې. توپچي ځواکونه په خپلو اصلي مورچلو کې ځای پرځای شول. ماد قوماندانۍ لپاره داسې يوځای غوره کړ چې د عملياتو ټول ډګر ترې له ورايه وبريښي او په دې توګه د حالاتو پربهير داغيزې ښندلو امکان راسره وي.

څرنګه چې له اپوزيسيون سره د خبرو اترو له لارې د قطار د سوله ييز تيريدلو پرسر موافقې ته ونه رسيدو، نو له پلان سره سم مو د نوامبر په ۲۳ جګړه ييز عمليات پيل کړل. د ځدرانو قام لپاره له بده مرغه موږ وکولای شول، په خپلو لومړنيو هوايي ګوزارونو سره د جګړه ييزو عملياتو ډګر له نوروسيمونه غوڅ کړو.

شک نه شته چې دښمنان پوهېدل، زموږ د دغو عملياتو اصلي مقصد له لوړې نه د خوست د زرګونو ښاريانو ژغورل دي، خو له دې سره سره هغوی د شوروي او حکومتي پوځونو په وړاندې ډېر سخت مقاومت کاوه.

د ځلوېښتم لښکر قطعاتو د عملياتو په لومړۍ اوونۍ کې پرياغيانو خپل فشار په منظمه بڼه زياتاوه او ورو ورو خو په متينو ګامونو د ستېو کندو د غاښ پر لور روان و، چې هغه په بشپړ ډول په خپل کنترول کې راولي. له دې سره جوخت موږ د استخباراتي اداري د ځانګړو کارکوونکو له لارې د لانجې د سوله ييز حل لپاره خپل وړانديزونه هم استول. ان د جګړه ييزو عملياتو د پوره شدت په وخت کې چې

ګوزارونو په مرسته هغوی ته ډیره مرګ، ژوبله ورواړوو، د څلویښتم لښکر قوماندانۍ د هوايي جاسوسۍ او د استخباراتو د شبکې له لارې د غلیم د تمرکز د ځایونو په هکله کافي معلومات لرل. خو بیا هم موږ په لوی لاس نه غوښتل پر هغوی ګوزارونه وکړو، یا یې له منځه یوسو، بلکه هڅه مو کوله هغوی له غاښې نه په شاکیدو ته اړباسو.

د نوامبر د ۲۸ ورځې مازیګر له شپږ ورځنۍ جګړې وروسته، مخکښو ټولګیو، د ستیو کنډو کنټرول ترلاسه کړ. په دغو عملیاتو کې لویه ونډه د هوايي د یسانت (۱۰۳) لمبر فرقې درلوده چې هغه وخت یې قوماندانۍ د پاول سرګییویچ ګراچوف په غاړه وه. هغه شخصاً د خپلو قوماندانانو لارښوونه په غاړه درلوده او په کموتلفاتو سره یې وکړای شول د غه غاښې ونیسي.

له دې وروسته د څلویښتم لښکر قوماندانۍ د خوست د کلابندۍ د سوله ییزو ماتولو لپاره یو بله هڅه هم وکړه، د نومبر په دیرشمه د افغانستان د دولتي امنیت دارګانونو له لارې د جګړه مارو قبایلو له مشرانو او د غه راز له جلال الدین سره د خبرو لړۍ بیا پیل شوه. د دغو پیښو د ډیر ارزښت له کبله له کابل نه د افغانستان د جمهور رئیس ځانګړی استازی د قومونو او قبایلو د چارو وزیر سلیمان لایق هم هغه ځای ته راغی. نوموړي د جمهور رئیس او د غه راز د لویې جرګې د غړو په نمایندګۍ چې هغه وخت په کابل کې روانه وه، د ځدرانو له مشرانو نه وغوښتل چې

کتنو، خبرواترو، دخپلو دریځونو دبیا تثبیت، دمتقابلو توړونو دلګولو، ګواښونو اوداسې نورو کارونولپاره بیخي کافي وه.

دڅلوېښتم لښکر قوماندانۍ په دغه موده کې هم لاس ترزنې نه وه ناسته. په دغه ټکي له پوهېدو سره چې دلانجې د سوله ییز حل امکانات خورالږدي، موږ ځانګړي محدود عملیات ترسره کړل. دلښکر قوماندانۍ دځدرانو پرمشرانو د اغیزدزیاتولوترڅګ ،خپله ځانګړې نقشه هم عملي کوله.

موږ د پوځي استخباراتو له لارې، پاکستان ته داسې پولیک واستاوه چې په کې ویل شوي وو، جلال الدین ، دادی له پخوانه زیات دلانجې دحل لپاره دشوروی قوماندانۍ له وړاندیزونو سره موافق شوی اوغواړی چې خپله وسله په ځمکه کېږدي. داسې وشوه چې ګواکې «اووه ګون» اتحاد په تصادفي توګه له دې خبرې خبرشو چې ګنې جلال الدین له خپلو نږدې مرستندویانو سره دجګړې له ډګرنه دخپلو ځواکونو دشاته ایستلولارې لټوي. موږ په دې هیله چې جلال الدین به دخپلو مشرانو له خوا له منځه یووړل شي، ان دنوموړي دځواکونو د په شاکېدودقیقي نیټې موهم یادې کړې وې.

ددغې پروپاګنډې له پیله یوه نیمه اونۍ وروسته جلال الدین دجګړه ییزو عملیاتو له ډګر نه غیب شو. هغه بیا ایله دجنوری په پای کې په خوست کې ولیدل شو، خودانورهغه وخت وچې موږ د «لویې لارې» عملیات بشپړ پای ته رسولي وو. وروسته بیا څرګنده شوه چې په پاکستان کې زموږ له خوادلیکل شوي لیک په

الدین دې له سره وازمایل شي. هغه پاکستان ته وروغوښتل شو جلال الدین په بیړه هغې خواته روان شو او دخپلو ځواکونو لارښوونه یې خپل مرستیال ته وسپارله هغه چا تجرید هم نه کړ او تحقیق هم ترې ونه شو، خواوړده موده ورسره خبرې روانې وې او هره خبره یې بیا بیا ازمایل کیدله.

زموږ دغه پروپاگند خاصه نتیجه ورکړه. نه پخلاکیدونکی قوماندان دجګړې ډګرته راپرې نه ښودل شو. د «لویې لارې» د عملیاتوله پیل وروسته، دمخالفینو سخت مقاومت له دوو اوونیوزیات دوام ونه مونده، خوموږ ډیر ستر مقصدته چې هغه په سوله ییزه لاره دخوست دکلابندۍ ماتول وو، ونه رسیدو. دځدرانو دقام مشرانو د «اوه ګوني اتحاد» دمشرتابه ترسخت فشار لاندې چې به پیښور کې ځای پرځای و، زموږ قطار ته له درې نه دخوست پرلور د تیریدو اجازه ورنه کړه.

له لوړې نه دخوست دښار اولویې اولسوالۍ دخلکودژغورلوپه مقصد، لویې جرګې جمهور رئیس نجیب الله ته واک ورکړچې دافغانستان دوسله وال پوځ قطعو اوجزوتامونوته دجګړه ییزو عملیاتو دبیا پیل امرورکړي.

زه قصداً غواړم داخبره په ګوته کړم چې دافغانستان دوسله وال پوځ قطعوته امرورکړشو، ځکه ددغو عملیاتو اصلي بار دهمدوی پر اوږو اودهمدوی پروسلو پروت و، دځلویښتم لښکر قطعاتو عمدتاً تامیناتي وندې سرته رسولې.

ددسمبر په شپاړسمه پوځونه مجبور شول، خپلو عملیاتو ته دوام ورکړي. دغه وخت نود ګردیز اوستیوکنډو ترمنځ سړک تول زموږ په لاس کې و، مادقوماندانی

زموږ لاس ته راغلي و ، ځای پرځای کړ ،فکر کوم ډیر کم کسان دي اړ شوي وي چې د سمندر له سطحې د دریو زرو مترو له لوړې څوکې نه د عملیاتو لارښوونه وکړي.

په خوست کې مود شوروي دیسانت یو کنډک او دافغاني کوماندویانو یوه لوا راکوزکړل . په دې توګه ډیر ښه شرایط رامنځته شول او قطعات له دوو غاړو یو دبل خواته پرمخ روان شول.

هغو قطعو چې له ګردیز نه یې دخوست پرلور حرکت کړی و ، ګام په ګام دسړک خواته پرتې لوړې څوکې نیولې او دموټري سړک کنترول یې په خپل لاس کې اخیست.

دځدرانو قبیلې پوځي ډوله ټولیګو خپل مقاومت ته دوام ورکاوه ،دښمنانو دشوروي توپونو په مورچلو او مخامخ دقوماندانۍ پرمرکز رساډزې کولې.

موږ دجګړه ییزو عملیاتو په ترڅ کې دشړنی په نامه دزیرمو یو مرکز چې خوست ته نږدې دستېو کنډوو په جنوب کې پروت و ، لومړی کلابند او وروسته له منځه یوړ . په دغو عملیاتوکې د پراشوتي دیسانت د ۳۴۵ لمبر مستقل غنډ سرتېرو او افسرانو ښه میړانه وښودله . هغه وخت ددغې قطعې قوماندانۍ دیوه ډیر ښه انسان ،هوښیار افسر او د شوروي اتحاد داتل ډګرمن والیري السنکاندر ویچ واستروتین پرغاړه و د چې سرتیرو ته دعبادت ترپولې ګران و . دادوهم ځل وچې هغه افغانستان ته راته . دخپل لومړي سفر په وخت کې ډیر سخت ټپي شوی و ، خود ډاکټرانو په همت نه یوازې ژوندی پاتې شو ،بلکه خپلې محاربوي قطعې

دزیرمو ددغه مرکز تباه کیدو دوسله وال اپوزیسیون دمقاومت دوروستی ماتې اودشوروی عسکروپه لاس دگردیز – خوست دلویې لارې دکیوتولاره هواره کړه، دمخالفوډلو مشرانوچې نورپوه شوی وو، دجګړې نتیجه به څه شی راوخیږي، خپل پلانونه له ستنې بدل کړل. هغوی دوسلو، مهماتو او نوروجنګي وسایلو دټولولو او راوړلوپرځای، دهغو زیرموساتلوته خپله ټوله پاملرنه واړوله چې پخوا لادخوست په لویې اولسوالۍ کې ځای پرځای شوې وې.

دڅلوېښتم لښکر قوماندانې پوهیدله چې د «لویې لارې» دعملیاتو په ترڅ کې زموږ اصلي دنده دستوکنډو نیول اودښمنی دزیر موتباه کول دي. موږ ددغو اهدافو په ترلاسه کولوسره کولی شول، دخپلې لارې په اوږدوکې نورټول پراته خنډونه له منځه یوسو. په واقعیت کې هم همداسې وشول.

دنوي ۱۹۸۸ کال له راتګ نه څلوېشت ساعته مخکې ددسمبر په دیرشمه موسږ ک له ماینونوچاودیدونکو موادو اوکندوکپرونه پاک کړ اوپه خوراکي موادوبارلوموټرنی لارې موپرې خوشې کړې. هره ورځ له ګردیزنه د خوست پرلور دوه درې قطارونه خوځېدل. دجنورۍ په ۱۹ وروستی قطار له کلابندۍ څخه دژوغورل شوي ښار، خوست څخه، بیرته تش راستون شو. په دغه موده کې دڅلوېښتم لښکر موټر چلوونکو ۲٤ زره ټنه بیلابیل مالونه ولیږدول. په دې موادوکې اساسي برخه دخوراکي شیانو او تیلو وه.

تقریباً درې اوونۍ شوروي سرتیرو دلارې په اوږدوکې په «پهره دارخانو» کې

ځان وباسي او بيا د مالونود ليږدولو ، بهيرتم کړي ،خوهڅوی په دغه کاربريالي نه شول.

دجنوري په شلمه مودجګړې له ډګرنه په منظم وتلو پيل وکړ. دڅلوېښتم لښکر قطعاتو دوسلواو مهماتو څه دپاسه سل زيرمې ،يوه زياته اندازه بيلا بيلې وسلې ،څلورټانکونه او (۹) زغره وال ګاډي ونيول. مخکې هم موږ غنايم لاس ته راوړي ، خو هيڅکله يې اندازه دومره زياته نه وه. زموږ دسرزيان هم بيخي لږ و.

ددغو عملياتو ستره نتيجه دخوست داوږدې پوځي او اقتصادي کلابندۍ ماتول وو. له دې سره جوخت دافغانستان له خاورې نه دخوست دبيلولو اوهلته دمستقل اسلامي دولت دجوړولو په هکله داووه ګوني اتحاد دمشرانو پلانونه هم په اوبو لاهوشول.

تريوې زياتې اندازې د «لويې لارې »دعملياتو په لړکې دمجاهدينو سترې ماتې دوسله وال اپوزيسيون پرمشرانو د خلکو باور له منځه يووړ او دهغو په منځ کې دنه باور روحيه پياوړې شوه.

دخوست دکلابندۍ دماتولو لپاره دبرياليو عملياتو له امله سترجنرال والستين وارينيکوف ډګروال ويتالي پاولف، واړه ضابط يوري اسلاموف (په مړينه) اوسرتري سرګي ايګولچنکو ته دشوروي اتحاد داتل لقبونه ورکړل شول زما نوم هم په دې لړکې راغلی و.

دمتحدو ایالتونو دبهرنیوچارو وزیرانو دافغانستان دشاوخوا حالاتو دسیاسي هوارۍ په هکله په ژنیو کې پنځه سندونه لاسلیک کړل. دژنیو له تړونونوسره سم چې یوه میاشت وروسته نافذیدل، دشوروي اتحاد محدودو پوځي ټولیګو باید دنهو میاشتو په لړکې دافغانستان خاوره خوشې کړې وای.

مامخکې یادونه کړې چې له افغانستان نه دشوروي پوځونولومړنۍ ډلې د ۱۹۸۰ کال په جون اوجولای کې وتلې وې .هغه وخت دټانک ځوځندونه، دپلیوفرقودتوغندیو قطعې ، دهوايي مدافعې دتوغندیو اوتوپچي یوه لوا ءاو ځیني نور قطعات وتلي وو.

ښکاره ده چې هغو وتلو په هڅ ډول ددولتونو ترمنځ پریکړه پورې اړه نه لرله. دځلوېښتم لښکر دپرسونل د بیاسمبالتیا اړتیا ترهرڅه لومړی په افغانستان کې دپیل شویو جګړو دپوځي معقولیت ،دهیواد دجغرافیایي جوړښت اودسیمې دځانګړتیا وله امله منځ ته راغلې وه.

زمونږ دپوځونو لومړی ځل وتل هم دا په ډاګه کوي چې دشوروي اتحاد دوسله وال پوځ ستردرستیز په دې هېواد کې دپوځي حرکاتو په سمبالتیا پوره غورنه وکړی.د ۱۹۸۰ کال په دوبي کې دپوځونو دوتلو حقیقت په خپله ددې څرګندوی دی چې دځلوېښتم لښکر په وړاندې یوه نسبتاً محدوده دنده پرته وه،یعنې دحکومتي قواو ننګه او داپوزیسیون دوسله والو ډلو دمقاومت ماتول.

په ۱۹۸۲ کال کې دشوروي اتحاد خاورې ته څونورې قطعې هم ستنې کړې

دشوروي محدود و پوځي ټولګيو دبشپړې اوروستۍ وتنې کارچې دژنيو په تړونونوکې هم ورته اشاره شوې وه، په دريو پړاوونوکې بشپړ شو.

لومړی پړاو په ۱۹۸٦ کال پورې اړه پيداکوي او داهغه وخت دی چې دشوروي اتحاد ددفاع وزارت په يواړخيزه توګه خپل شپږ محارب غنډونه له افغانستان څخه باسي. دشوروي اتحاد مشرتابه داپريکړه ددې لپاره کړې وه چې له يوې خوا خپل ښه نيت څرګند کړي او له بلې خوا دملي روغې جوړې دتګ لارې دتاييد لپاره ترې دغوره او قانع کوونکي دليل په توګه ګټه واخيستل شي. سربيره پردې، موږ ټولې نړۍ ته په هرمناسب فرصت کې له افغانستان څخه دوتلو په هکله خپل نيت وښوده. پوځيانو نه يوازې ددغه هيواد دلانجو دسياسي حل په اړتيا ټينګار کاوه، بلکه په دې لاره کې يې ټاکلي ګامونه هم اوچتول.

د۱۹۸۸ کال داپريل په اوومه دشوروي اتحاد ددفاع وزير يوه امريه لاسليک کړه چې په هغې کې دځواکونود ايستلو او دتګ په وخت کې دهغو دامنيت دساتلو څرنګوالی په ګوته شوی و. دغه امريه په بشپړه توګه دځلويښتم لښکر دقوماندانۍ دوړانديزونو په رڼاکې جوړه شوې وه اودمحدودوشوروي پوځونو دايستلو دويم پړاويې د ۱۹۸۸ کال دمی له پنځلسمې نيټې څخه په پام کې نيوه. وروستۍ پوځي قطعه د ۱۹۸۹ کال دفبرورۍ په پنځلسمه دشوروی اتحاد له دولتي پولې نه وراوښتونکې وه.

... په ۱۹۷۹ کال کې ...

کوشک په ختیځ لوري کې : له غزني ، گردیز او جلال آباد نه راټول شوي ځواکونه په کابل کې باید سره یوځای شوي وای. وروسته باید دغوقواوو دسالنگ له غاښې نه د پلخمري سیمې ته پښه اړولې وای. او له هغه ځایه یې د ترمز پرلور نهایي مارش سرته رسولی وای.

دمی له ۱۵ نه داگست تر ۱۵ پورې شوروي عسکر له نهوگار نیز ونو څخه راوایستل شول. څه د پاسه پنځوس زره سرتیري او افسران په ختیځ کې له جلال آباد ، غزني او گردیز نه ، په لویدیځ کې له کندهار او لښکرگاه نه او د غه راز په شمال ختیځ کې له فیض آباد او کندز نه ووتل. دژنیو له تړونونو سره په بشپړ سمون کې د څلویښتم لښکر په سلو کې پنځوس پرسونل خپل هیواد ته ستون کړی شو.

په دریم او ورورستي پړاو کې چې د ۱۹۸۸ کال له دسمبر نه د ۱۹۸۹ کال دفبروری ترپنځلسمې پورې موده په کې دهمدغې ورځې په گډون راتله ، د څلویښتم لښکر پاتې نیمایي برخه هم وایستل شوه.

مور د افغانستان له خاورې نه دجگړې په حالت کې وتلو. اپوزیسیون هم دشوروي لښکرو وتلو ته ځان چمتو کاوه. هغوی گومان کاوه. چې څنگه د هیواد له خاورې نه دوروستي شوروي عسکر پښه ووځي ، کابل رژیم به د څو اوونیو په ترڅ کې دړې وړې کیږي.

دلښکر قوماندانی ته د پوځونو د وتلو ټوله پیچلتیا او دروند والی ، په تیره بیا

والو ډلو دناڅاپي يرغلونو دمخنيوي لپاره شديد تدبيرونه سنجولي وو. عملاً مودسترو جنګي عمليا تودسرته رسولو تياري هم درلود.

دمحدودو پوځي ټوليګوله لوري، دغواو پراتيفي اقداماتو بشپړ د دفاعي بڼه درلوده. موږ خپل استخبارات ښه فعال کړي وو. دباندېونو دنقل او انتقال پرله پسې څارنه موکوله او دڅلوېښتم لښکر دقطارونو په هکله دهغو له پلانونو څخه پوره خبرؤ. ددښمنانو دټوليدو او احتمالي سيمې اوزمورد پوځونو دتګ لارې ته دهغو دراوتلو ګودرونه موتربشپړې څارنې لاندې نيولي وو.

زما دامرله مخې دلارو امنيت خورا پياوړی شوی و. دځواکونو داستفادې وړټولې لارې اوسړکونه پرپخوا نيو محافظتي پوستو سربيره د ۱۰۸ او پنځم لمبر پليو موتوريزه او دغه راز دهوايي ديسانت د ۱۰۳ لمبر فرقو له خوا بشپړې کلابندې شوې وې.

داړتيا په صورت کې څلوېښتم لښکر چمتو و، دافغانستان پرهره سيمه چې يې غوښتي وي، دفاعي يا متقابل ګوزار وکړي.

په ډېرو خطرناکو سيموکې مودهوايي اوتوپچي ځواکونو دعمل څرنګوالی په غورسره ټاکلی و. هغه ټولې سيمې چې دقطعاتو ددمې مرکز ته نږدې پرتې وې، دشپې له خوا پرله پسې دالوتکو په مرسته روښانه ساتل کيدل دې کار دد ښمنانو دغلچکي رانږدې کيدلو مخه نيوله.

آبادي کړې وې. دقاغوشونو، زيرمو، خوړنتونونواو د نورو پوځي تاسيساتو زياته برخه له کم دوامه او داسې موادونه جوړه وه چې بيرته راسپړل کيدلی شول.

پوځيانو په افغانستان کې پخې ودانۍ نه وې جوړې کړې. دخدای فضل وچې زموږ مشرانو دومره هوښياري کړې وه چې له خښتو اوکانکريټونه يې دېدانيو جوړول نه ووپيل کړي.

زما په نظر په وړيا توګه دځلويښتم لښکر دټولو تاسيساتو دورکولو پريکړه سمه بريښي. له لرګيو څخه جوړو ودانيو له اووه ،اته کاله استفادې وروسته دبيا سپړلو زغم نه لاره.

دولايتونو مشرانو دشوروي پوځونو دستنيدو په وخت کې ،له هغوی سره دمخه ښې ډيرې تودې غونډې جوړولې يوازې په کابل کې دافغاني لوري په حواله دمی په ۱۵، ۱۶ اونورو ورځو کې دپايتخت له منځه دقطارونو دتيريدو دمهال ويش په پام کې نيولو سره دمخه ښې په غونډو کې څه دپاسه سلوزرو تنو ګډون کړی وه دغه رانيو جلال آباد کې له شوروي افسرانو ،سرتيرو اووړو ضابطانو سره څه دپاسه دولسو زرو وګړو ( ؟دج) مخه ښه کړې ده. زما په نظر داحقيقت ډيرخه روښانولولی ش...

په اتيا يمو کلو کې دافغانستان حالات دډيرو دپريشانۍ سبب ګرځيده . دژنيو تړون له لاسليک وروسته د « دربيمې نړی » په هيوادو کې دلانجو دغوڅولو بيخي

ځان ته اړوله.

دځواکونو دوتلو بهیر داسترالیا ، ایټالیا ،هسپانیې ،انګلستان ،کاناډا ، دامریکې دمتحدو ایالتونو ، سویډن ،جاپان ، المان اونورو هیوادوڅخه دپاسه دووسوو خبریالانو روښاناوه ،له هغوسره یوځای دشوروي خبریالانو یوې کوچنۍ ډلې یعنې ددولتي راډیو ، تلویزیون ،دنووستي دمطبوعاتي او دتاس دخبري اژانسونو څخه دپاسه لسو استازیوهم فعالیت درلود . هغوی ترکابله اوله هغه وروسته دشمال پرلور زموږ پوځونه بدرګه کول. دیادونې وړوه چې ډیرو خبریالانو غوښتل زموږ په قطار ونوکې له پوځونو سره یوځای حرکت وکړي. موږ داسې غوښتنې زیاتره ردولې ، ځکه هره شیبه ددې احتمال وچې غنډ یاکنډک ترناڅاپي یرغل لاندې راشي یوازې دخپلوخوهیوادوالولپاره استثنا ته قایل شو. نورتول مودالوتکو په وسیله دحیرتانواو ترمز سیموته لیږدول چې بیایې له همدې ځایه له پولې نه دپوځیانو دتیریدو جریان نږدې ته خپراوه ،دالومړی ځل وچې ژور نالیستانوته دعمل بپشړه ازادي ورکړل شوه او هغوی په خپله ددې شي احساس کولی شو. هغوی د روانو پیښوله بهیر نه دحقیقي رپوټونو دبرابرولولپاره پوره امکانات لرل.

د ۱۹۸۸ کال دمې په ۱٤ مه په کابل کې لومړې مطبوعاتي کنفرانس دایرکړ. زما په عقیده دغه کنفرانس دزیاتې پاملرنې وړ وګرځید. ددې خبرې لوی دلیل داوچې ژورنالیستانو بالاخره امکان پیداکړچې دخپلې خوښې هرډول

موضوعګانې مطرح شوې. په افغانستان کې زموږ دسرله زیانونو ، نه نیولي ، بیا په دغه هیواد کې دحالاتو دسیاسي رغاونې ترلاروچاروپورې البته چې ځینې « چیچونکې » پوښتنې هم رامنځته کیدلې .هیله من یم چې زما ځوابونو به دژورنالیستانو قناعت حاصل کړي و. هغه وخت او همدا اوس ددې خبرې دپټولولپاره هیڅ اړتیانه شته چې شوروي عسکروپه افغانستان کې کوم کارونه سرته رسولي دي.

## دماتې په درشل کې

دافغانستان واکمن مجبوروو ،له هغه هیواد نه دشوروی پوځونو له تګ وروسته ،زیاتې جدي مسألې دچاله مرستې پرته حل کړي. دتبرولسو کلوپه څیر ،نورنونه شوکیدای ، دشوروي سلاکارله خولې نه په راوتلې خبرې زړه وتړل شي.زموږ دسلاکارانو اوکارپوهانو غوڅ اکثریت ته لارښوونه وه چې د ۱۹۸۹ کال دفرورۍ له ۱۵ نه ډیر مخکې له افغانستان څخه ووځي.دځلوښتم لښکرله ننګې پرته هلته دهغوی پر یښودل غیر معقول کار و.

دافغانستان مشرانو په خپل هیواد کې دشوروي پوځونوله وتلو وروسته دسیاسي او پوځي حالاتو بدلون ته فعالانه چمتووالی نیوه.په دې برخه کې ډیر څه (هسې چې بریښیدل ) ساده هم نه وو.

دافغانستان وسله وال پوځ دایتایمې لسیزې په پیل کې دپرسونل دشمبر او

په ښکاره او بېرحمه جګړه لاس پورې کوي، خو افغاني مشرانو ددې پرځای چې دخپلو عسکو د روحي حالت پیاوړ تیا او داستخباراتی او استخباراتی ضد چارو چټکتیا ته پاملرنه وکړي، دهغوی په قول یې «دافغانستان دوسله وال پوځ دبیا تجهیز» کارپیل کړ. په بله ژبه، هڅه یې کوله چې په باقی پاتي فرصت کې له شوري اتحاد نه تر وسه وسه زیات شیان لاس ته ور وړي. افغانانو په ټینګار غوښتنه کوله هغه وسلې لاس ته وروړي چې تردغه وخته یوازې دځلو یښتم لښکر پوځیانو درلودې.

د۱۹۸۸ کال په پای کې دافغانستان ددفاع وزارت په مصنوعي توګه یعنې دکاغذپرمخ دخپل پوځ د منسوبینو شمېر څوواره زیات کړ. دافغانستان نظامي لارښوونکو دوسلو له پلوه دخپلو پوځیانو کمزورې سمبالتیا ته په ګوتې نیولو او په دې حقیقت باندې تکیې سره چې دقطعاتو شمېرېې بیخي زیات شوی دی، له موږ دبیابیا دنورو وسلو او تخنیکی جنګي وسایلو غوښتنه کوله. یو متناقض حالت منځته راغی: هره ورځ افغانستان ته دوسلو استول چټکیدل. خو په دغو وسلو د پوځیانو دسمبالښت درجه ټیټیدله. له دې سره جوخت دافغانستان ددفاع وزارت د وسله تون په زیرموکې له ډېرو شتو وسلونه کارنه اخیستل کیده. دافغانانو په قول ددې خبرې دلیل دهوښیارو وړوماهرانونشتوالی و.

رارسیدونکې وسله، مهمات او تخنیکي وسایل به زیر مه کیدل. سره له دې چې موږ پوهیدو. هغوی څرګنده غولونه پیل کړې ده، بیا موهم نه شول کولی په هغه

بیابیا غوښتنې کولې.

دځلویښتم لښکر دمټیو په زور دهیواد په عمده سیمو: جلال آباد ،کندهار ،گردیز ،کابل ،کندز ،هرات ، فیض اباد اوشینډنډ کې دضروري شیانو د درې میاشتنیو زیرود دتیارولو کارپه بیړه روان و.

د ۱۹۸۸ کال په پیل کې دشوروي اتحاد دحکومت غړی ځوځو واره افغانستان ته راغلل . شیوارد نادزې اویازوف هغه کوله منځ ته راغلې ستونزې ځای په ځای وڅیړي او دحل لارورته ومومي.

تقریباً دنوامبر په میاشت کې له کابل اوکندهار سره جوړوشیو هوایي پلونو په فعالیت پیل وکړ .له هغو نه عمدتاً داوږو دلیږلو لپاره کاراخیستل کیده شک نه شته چې په دې ترڅ کې وسله مهمات او نورجنگي وسایل هم لیږدول کیدل. دورځې په رڼا کې هره ورځ دکابل په هوایي ډگر کې له ۱۵ نه تر ۲۰ پورې ایل. ۷۶ ډوله الوتکې راکوزیدلې دابیخي زیات شمېر گڼل کیږي. سربیره پردې سلگونه ټنه نور مواد دموټرو په وسیله هم لیږدول کیدل.

اوس چې له هغه وخته څوکلونه تیر شوي ،سړی کولی شي داسې نتیجه واخلي چې هغه ناپایو اقتصادي او پوځي مرستو چې شوروي اتحاد په ورستیو میاشتوکې له افغانستان سره وکړي ، دنظروړ نتیجې ورنه کړې. موږ یوازې دومره وکړی شول دکابل رژیم ژوند او هغه هم دیوې یرې لنډې مودې لپاره اوږد کړو. ددې خبرې تر ټولو عمده دلیل دافغانستان د پوځي اوسیاسي مشرتابه نا اغیزمن

کولی له شوروی سلاکارانو پرته یو مستقل گام پورته کړي.

زموږ د مرستو زیاته برخه په تیره بیا په وروستیو میاشتو کې چوره لوټیدله. دایې یوه ډیره غوره بیلگه ده:

له افغانستان نه د وتونکو قطعو په ډله کې ٦٦ لمبر پلې موتوریزه لواء هم راتله چې په جلال آباد کې ځای پرځای وه. د دغې قطعې دایستلو د چارو په سمبالښت زما په گډون د ځلویښتم لښکر د قرارگاه یوشمېر افسران او جنرالان بوخت وو.

په جلال اباد کې موږ د خوړو، تیلو او جنگي مهماتو دېرې میاشتنۍ داسې زیرمې جوړې کړې وې چې چالاس هم نه و وروړی. عسکري قشله چې په کې قاغوشونه، خوړنځی، حمام او روغتون شامل وو، په همانغه اصلي حالت پریښودل شول، تابه ویل سرتیري ترې دیوې لنډې مودې لپاره وتلي او گنې بیرته راستنیږي. په کټونو کې بسترې همانغسې هوارې او منظمې جوړې وې. پر کټونو پاندې روجایي گانې خپرې او دهرکټ خواته دایښې میز تر څنگ څپلکې پرتې وې. کاغوشونو ټول ضروري شیان درلودل. داوبو نلونو شپه او ورځ کارکاوه.

دافغانستان دارودو استازو ته وسلې او جنگي تخنیک بې عیبه او بې نقصانه وسپارل شو. له جلال آباد نه زموږ د قعطې له وتلو څو ورځې مخکې دافغانستان ددفاع وزارت دافسرانو په حضور اوله هغو سره اوږده په اوږه مو جنگي وسایل درفتار او انداخت په حالت کې معاینه کړل او ومو ازمایل. له دغه ازمیښت

دمی د ۱٤ ورځې په سهار شوروي پوځيانو دغه چوڼۍ بيخي خوشې کړه. سربيره پردې له تګ څلرويشت ساعته مخکې دغه لواء له خپلې چوڼۍ نه بهرپه يوه بيدياکې کېږديو ته لېږدول شوې وه.

افغاني لوري اړوند سندونه لاسليک او بيا يې په چوڼۍ خپل ساتونکي وګمارل، خو دهمدغې ورځې په دويمه نيمايي کې دغه پوځي چوڼۍ ټوله تالاشوه. ټول لږ يا ډير قيمتي شيان لکه تلويزيونونه، راډيوګانې، کولرونه او ان دسر تيرو چپرکټونه د بازار په ه‌وکاندارانو وپلورل شول. په ډيرو کوټو کې نه ورپاتې شو اونه کړکۍ. د يادو لوړ ده چې ددغو وروستيو شيزونو (وراوکړکۍ) بازارپه افغانستان کې خوراګرم و.

څوورځې لانه وې تيرې چې دجلال آباد دلومړي لمبر قول اردو قوماندان جمهور رئيس نجيب الله ته خبروکړ چې په هغه چوڼۍ کې دموادو درې مياشتنۍ زيرمې بيخي نه شته. په داسې حال کې چې همده خپله دهغوی د تسليمۍ سندونه لاسليک کړي وو. له همدې امله وروسته دڅلويښتم لښکر قوماندانۍ پريکړه وکړه چې دخپلو قطعو مربوط مالکيت نه يوازې دښار، اولسوالي يا ولايت داستازيو په حضورکې افغاني لوري ته وسپاري، بلکه هغه د ويډويي کمرې په واسطه ثبت هم کړي.

په مجموع کې شوروي پوځي قوماندانۍ افغاني لوري ته د ٦٩٩ ميليونه روبلو په انډول ١٨٤ پوځي چوڼۍ او دغه راز د ٣, ٩٨ ميليونو روبلو په انډول

کیږي، دشوروي پاتې قطعو دوتلو له امله دلته تر پخوا زيات کورنۍ ځپ ځپاندي ترسترگو کیږي. هم رژیم او هم مخالفو ځواکونو خپله پوره پاملرنه دفرورۍ ۱۵ نیټې یعنې هغې ورځې ته اړولې چې دژینو له تړونونو سره سم په افغانستان کې زموږ دلښکرو د حضور موده پای ته رسیږي. له دې سره جوخت دغه موده دکابل لپاره نوره هم لنډه، تنگه شوې ده، ځکه چې له دغه ښارنه باید زموږ پوځي ټولگي دفبرورۍ په پیل کې ووځي.

تقریباً دهیواد په هر گوت کې دحکومت او مخالفینو ترمنځ دجگړو تنور تود دي چې دهغو په ترخ کې حکومتي ځواکونو تراوسه خپلې مورچلې دپخوا په څېر ساتلي دي، خو دشوروي هوایي ځواکونو په مرسته، مخالفینو ونه کړای شول جلال آباد، کندز یاکندهار ونیسي. خو ټولو ته جوته ده چې اصلي «وزلوبه» به وروسته پیل کیږي. اپوزیسیون خو اوس ان تریوې اندازې خپل جگړه ییز فعالیت کم کړی هم دی چې دراتلونکي پراولپاره خپل ځواکونه زیرمه کړي ملگری نجیب الله داگنې چې مخالف ځواکونه به دشوروي لښکروله وتلو سمدلاسه وروسته په یوه وخت کې په ټولو مهمو لوروبرغل پیل کړي.

باید ټینگاروشي چې افغاني ملگري دحالاتو له راتلونکې پرمختیا څخه اندیښمن دي. په مجموع کې له غلیم سره دهغوی دمقاومت نیت نورهم پیاوړی شوی او دهمدې مقصد لپاره یې ځیني عاجل اقدامات کړي او هڅه کوي له خپلو شتو امکاناتو نه معقولو گټه واخلي. هغوی تر یوې اندازې د یو شمیر مسلح والو دلې

کړې دي. . .

دافغاني ملګرو په نظر ، تر ټولو مهمه خبره داده چې لږ ترلږه دشوروي لښکرو له تګ وروسته بايد درې څلور مياشتې مقاومت وشي اوله هغه وروسته کيداى شي دحالاتوتله ددوى په ګټه ورکړه شي. داخبره داپوزيسيون ديوشمېر هغو څرګندونو له مخې هم تاييد يږي چې په اسلام اباد کې يې له شوروي استازو سره دتماسونو په ترڅ کې کړې وې .له هغو څرګندونو نه جوتيدله چې که دنجيب الله حکومت پرځاى پاتې شي اوله ځانه دفاع وکړي شي نودوى به دخبرو اترو ديوه لوري په توګه دهغه دنه منلو په هکله پرخپل اوسني دريځ نوى نظروکړي.

په داسې حالاتوکې مونږ له يوشمير پيچلو ستونزوسره مخامخ کيدونکي يو. له يوې خوادفبروړۍ تر ۱۵ دځواکونو دبشپړې ايستنې په هکله زمونږ له مخکې نيول شوې اوټولوته څرګندې پريکړې څخه سرغړونه ، کيدى شي په نړيوال ډګر کې مونږ ته سخت ناوړه عواقب رامنځته کړي. له بلې خوا هيڅ اميد نه شته چې زمونږ له وتلو وروسته به هغه رژيم چې ټوله نړۍ يې په مونږ پورې تړي ، له سختو خطرونو سره نه مخامخ کيږي. په تېره بياچې اپوزيسيون په دغه زماني فرصت کې دپاکستاني اوامريکايي پوځي کړيو په لمسون هڅه کوي ، خپل فعاليتونه تريوې اندازې هماهنګ کړي. له دې امله هم انديښنې شته چې دافغانستان دخلکو ديموکراتيک ګوند تراوسه هم يوموټې شوى نه دى او دپخواپه څيرپه کې فرقه يي ، قبيله يي او نور اختلافونه پاتې دي. ځيني افغاني مشران په خپلو

او دهغه د کابینې ځینې وزیران ډیر کمزوري کار کوي.

داحقیقت هم جدي بریښي چې پاکستان دژنیو له تړونونوڅخه نه یوازې ښکاره، بلکه په سپین سترگي سرغړوي. پاکستانی سرحدیان دافغانستان په خاوره کې دننه جګړو کې مخامخ ونډه اخلي. دپاکستان له خاورې نه افغاني کلي ویشتل کیږي. دوسلودرالیږلو بهیر پرله پسې جاري دی اووسله والې ډلې راروانې دي. په پیښور او نوروښارونو کې دافغاني مخالفو گوندونو دفترونه، تعلیمي مرکزونه اوکمپونه ښکاره پرانستي دي او داټول کارونه په هماغه بڼه چې ضیاءالحق تیاکلې وه، سرته رسیږي شک دی چې بینظیر بوټودې په نږدې راتلونکي کې ددغه حالت دبدلو وس پیدا کړي.

موږ او افغاني لورې پرله پسې دمشخصو مواردو په ذکرسره، دپاکستاني واکمنو داډول کړنې غندلي او غندو یې. په پام کې ده چې همداتگ لاردبه په راتلونکي کې هم اوان دملگرو ملتودامنیت په شوراء او خپله له پاکستاني واکمنو سره دتماس په ترځ کې. جاري ساتل کیږي.

۱ - اساسي خبره چې دحالاتو راتلونکې وده هم له هغې رازیږي، داده چې ایاواکمن کولی شي کابل او نور لوی ښارونه اوپه لومړي گام کې همدا پایتخت په خپل لاس کې وساتي که نه؟ دکابل اوضاع ډیره نازکه ده او اوس خوله پوځي ستونزو نه مخکې اقتصادي ستونزې راولاړې شوې دي. داپوزیسیون داپلان بیخي ځرگند دی چې کابل له اقتصادي پلوه محاصره کړي. هلته دخوراکي شیانو

ووهي. ددغسې اقتصادي محاصرې په لړ کې اپوزيسيون کابل ته د موټرو په وسيله دخوراکي موادو درسولو په لاره کې خنډونه اچوي ،هغه تالاترغې کوي اودموټروچلوونکي دتطميع او تهديد له لارې ځان ته راماتوي.

اوس اوس يوازې کابل هره مياشت نږدې ۱۵ زروټنو غنموته اړتيا لري. په دې وروستيو وختوکې شوروي زمکنيو اوهوايي ترانسپورتي وسيلو څوزره ټنه غنم هلته وروړي دي. خوپه کارده چې داسې قوي زيرمې ، لږ ترلږه د دريو مياشتو لپاره منځ ته راوړل شي چې واک يې دجمهور رئيس په لاس کې وي. دغه زيرمې کولی شي ، په افغاني ملګرو کې پرځان دويسا روحيه پياوړې کړي.

څرنګه چې ددغسې غنبتلو زيرمومنځ ته راوړل ، يوازې دموټري ترانسپورت په مرسته شوني کيدلی شي ، نوځکه په دې لړکې دحيرتان ، کابل پرلويه لار داوړواونورو خوراکي موادو دانتقال خبره راپورته کيږي. دملګري نجيب الله په وينا کـه دغـه لاره لږ ترلږه دمی ترمياشتې خلاصه وساتل شي ،نو درژيم د بقاضمانت کيدلی شي. ددغې لارې خلاص ساتل ،زموږ له مرستې پرته ، دافغاني ملګروله وسه وتلی کاردی. بنايي دااصل په پام کې ونيول شي چې دحيرتان ،کابل دلويې لارې بنديدوته بايد اجازه ورنه کړل شي. په دې لړکې بايد زياته پاملرنه ددغې لارې ترټولو حساسې اوژرزيانمنکيدونکې برخې يعنې دسالنګ غاښيي او دهغه درې کيلومتره اوږد تونل ته واړول شي.

دخوراکي موادو درسولو په لاره کې دخنډونو اچولو لپاره داپوزیسیون هڅې .وغندل شی او په دې لړ کې دې زیات ټینګار دواکمن رژیم په برخلیک نه ،بلکه ددغو ښارونو دملکي اوسیدونکو په بد حالت وشی چې ددغسې وحشی عملونو په پایله کې لانور زیانونه هم ویني.

اصولاً په دې برخه کې کیدای شي لاندې وریانتونه په پام کې ونیول شي:

لومړی واریانت. دملکي وګړوبد حالت ته په اشارې کولوسره دحیرتان ،کابل دلو یې لاری ساتلو لپاره دیوې فرقې یعنې دنږدې ۱۲ زروتنو پاتې کول.دا وریانت ډیر مطلوب ځکه نه بریښي چې سمدلاسه به په ملګرو وملتونو کې داپوښتنه رامنځته شي چې موږ ګنې خپل سرتیري بشپړنه دي ویستلي.سره له دي چې پاکستان دژنیو دتړونونو له مخې خپلې ژمنې نه عملي کوي،غالب ګومان دادی چې په ملګرو ملتو کې به دهیواد وغړې اکثریت زموږ ملاتړ ونه کړي، ځکه چې دعسکرو موضوع دډیروله خوا دلانجې اصلي زړی بلل کیږي.

دویم واریانت. په کابل او نورو دښارونو کې دلوړې سره دوګړومخامخ کیدوته په اشارې سره ،له ملګرو ملتونه غوښتنه کول چې ښارونوته خوراکي مواد اوتیل ورسوي او دیادې شوې لویې لارې دفعالیت دتامین لپاره پوځي ټولګي ورولیږي .دملګرو ملتود پوځونو درسیدو تروختـه په دغه سیمه کې زموږد عسکرو ایسارول، ځوخاصې بشري دندې یعنې وګړوته دخوړو او تیلو درسولو کارونه سرته ورسوي، له دې سره جوخت دې داخبره یاده شي چې شوروي اتحاد خپل

رسیدو سره به زمونږ پاتې ټولګي سمدلاسه شوروي اتحاد ته سترنیږي.

خوداوریانت هم عملاً ناممکن بریښي، ځکه چې دعسکرو دلیږلولپاره دامنیت شورا پریکړه ضروري ده او داهغه څه دي چې تمه يې نه شي کیدای.

دریم واریانت. له پلان سره سم دفبروري تر ۱۵ دټولو پوځونوویستل دي بشپړشي او داخبره دې د شوروي اتحاد او افغانستان دحکومتو داعلامیو له لارې په نړیواله سطحه انعکاس ومومي له دې وروسته د افغانستان حکومت دنړۍ له هېوادونو نه دملکي مالونودلیږدولوپه کارکې دمرستې غوښتنه کوي اوددغو قطارونو د امنیت ساتنه شوروي عسکروته سپارل کیږي. کیدای شي ددغسې قطارونوتیرولوکارزمونږ دعسکروله وتلو دوه اوونۍ وروسته پیل شي. ددغې مودې په ترڅ کې دې نړیوال عامه افکاردا پوزیسیون داعمالو دغندنې لپاره تحریک شي چې هڅه کوي، دافغاني ښارونو وګړي له لوږې ووژني، ددغسې عامه افکاروپه رڼا کې کیدای شي زمونږ دقواوو له خوا دملکي قطارونوبدرګه یو طبیعي بشردوستانه عمل وبریښي. خوله دې سره جوخت ددې وریانت دتطبیق په صورت کې مجبوریږو هرځل دلارې ځینې برخې دجګړې په مرسته پرانستې وساتو.

څلورم واریانت. دفبرورۍ تر ۱۵ دې تقریباً دټولوشوروي پوځونو ایستل بشپړشي. رسماً دې دشوروي پوځونودبشپړې وتنې په هکله اعلامیه خپره شي. له دې سره جوخت دې دلویې لارې په اوږدو کې افغاني لوري ته د ځینو پوستو دساتلو په پلمه دسالنګ دغاښې په ګډون دلارې په ځینو حساسو برخوکې زمونږ قطعې

اوبوازې دومره دې وويل شي چې دافغاني لوري له خوا دځينو پوستو د تسليمي په کارکې دځنډله امله څه موده نورهم زموږ ډېرکم پوځيان دلته پاتې کيږي، د يو څه مودې له تيريدو وروسته ،لکه چې په دريم وريانت کې يې اټکل شوی دی. زموږ د پوځي گزمې په بدرگه دې دکابل خواته دقطارونوتيرول پيل شي.

په دې ټولو واريانتونوکې داټکی په پام کې نيول ضروري برېښي چې په دغو عمليا توکې زموږ منظم پوځي ټولگي برخه اخلي، خوداهغه ټولگي دي چې پرسونل يې په افغانستان کې لادميشتو شوروي قطعو اويادهغو پوځيانو له منځه په داوطلبانه توگه غوره کيږي چې دخدمت دوره يې پای ته رسيدلې او شوروي اتحاد ته ستانه شوي دي په دې لړ کې دې دعسکرو لپاره له ۸۰۰ نه تر زرو روبلو پورې تنخواه (چې يوه برخه به يې په افغانيو ورکول کيږي) وټاکل شي او دافسرانو تنخواه دې هم ښه ډيره زياته کړای شي.

ټريوالو ښارونکو ته دې بلنه ورکړل شي (او داخبره دې ډيره تبليغ هم شي) چې کولای شي وگوري چې موږ ريښتيا هم غير پوځي بارونه دافغانستان دوگړو لپاره ليږدوو. په نړدې راتلونکي کې دې له افغانستان سره دملگرو ملتوداقتصادي او بشري مرستو دپروگرام دځانگړي ناظم له آغاخان سره خبرې اترې وشي چې دهغو مقصد به داقتصادي محاصرې په مرسته دکابل اونورو لويو ښارونو دزندۍ کولو لپاره دافراطي ډلو دهلوځلو پرخلاف ،دځانگړي ناظم پروگرام اوميکانيزم نه گټه اخيستل وي.

درو ،درملوبار دملګرو ملتو قطارونه نه یوازې د پاکستان له لارې ، بلکه ترزیاتې اندازې د شوروي اتحاد له خاورې نه تېرشي.

په دغو ټولو څلورو واریانتونو کې د ۱۹۸۹ کال د فبرورۍ له پنځلسمې نیټې وروسته په افغانستان کې د یو کم شمېر شوروي پوځونو د ساتلو احتمال یاد شوی دی.

کیدای شي یویل یا پنځم واریانت هم وڅیړل شي: شوروي لښکرې د فبرورۍ تر ۱۵ نیټې پورې بشپړې له افغانستان څخه وځي، خو موږ له افغاني لوري سره دهغوی دځواکونوله خوادحیرتان ،کابل دلویې لارې دساتنې په ګډون په ډیرو چاروکې نورې مالي مرستې کوو. مثلاً کیدای شي (دلارې دساتونکوقطعو) خرڅ او ټوله سرپرستي دیوې ټاکلې مودې لپاره پرخپله غاړه واخلو، خوداکارهم ډیرې ستونزې لري،په تیره بیا دقطارونودامن تیرولو په برخه کې.

ترکومه ځایه چې دکابل دهوايي دګرخبره ده، نوکیدای شي ددغه ډګردارزښت په پام کې نیولوسره هلته دسلوتنوپه شمېر دد یسپچرۍ ملکي مامورین له افغاني لوري سره دجلاتړون له مخې پرېږدو.

۲- افغاني مشران داغوښتنه هم کوي چې زموږ دلښکروله وتلو وروسته دې هم له شوروي خاورې نه دمخالفینو پرمورچلو هوايي ګوزارونه دوام ومومي. افغاني ملګروته ددې مسألې ټوله پیچلتیا په ګوته شوې ده او ویل شوي چې په دې موضوع دې غوروکړي چې څنګه کیدای شي له خپلو هوايي ځواکونو نه

دې سره جوخت هغوی وايي چې په ځينو سختو حالاتو کې شوروي هوايي ځواکونو نه کاراخيستل بيخي ضروري بريښي. ښکاره ده چې دامسأله دټولو کورنيو اوبهرنيو عواملو دمجموعې له څيړنې پرته نه شي مطالعه کيدای.

۳- افغانان په دې ډير ټينګارکوي چې دوسلې داسې قوي ډولونه لکه د ر- ۳۰۰ ډوله توغندي او د اوراګان په نامه دتوغنديو ويشتو نکي سيستمونه بايد ولري. په دې برخه کې ښکاره ده چې دهرې وسلې په ارتباط دې جلا جلا چال چلند وشي، خو عمومي سياست دې دافغاني دوستانو دهيلو تروسه وسه په سرته رسولو بناشي. بايد په ياد وساتل شي چې ددغو وسلو درلودل زموږ ددوستانو دريغ له رواني پلوه پياوړی کوي او هغوی ته په خپلو متو دباور احساس ورکوي. دهمدې ټکي په پام کې نيولوسره دافغانستان جمهوريت د (خاص ګارد) په قطعاتوکې دادی د (اوراګان) لواګانې جوړې شوی دي. ترکومه ځايه چې د ر- ۳۰۰ ډوله توغنديو خبره ده، نوهغه هم کيدای شي افغاني لوري ته وسپارل شي خوداکاربايد په صادراتي بڼه ددغو توغنديو له عيارولو اودهغو دمراقبت اودکارونې لپاره دافغاني پرسونل له روزنې وروسته وشي. دغه چارې هم بايد په دېره چټکۍ دشوروي اتحاد په خاوره کې تر سره شي.

٤- غوره به وي که دافغانستان په سرحدي سيموکې دشوروي اتحاد دسرحدي ځواکونوله امکاناتو نه دګټې اخيستنې مسأله په مثبته توګه حل شي، خوداټکی دې په پام کې ونيول شي چې دسرحدي موټري ګزمې اوسنې موجودې ډلې هلته

۵ - موږ په دې وروستیو وختو کې دهغو ځانګړیو شرایطو په پام کې نیولوسره چې اوس اوس په کې افغانستان ګیرد ی ،له خپلو افغاني دوستانو سره په اقتصادي ډګر کې ډیرې مرستې کړي دي . دغو مرستوله هغو ټولو ستونزو سره سره چې دهغو په رسولو اوویشلو کې ورسره هم موږ اوهم افغانان مخامخ شول ، بیشکه دحالاتودنامطلوبې پرمختیا مخه ترډیره حده ونیوله .

خوله دې سره سره دافغانستان دحالاتو پیچلتیا او دهغه ځانګړي ارزښت په پام کې ساتلوسره چې اقتصادي مسألې یې په کورني سیاست کې لري ، موږ ته په کارده چې یوځل بیا دامسألې په پوره غوروڅیړو . باید هوډوکړوچې د افغانستان داقتصاد دژرغورلولپاره چې په بد حالت اوان دتباهۍ دکندې پرغاړه ولاړ دي ، نورڅه اضافي ګامونه او چټولي شو . داوسنیو سختو ستونزو دلیرې کولو اود کابل اوبدخشان په ګډون دهیواد نورو ولایتونو ته دخوړو اونورو ضروري موادودرسولو په کارکې څه ډول بیړنۍ مرستې کولی شو .

٦ - له دغو اقداماتوسره جوخت دې له افغاني لوري سره دپخوا په څیر مرسته وشي چې په پاکستان ،ایران اولویدیځې اروپا کې له میشتو مخالفینو سره تماسونه ټینګ کړي . موږ باید دمخالفینو ټول روحي حالت په غور وڅیړواو پرهغوی داغیز ښندلو ،دهغوی دبې اتفاقه کولواوله افراطینونه د (منځ مهالو) درابیلولو لپاره مناسب فرصتونه ومومو .

په دې ترڅ کې اوس اوس مهمه خبره داده چې دملګرو ملتو دسرمنشي

راتلونکي دولتي جوړښت د ټاکلو لپاره د یوې مشورتي شورا رامنځته کول دي.

۷- زموږ د دیپلماتیکو ذرایعو له لارې به غوره وي که د افغانستان په لانجه کې په یو ډول نه یو ډول له ښکېلو ټولو دولتونو سره په راتلونکي کې هم تماسونو ته دوام ورکول شي.

ځانګړې پاملرنه دې له پاکستاني لوري سره د تماسونو تداوم ته واړول شي او ددې مقصد لپاره دې په اسلام آباد کې د شوروي اتحاد د بهرنیو چارو وزیر له راتلونکو خبرونه هم ګټه اوچته شي.

۸- په کار ده چې د افغانستان په اړوند دقیق تبلیغات پیل شي او ددې مقصد لپاره دې مخکې له مخکې د افغانستان د حالاتو د پرمختیا ټول محتمل واریانتونه ژور وڅېړل شي. په دې لړ کې به مهمه خبره په افغانستان کې د یوځي حالت د اعلام تبلیغول وي، په دې شرط که جمهور رئیس نجیب الله د غسې یو اقدام ته زړه ښه کوي.

د ۱۹۸۹ کال د جنوري ۲۳

۱- شواردنادزی، و، چبریکوف، ۱. یاکوفلیف، د. یازوف، و. موراخوفسکی، و. کریوچکوف».

## اوس لا هم د رژیم لپاره خطر شته دی

زموږ داټکل له مخې له افغانستان نه د شوروي عسکرو د ټلو

تربشپړیدو وروسته، به د غه هیواد کې په سمدلاسه د (خلق) او پرچم ترمنځ

مبارزې د ریغ زیات کمزوري کولی شو.

دحکومتي واکمنۍ دعمومي کمزورتیا په ترڅ کې دا امکان پوره موجود وچې په ځینو ولایتونواوان په ټول هېواد کې د ځینو لارښوونکوله خوا دبډوخوړلو ،غلا اوخیانت ځپه پیاوړې شي.

دا امکان هم وچې دافغانستان وسله وال پوځ ،څارندوی او ددولتي امنیت ارګانونه به دمحدودو پوځی قطعاتو له ملاتړپرته دجګړه ییزو راتلونکو عملیاتو په لړکې چې په ژر پیل کیدوکې یې هیڅ شک نه و ، له مخالفو ډلوسره له مخامخ نښتو نه ډډه کوي. په داسې حال کې دحکومت تر واکمنۍ لاندې سیمه تنګه او لاتنګېدونکې وه. دمقاومت مرکزونه عمدتاً دولایتونو په مرکزونو کې منځ ته راغلي.

د ۱۹۸۹ کال ترجنورۍ پورې یاغیانو دافغانستان شپږ ولایتونه بشپړ په لاس کې لرل: بامیان، کونړ، پکتیا ، کاپسیا ، بدخشان اونورستان، هغوی دغه راز د ۲۹۰ اولسوالیو له ډلې نه په ۲۰۷ کې خپله واکمي ټینګه کړې وه. دهیواد دخاورې یوازې په سلوکې ۱۸ دحکومت په قبضه کې وه.

زموږ دمحاسبې له مخې دیاغي ډلو دغړیو شمېر ۱۷۶ زروتنو ته رسیده. له دې ډلې نه ۸۵ زرو تنو تل وسله پر اوږه ګرزوله اوپاتې یې دوخت په تقاضا دجګړې ډګرته راوتل.

دمخالفو ډلو غړیوښه ډېره پرمختللې وسه لرله. دمجاهدینو په زیر

د توغـولو زرد سـتگاوې او د غـه راز د ټانگ ضـد توغندي ويشـتـو نکو د يرش سيسـتمونه ، نږدې شل غـرني توپونه ، ۱۵۰۰ بې پسـلگده توپونه ، درې زره هاوانونه ، نږدې اته سـود د هوايي مـدافـعـې غـرنی دسـتگاوې او د .ش.ک (داشکه) ډوله ۴۰۰۰ درندې ماشينگنې موجودې وې. د سپکو وسلو او په دې ډله کې د داسې نسـبتـاً درندو ډولونو لکه د ټانک ضـد توغندي ويشـتـو نکو شـمـېر لسگونو زرو ميلو ته رسيدد.

په افغـانسـتـان کې زمونږ د حضور په وروستيو مـياشتو کې مـخالفينو د شوروي چونيو ، اداري مرکزونو او مواصلاتو خلاف خپلې ورانکارۍ چټکې کړې. يوازې د ۱۹۸۸ کال په دسمبر کې ۷۸ ځله پر شوروي عسکرو يرغل شوی دی. د دولتي تاسيسـاتو او حکومتي عـسکرو خـلاف د دغـسـې يرغلونو شـمـېر ۷۰۰ ته ورسيدد. مجموعاً د يوه وروستي کال په لړکې د ځلوېښتم لښکر د قطعو او جزوتا مونو خلاف له دښمنی نه دډکو او ورانکارو عملونو شمېر (۱۸۰۰) ته رسيده ، په داسې حال کې چې همـدا عـملونه دافغـانسـتـان د حکومـتي ځواکـونو خـلاف (۱۲۰۰۰) ځله تکرار شوي دي. په ټوله دغه موده کې ياغيانو ۵۹ هوايي هدفونه ويشـتـلي چې لـه دغـې ډلې نـه (۹) الوتکو او هليکوپټـرونو د ځلوېښـتم لښکر په هواي ځواکـونو پورې اړه درلوده سربيـره پردې په هوايي اډو د يرغل له امله موهم لس الوتکې او څلور و هليکوپټري له لاسه ورکړل.

بریښیده چې د دولتي ادارو د کارکوونکو او د حکومتي قطعو او جزوتامونو مفسرینو روحیه ورځ په ورځ کمزورې کیږي. د وسله وال پوځ له لیکونه تیښتې ډله ییزه بڼه غوره کړه. یوازې دیو کال په لړکې دافغانستان دار دوله لیکونه ۳۲ زره پوځیان وتښتیدل.

دا پوزیسیون مشرانو وپتیله چې دافغانستان دحکومت خلاف دورانکارې عملیات به ډیرزیات چټکوي. په دې لړکې دپایتخت دنیولو پرنقشه باندې هم کارپیل شو، خو دافغانستان دلویو ښارونو په بریالۍ دفاع کې، تاکلی رول هغه ژوریدونکي اختلاف ولوباوه چې دڅلوېښتم لښکر له وتلو وروسته د (اووه گوني اتحاد) په لیکوکې راپیدا شو. څومره چې په افغانستان کې دشوروي عسکروشمېر کمیده، هومره داپوزیسیون دمشرانو ترمنځ اختلافونه ژوریدل. مونږ دواک دترلاسه کولو لپاره دهڅو په لړکې دډراماتیکوصحنو شاهدان وو. په دې لړ کې له ټولونه انتعطاف نه منونکی، حکمتیار راوخوت، هغه له خپلو پخوانیو انډیوالانوسره هیڅ ډول مصالحې ته نه وتیار او ان دیوه داسې احتمال یادول یې هم ردول چې په کابل کې دې گنې دواکمنۍ داهرم په راس کې له ده پرته بل څوک راښکاره شي.

په ۱۹۸۸ کال کې دڅلوېښتم لښکر دجگړه ییزو عملیاتو په نتیجه کې دمخالفو ډلو ځواک سخت کم شوی و. دافغاني وسله وال پوځ له جزوتامونو سره اوږه په اوږه موډېر وخت دلویو لارو په اوږدوکې دپرتو سیمو په پاکولو

عملیاتو په لړکې پرهغوی دړې وړې کوونکې گوزارونه کول. شوروي عسکرو له زروزیاتې دهوایي مدافعې غرنۍ دستگاوې او درندې ماشینگنې، د توغندي ویشتونکوشپږ سوه دستگاوې او څه د پاسه دیرش زره ریاکتیف توغندي، څه د پاسه ۷۰۰ هاوانونه او دهغو ۲۵۰۰۰ گولۍ او دغه رازیوزیات شمیر سپکه وسله او څه د پاسه دولس میلیونه کارتوس نیولي او ضبط کړي وو. د ۱۹۸۸ کال په دویمه نیمایي کې دڅلویښتم لښکر ځواکونو له ایران او پاکستان نه راخوځیدلي دمخالفینو ٤۱۷ کاروانونه ونیول، خوله دې سره سره مجاهدینو دافغانستان حکومت ته د ښخوا په څیر گوابن متوجه کړي و.

## تمیدل ولې شوني نه دي ؟

زموږ دوتلو په لاره کې دخنډونو پیدا کولو لپاره دافغانستان دواکمنو هلې ځلې له انساني پلوه، د پوهیدو وړدي، خو که چیرې داکارشوی واي، نود شوروی اتحاد گټو ته ډیر سخت زیان رسیده.

ترهر څه لومړی، شوروي اتحاد دنړیوالو تړونو نود ماتوونکي په نامه په نوې بڼه معرفي کیده. محدود و پوځي تولیگو (په افغانستان کې دحضورلپاره) هغه یوه کمزوري غوندې توجیه چې درلوده، یعنې دافغان، شوروي ددوستۍ تړون چې یوه ماده یې له افغانستان سره د پوځي مرستو دکولو اجازه ورکوي، هم له لاسه ورکوله، داخبره هم باید له یامه ونه غورځول شي چې دافغان، شوروي د تړون له

کې دلاس وهنې یاد دغه هیواد د نیولو د توجیه په غرض معتبر سند نه باله. په دې توگه نو د ۱۹۸۹ کال د فبرورۍ له ۱۵ نیټې وروسته که څلوېښتم لښکر په افغانستان کې پاتې کیدای، نو بیا به یې د خپل حضور لپاره هغه پخوانۍ قانوني توجیه هم نه درلودای.

د پوځونو د ویستلو د مهالویش بدلون هم له مخالفو وسله والو ډلو سره د جگړې د تودیدو سبب گرځیده. په داسې حالاتو کې د دې احتمال ډیر وچې مخالف قوماندانان سره لاس یو کړي او پراخ او هراړخیز یرغل پیل کړي.

شوروي پوځي قوماندانې اړ کیدله چې یوځل بیا د اپوزیسیون د ډلو د ټولیدو پرځایونو هوایي او توپچي گوزارونه له سره پیل کړي او دغه کار د سر د زیانونو د زیاتوالي سبب گرځیده.

د دې حقیقت په پام کې نیولو سره چې د اپوزیسیون یوغټ قوماندان احمد شاه مسعود د هیواد په شمال کې فعالیت درلود، موږ مجبوریدو چې د افغان، شوروي گډې پولې ته نږدې جگړې تودې کړو، یوځل بیا به د هیواد اصلي لویه لار چې د څو شمالي ولایتونو له منځه تیره شوې، له خطر سره مخامخ شوې وای.

د شوروي محدودو پوځي ټولگیو په ویستلو کې ځنډ به په ایران او پاکستان کې د میشتو افغاني کډوالو ستونزې نورې هم زیاتې کړې وای. د دغو هیوادو حکومتونو ښه پلمه په لاس ورحاصلیده چې خپلې پولې وتړي او خپل هیواد ته د سلگونو زرو کډوالو د راستنیدو مخه بنده کړي. موږ ځکه دې شي ته

کړه والوستونزې ته اړولې وه.

له افغانستان نه د شوروي ځلوېښتم لښکر په ویستلو کې د ځنډله ټولو منفي عواقبو سره سره د ۱۹۸۸ کال په نوامبر کې د شوروي اتحاد د بهرنیو چارو وزیر ادارو دشیوارد نادزې په نوښت دځواکونو د ویستلو کار ودرول شو.

دهغه مهال ویش له مخې چې د شوروي اتحاد د دفاع وزیر منظور کړی و، ځواکونه باید د نومبر په میاشت کې د کابل له ګارنیزیون نه وتلي وای، خوداکار په دوو دلیلونو چې رسماً اعلان شوي وو، سرته ونه رسیده. لومړی ځکه چې په کابل کې د خوړو د زېرمو د ډکولو لپاره ډېر وخت ولګیده. دویم له دې امله چې حکومتي ځواکونو نه شول کولی، د ترمز، کابل پر لویه لاره د ځلوېښتم لښکر پوستې په پوره چټکتیا تسلیم او د دغې لارې امنیت په خپله غاړه واخلي.

په واقعیت کې خبره داوه چې موږ ته امر شوی و، د نجیب الله په غوښتنه له کابل څخه ونه وځو. د محدودو پوځي قطعاتو ټولګي دوه میاشتې نور تر وروستۍ شیبې د دې لپاره په کابل کې وساتل شو چې د افغانستان حکومت ته موقع ورکړل شي، د وروستي ځل لپاره د واکمنۍ او آزادۍ په ښکلې هوا خپل سږي ډک کړي.

د دغې ماجرا غوښتنې په نتیجه کې مجبور شو له کابل نه ایله د ۱۹۸۹ کال د جنورۍ په دویمه په وتلو پیل وکړو، په لومړي ګام کې د پوځي تاسیساتو کارکوونکو او د ځلوېښتم لښکر د پوځي تأميناتو قطعو خپلې چونۍ

سر ته رسیدل دهوا دخرابۍ له امله نور هم ګرانیدل. همشینی لړې او غبار د تودوخې ټیټه درجه ،ساړه ،دسمندر له پاسه دڅلور وزرو مترو په ارتفاع کې کنګل شوی سړک ،دجنوبي سالنګ پرڅنډوو پاس ختل او په شمالي برخه کې بیر ته کښته کوزیدل، کندې او دواورې ښو ییدنې، داټول هغه شیان وو چې سړی یې اړ ایسته ،فکرو کړي چې ګنې طبیعت هم زموږ خلاف متې رانغښتې دي.

دغسې اوږدې څوورځنۍ لارې ، هم دلاري دساتلو نکوا و هم دهغو سرتیرواوافسرانوبې شانه زیارغوښته چې په پوځي واسطوکې دننه ناست وو.

## « توفان »

دلښکر قوماندانۍ پرله پسې هغه سیمې په خپل کنترول کې ساتلې چې دقواوو دتیریدو سرکونو ته خیرمه پرتې وې اپوزیسیون چې موږ ورته مخکې اخطارورکړي و ، دڅلویښتم لښکر دوتلو په لارکې خنډونه نه اچول.

دښمنانو په ۱۹۸٦ کال کې دشپږومحاربو غنډونو دایستنې په پام کې ساتلو سره چې په پټه دسړکونو خواته دراتګ او په قطارونو دهغوی دغلچکي برید هڅې سختې تکول شوې وې ،داځل له مخامخ کیدونه ډډه کوله. یوازې دځینو مجاهدوقوماندانانو دلنډفکره اعمالو له کبله مبجور شولو ، دځینو جلاجلاډلو خلاف وسلې ته لاس واچوو.

دساري په توګه مو ، دجنوبي سالنګ په سیمه کې داحمد شاه مسعود پرډلو

ورسیده. نجیب الله د مسعود په ځیره کې خپل سخت دښمن لیده. هغه پوره باوري وچې د شوروي لښکرو له وتلو وروسته به احمد شاه د لومړنیو کسانو په ډله کې وي چې کابل ته به راننوځي. باید اعتراف وشي چې د افغانستان جمهور رئیس خپل لرلیدونه سم تشخیص کړي وو. هرڅه چې وو خو نجیب الله په دې بریالی شو چې شیوارنادزي قانع کړي او ډیر ژر ماته د دفاع وزیر ستر جنرال د. ف یازوف له خوا امروشو چې د سالنګ په جنوبي برخه کې پرپرتو سیمو باندې ګوزارونه وکړم.

نجیب الله په دې توګه خپل یو بل مقصد هم ترلاسه کړ او هغه داچې ځلوېښتم لښکر د خپلې ارادې خلاف بیاد اپوزیسیون خلاف په جګړه اخته شو، له دې سره جوخت هغه لړزانده شان روغه جوړه چې په دومره سختۍ موحاصله کړې وه، هم ډېرې وړې شوه.

په افغانستان کې د شوروي پوځي قوماندانۍ ځو واره هڅه کړې وه چې له مسعود سره د دې لپاره تماسونه ټینګ کړي چې دوینو تویېدو او بې ځایه قربانیو مخه ونیول شي. د شوروي پوځونو د وتلو په وخت کې مو وکړای شول، له مسعود سره د دواړو غاړو لپاره د قناعت وړ یو توافق حاصل کړو. موږ له خپل لوري چمتو وو چې هم له هغه او هم له هغو خلکو سره چې د افغانستان په شمال ختیځو ولایتونو، د پنجشیر په نامتو دره او د سالنګ په سیمه کې چې دده د واک لمن په کې پلنه وه، او سیدل، د خوراکي موادو او نورو مادي نعمتونو مرستې وکړو. په دې لړ کې یومهم

دمسعود ډلې په جنوبي سالنګ اولويې لارې ته په څيرمه پرتو سيمو کې جګړه يېزعمليات ونه کړي. پرپوځي پوستو او مورچلو بايد ډزې ونه شي. موږ له خپلې لورې ژمنه کړې وه چې ان د مسعود دهغو ياغي ډلو خلاف چې دلارې په څنګ کې ځای پرځی شوې وې، يرغل ونه کړو.

له هغه وروسته چې موږ د نجيب الله په غوښتنه ددښمنانو پرمورچلو ډزې وکړې، مسعود له شوروي استازو سره له هرډول تماس نه سرو غړاوه، ډيرژر دهغه له خوا يوليک راورسيد چې په کې ويل شوي وو:

«ښاغلی مشاور»

ماچې څنګه ستاسو وروستی ليک ترلاسه کړنوچمتو وم چې د کتنې ځای ته دروخوځيږم. غواړم ستاسو خبرتياالپاره يادونه وکړم: لس کاله کيږي چې موږ ستاسې دحضور اودجګړې تحمل کوو. که دخدای رضاوي، يو څوورځې نور به هم داتحمل وکړو، خوکه تاسو جګړه له سره پيل کړه، نوموږ به هم مناسب ځواب درکړو، نوربس دی له همدې شيبې نه خپلو ډلو او ټوليګو ته لارښوونه کوم چې دتيارسئ په حال کې اوسي.

په درناوي

۱۹۸۸ کال د دسمبر ۲٦ نېټه.

احمد شاه مسعود

لاري په اوږدو کې دحکومتي پوځونو دپوستو دځای پرځای کیدو په وړاندې خنډونه اچوي. موږ هغه ته اخطارورکړی وکه مخالفې ډلې په ډزو پیل وکړي نو شوروي پوځونه به اړشي چې له زور نه کارواخلي .موږ داحتمالي تلفاتو مسوولیت دمسعود پرغاړه اچولی و.

نجیب الله دهیواد دشمالي ولایتونواوسیدونکوته دخطاب ویناواوروله .هغه دافغانستان دحکومت اود څلویښتم لښکر دریځونه په تفصیل سره روښانه کړل اوله مسعود نه یې وغوښتل چې دڅلویښتم لښکر دقطارونودتګ پر لاره اود شوروي پوستوپرځای دافغاني وسله وال پوځ دځای پرځای کیدو په وړاندې خنډونه وانه چوي.

له دغو ګواښونو سره سره د ۱۹۸۹ کال دجنورۍ په ۲۳ دجنوبي سالنګ په برخه کې حکومتي پوځونه پرلوېې لارې دحرکت په وخت کې ترسخت اورلاندې ونیول شول. داکار داحمد شاه مسعود پرډلود څلویښتم لښکر له خوادډیرقوي ځوابیه ګوزارسبب شو.

دافغانستان په خاوره کې دشوروي لښکروروستي جګړه ییزعملیات دتوفان په نامه ونومول شول. دعملیاتو هدف دهیواد په مرکزي اوشمالي ولایتونو کې غلیم ته دښمنه ډیرزیان رسول اودغه راز دشوروي ځواکونو دوتلو په وروستي پړاو کې دقوي وسله والې مبارزې له امکاناتو نه دهغه بې برخې کول وو.

دعملیاتو په لړ کې دمحدودو پوځي تولیګو زیات ځواک اووسایل په کاراچول شوي وو . دڅلویښتم لښکر هوایي ځواکونو دمجاهدینو پرمرکز ونودبمباریو لپاره ترزرو زیاتې الوتنې وکړې. دساري په توګه: د جنورۍ په ۲۴ - ۲۵ له

توپچي ځواکونو څه دپاسه ۴۰۰ اورنۍ دندې سرته ورسولې.

د ۱۹۸۸ کال په پای کې څلویښتم لښکر د توغندي ویشتونکې جلالوا خاوند شوی هم و. ددې کار هدف، له هوايي ځواک نه کمه ګټه اخیستنه او د پیلوټانو دژوندانه ژغورنه وه. دنوامبر او جنورۍ ترمنځ موده کې مودعادي سرګلولو درلودونکي ۹۲ توغندي ویشتلي او په ډله ییزو هدفونو مو ۸۸ ځله ګوزارونه کړي دي. عملاً دغه ټول ګوزارونه د اپوزیسیون پر عمومي زیرمه ځایونو لکه وسله تونونو ترسره شوي دي چې په کې ریاکتیف توغندي او دهغو د ویشتلو دستګاوې، دمسلسلو توغندیو دویشتلو سیتمونه، دسپکووسلو ګولۍ اودسون مواد ساتل کیدل. موږ له خپلې مستقلې راکتي لوانه په کاراخیستلو سره اپوزیسیون دخپلو راټولو کړیو زیرمو د کارونې له امکان نه بې برخې کړ.

ددغو جنګي عملیاتو په لړکې موخپل مقصد ترلاسه کړ. محدودو پوځي ټولګیو دوسله والو مخالفو ډلو مشرانو ته ډانګ پییلی وښودله چې هغوی باید له افغانستان نه دشوروي پوځونو دوتلو په کارکې، په تیره بیا په زور زموږ دوتلو په مهال ویش کې دبدلون راوستلو چارې ته زړه ښه نه کړي.

## موږ وځو

د ۱۹۸۹ کال دجنورۍ په ۲۵ لا په افغانستان کې دشوروي محدودو پوځي ټولګیو دیرش زره سرتیري او افسران پاتې وو. دڅلویښتم لښکر بنه دوتلو په وروستي پړاوکې پوره ځواکمنه بریښیده. دغه لښکر څلور فرقې او په دې ډله کې

څلور هوايي غنډونه او د هليکوپترو څلور ډلګۍ او د غه راز څو ضربتي کنډکونه درلودل.

د څلوېښتم لښکر قطعاتو د پوځونو د ويستلو د چارې د سمبالښت ترڅنګ د مواصلاتو، د ځانګړو مقرراتو درلودنکو سيمو او نورو تاسيساتو ساتنې ته هم دوام ورکاوه، د ساري په توګه په ختيځ لوري کې د سړکونو د ساتنې چارې ته ۲٦ کنډکونه ګمارل شوي وو، څه د پاسه څلورنيم زره پوځيانو په ۱۹۹ امنيتي پوستو کې دنده سرته رسوله. دريونورو کنډکونو د تلو په لويديځ مسير کې ورته دندې سرته رسولې. په ټول د غه هيواد کې ۲۵ کنډو کونو د هوايي اډو ساتنه کوله چې د پرسونل شمير يې څه د پاسه اوو زرو سرتيرو او افسرانو ته رسيده.

د څلوېښتم لښکر قوماندانۍ د پخوا په څير د کابل د امنيت ساتنې ته ځانګړې پاملرنه کوله. د ۲۵ کيلومترو په شعاع له ۱۰۲ امنيتي پوستونه جوړ ملاوستنی پرښار راتاوشوي و. د دې ترڅنګ ضربتي ځواکونو او د هوايي ډيسانت د ۱۰۳ لمبر فرقې جزوتامونو د مجاهدينو د تګ راتګ د احتمالي مسيرونو اوړدو کې د کشف او استخباراتو عمليات سرته رسول.

د کابل هوايي ډګر د ۲۸ امنيتي پوستو او مورچلو په مرسته ساتل کيده. څلوېښتم لښکر د کابل د ننه د ۱٦۰۰ کيلومتره مربع مساحت په سيمه کې د ځانګړو مقرراتو د تطبيق لپاره هره ورځ له څلورونه ترشپږو توپچي لواګانونه کاراخيست چې ټول ټال د څه د پاسه سلو توپونو او هاوانونو لرونکي

سیموکې مجموعاً څه د پاسه څلورنیم زره تنه په دنده بوخت وو .

دڅلويښتم لښکر له جزوتامونوڅخه ان دهغو دوتلو په درشل کې ،دهیواد لیرې پرتو سیموته دخوړو درسولو په کارکې ګټه اخیستل همداسې جاري وو .

دحکومتي زیرموبسیاکولولپاره پنځه مستقل موټری کنډکونه په کاراچول شوي وو .یوازې دوروستیو دریومیاشتو په لړکې ( ۸۵۰ ) پوځي موټرو ۲۷ زره ټنه بیلابیل غیرپوځي اوبشري مالونه لیږدولي دي .

زما له پریکړي سره سم ،دڅلويښتم لښکر وروستی ټولګی دفبروري په څلورمه له کابل نه ووت .دجنوری له دیرشمې ورځې راهیسې د دریو ورځو په لړکې دهوايي ځواکونو زیاته برخه دبګرام له هوايي اډې نه دشوروي اتحاد خاورې ته ولیږدول شو ،په هغو پسې سمدلاسه وروسته ، دهوايي اډې ساتونکي جزوتامونه هم له دغه ښاره لاړل. دفبروري په اتمه دکابل او دسالنګ دغاښي ترمنځ واټن کې ،دڅلويښتم لښکرله پوستونه دپرسونل دګام په ګام ټولولوکارپای ته ورسیده ، دوه ورځې وروسته زموږ قطعات دغاښي له شاوخوانه وایستل شول اودغه لویه لاره دحکومتي ځواکونوپه واک کې ورکړل شوه .

په لویدیځه برخه کې شوروي پوځونه دفبروري په څلورمه له شینډنډ او دفبروري په ۱۲ له هرات نه ووتل .

دفبروری له ۱۱نه تر۱٤ پورې مودڅلويښتم لښکرهغه جزوتامونه چې دسالنګ دغاښي اوحیرتانوترمنځ واټن کې پاتې وو ، دترکستان دپوځي حوزې

د ۱۹۸۹ کال د فبرورۍ په ۱۵ د افغانستان له خاورې نه د شلو ښتم لښکر د قطعو او جزوتامونو د ويستلو کار بشپړ شو. په دې توګه شوروي اتحاد دژنيو تړونونه په بشپړه توګه ترسره کړل.

# بری که ماتې

په دې وروستيو پنځو سو کلو کې نړۍ د څه د پاسه (۹۰) سيمه ييزو جګړو او شخړو شاهده وه. د هغو ځينې ډيراوږده او د زيا تو تلفاتو سبب شول. خو ځيني نور له پيل سره سم بيا پاې ته رسيدلي دي.

ښکاره ده چې د افغانستان جګړه به په تاريخ کې ځانګړي مقام څکه ومومي چې د يوې لسيزې په اوږدو کې د دغه کوچني اسيايي هيواد د کشالې حل د نړيوالې ټولنې په يو اساسي کړکيچ بدل شوی و، افغانستان د دوو سترو ځواکونو د وزلوبې ډګر او د هغو د سياليو قرباني او د غه راز د ځينو اسلامی رژيمونو د قطعو په لويو کې د توس په پانه بدل شوی و.

ترهغو چې د افغانستان او د ټولې سيمې حالات پوره ټينګ شوي نه وي، ګرانه ده چې سرې د بيلابيلو پريکړو ، اعمال او په لانجه کې د ښکيل ځواکونو ارزښت په عيني توګه ارزيابي کړي، خوله دې سره سره دانن هم کيدای شي ځينې نتيجې واخيستل شي.

په هره جګړه کې د مخالفو او متخاصمو خواوو، د اهدافو د ترلاسه کولو يا نه ترلاسه کولو د څرنګوالي په پام کې نيولو سره غالب او مغلوب موجود

فبرودي په ۱۵ پای ته ورسیده، خوددغې نیتمې له رارسیدو وړ یر مخکې داسې ناندرۍ پیل شري وې چې ګنې شوروي پوځ په افغانستان کې نه یوازې شا ته لاړ، بلکه سخته ماتې یې خوړلې ده. داموضوع په هنري ادبیاتو کې لاڅه کوې چې ان دوګړو په تازه، تازه خاطرات لیکنه کې هم انعکاس مومي.

زه پوره باور لرم: ددې خبرې لپاره هیڅ دلیل نه شته چې وویل شي څلويښتم لښکر په افغانستان کې ماتې وخوړه، لکه هماغسې چې ددې لښکر د پوځي برې په هکله یادونه هم بې بنسټه بریښي د ۱۹۷۹ کال په پای کې شوروي پوځ بې له کوم مقاومت نه افغانستان ته ننووت دهغه څه خلاف چې امریکاییان ورسره پره ویتنام کې مخامخ شول شوروي پوځ په افغانستان کې خپلې دندې بشپړې سر ته ورسولې او په منظمه توګه بیر ته خپل هیواد ته ستون شو. که د محدودو پوځي ټولګیو د اصلي متخاصم لوري په توګه داپوزیسیون وسله والې ډلې په پام کې ونیسو، نوزموږ ترمنځ توپیر په دې کې وچې څلويښتم لښکر هرهغه څه چې لازم بلل سر ته رسول. خ ډ ښمنانو ایله هغه څه کول چې له وسه یې پوره وو.

څلوېښتم لښکر څواسې دندې درلودې. تر هرڅه لومړی موپه کورنیوستونزو دبرلاسي په کارکې دافغانستان له حکومت سره مرسته کوله. ددې مرستې ستره برخه داپوزیسیون له وسله والو ډلو سره دجګړې به بڼه راڅرګندیدله. سربیره پردې په افغانستان کې دډیرزیات شمیر پوځي ټولګیو دشته والي مقصد له بهرنه دتیري مخنیوی و. دڅلويښتم لښکر منسوبینو دغه دندې یو په یو سر ته

هیڅامحدودو پوځي ټولګیو ته دادنده نه وه ورکړې چې په افغانستان کې دې پوځي برې ترلاسه کړي، ټولو هغو جګړو یادفاعي یاځوابیه بنه لرله چې څلویښتم لښکر یې د ۱۹۸۰ کال له پیله ان زموږ دحضور تروروستیو شیبو پورې په کولو ناچارو. دټولو هغو پوځي عملیاتو هدف چې له حکومتي پوځونو سره یوځای موسرته رسول، داوچې په عسکري چونیو، هوایي اډو او هغو مواصلاتي لارو دیرغل مخه ونیول شي چې په مالونوبارزموږ موټري قطارونه پرې تیریدل.

سربیره پردې د څلویښتم لښکر دځواکونو اوامکاناتو په سلوکې څه دپاسه او یابرخه دافغانستان په خاوره کې دننه دغیر پوځي اوبشري مالونو په انتقال مصروفه وه. داسخت کاران په افغانستان کې دشوروي محدودو پوځي ټولګیو دحضور تروروستیو شیبو پورې روان و. دشوروي اتحاد له خوا دمالونو دارسولو او زموږ دکارپوهانو د زیارله برکته وچې ددغه هیواد اقتصاد پیاوړی (!!!) او هغه دچاخبره په پښو ودریده (. ج)

په عین حال کې داخبره هم باید وشي چې دشوروي اقتصاد ملا دافغاني جګړې تریارلاندې کږه شوې وه. د شوروي اتحاد پخواني صدراعظم نیکلای ریژکوف په خپل وخت کې داقتصاد پوهانو داسې ډله منځ ته راوړه چې دبیلابیلو وزارتونو او ادارو له هغو کارکوونکوسره چې دافغانستان په نه کلنه جګړه کې یې مخامخ یا غیر مستقیمه ونډه درلوده، یوځای معلومه کړي چې افغانستان موږ ته په کومه بیه تمام شوی دی؟

کې دافغاني محصلینو دزده کړې، افغانستان ته دملکي کارپوهانو دلیږلو لګښت او دافغانستان حکومت اووسله وال پوځ ته دورکړل شویو وسلو بیه. افغانستان ته داپریل انقلاب له بري وروسته د «ایروفلوت» (دهوایي شرکت) دالوتکوټولې الوتنې هم وشمیرل شوې او په حساب کې راوستل شوې.

دشوروي اتحاد ددفاع وزارت یوستر رقم وړاندې کړ. پوځي کارپوهانو هم ټول شیان محاسبه کړل: په افغانستان کې دشوروي محدودوپوځي ټولګیو دخوړو له لګښت نه نیولې بیا دبیلابیلو وسلو دمهماتو ترلګښت او دهغوی ترحقیقي بیې پورې.

ریژکوف بریالی نه شوچې دغه پلټنه پای ته ورسوي. دشوروی اتحاد دکورنیو سیاسي پرمختیاووپه نتیجه کې صدراعظم له کاره ګوښه کړای شو. دهغه له خوا دغوره شوي کمیسیون په مرسته راټول شوی اسناد دشیوارد نادزې مخې ته کیښودل شول. احتمالاً هغه نیمګړې محاسبه هم ددومره یوحیرانوونکي رقم څرګندویه وه چې له خپرولو نه یې ډډه وشوه. ښکاره ده چې اوس اوس هیڅوک ددې وس نه لري، هغه دقیق رقم یاد کړي چې دشوروي اتحاد له خوا دافغاني انقلاب په ساتنه دشوي خرڅ څرګندوی وي.

په دې برخه کې یوازې زموږ له خوا له افغانستان سره شوې بشري مرستې استثنا ګڼل کیدلی شي. د ۱۹۷۸ او ۱۹۹۰ کلونو ترمنځ واټن کې دافغانستان داقتصاد لپاره مادهرومسلکي کادرونو په روزنه، دنویو تخنیکي وسایلو په

اعتبارونواو دپوروونو دګټې دوركړې په ځنډولو او دغه راز د وړيامرستو له دركه شوروي اتحاد ټول اته ميليارده او ٦ . ٤٨ ميليونه طلايي روبلونه لګولي دي.

په افغانستان كې شوروي پوځي قوماندانۍ تل داپوزيسيون دمتنفذ وقوماندانانو له تالان، داړه ماری، ورانكارۍ او دملكي خلكو دوژنې له پېښو سره مخامخ كيدله. مهمه داوه چې داډول پېښې په هغو ځايونو كې رامنځته كيدلې چې دځلوېښتم لښكرچونۍ په كې جوړې شوې وې. دښمنانو په دې وسيله غوښتل دسيمې او سيدونكي دشوروي پوځ خلاف ولمسوي دځلوېښتم لښكر قطعات مجبوروو، دمرګ له خطرنه دملكي خلكو دژغورلو اودړنګيدوله خطرنه ددولتي واكمنۍ دسيمه ييزو ارګانونو بچولو په غرض محدودوپوځي عمليات سرته ورسوي.

له بده مرغه دافغانستان حكومت دهيواد په ټوله خاوره كې دخپلو پښو دتينګولو لپاره پراخې هڅې نه كولې. د پوځي عملياتو له برياوو نه مناسبه ګټه نه اخيستل كيده او ځكه موراړكيدلو چې هماغه يوځاى ته بيا بيا ستانه شو.

هركال موپه پنجشير او هغه ته په څيرمه پرتوسيمو كې جګړه ييزعمليات تكرارول. څوځله مودچاريكارو په شنه شپول اوجبل السراج اودغه راز دكاپيسا په ولايت كې عمليات ترسره كړل. ځلوېښتم لښكر دمحمود راقي په سيمه كې دايمي فعاليت درلود. ددې لپاره چې له هغه ځايه مخالفې وسله والې ډلې چې

نن ورځ هم د پخوا په څیر د نهه کلنې جګړې په لړکې دافغانستان د ملکي و ګړو د سر د زیانونو خبره په جدیت سره راولاړه ده . ځینې کسان داسې ارقام یادوي چې د سړي ورته له حیرانتیا نه ښکرونه وشي . مثلاً د یو میلیون وګړو د وژنې خبره کیږي . فکر نه کوم چې د دغې خبرې د اثبات لپاره دې کافي دلایل موجود وي (؟-دج) په تیره بیا داورد و جګړو په تاریخ کې هیڅکله داسې نه دي شوي چې څیړونکو دې ان د خپل لورې د تلفاتو سم شمیر ځانته معلوم کړی وي. ان دااوس هم موږ په پوره باوري توګه نه شو ویلی چې په افغانستان کې زموږ د پوځي اسیرانو یاتري تم شویو پوځیانو له ډلې نه څو تنه ریښتیا هم ژوندي پاتې دي.

دافغانانو د سر د زیان په هکله دیوه دقیق رقم یادول ځکه هم د سړي شک راپاروي چې په دغه هیواد کې دا څو لسیزې چا سرشمیرنه نه ده کړې ، او که دغسې سرشمیرنه شوې هم وای ، دافغانستان په خاوره کې د زیات شمیر کوچیانو د شته والي له امله به بیاهم د غو ارقامو نسبي بڼه لرلی. له همدې ځایه ده چې نه شي کیدای ، د دغه هیواد داوسنیو اولس کاله مخکې اوسیدونکو د څرنګوالي په هکله یو پر تلیز تحلیل سرته ورسیږي.

زما په نظر دافغانستان نفوس لږ ترلږه دوو عیني دلایلو په وجه کم شوی دی. له یوې خوا ، اوږدې جګړې د ماشومانو د زیږیدنې اندازه کمه کړې. له بلې خوا ، د دریو میلیونو کډوالو زیاته برخه د ناروغیو ، تېږونو او یا په ګاونډیو هیوادونو کې

پراخو او مخصوصو عملیاتو ته اړتیا لیدل کیږي چې مقصد یې یوازې او یوازې دو ګړونابودول وي، موږ د دغه کار د سرته رسولو اجازه نه لرله.

د څلویښتم لښکر منسوبینو د افغاني جګړې په ترڅ کې ښه شته منه تجربه راټوله کړه. د ځینو ځبرونکو او سنیو څرګندونو پر خلاف افغانستان ته د پوځونو د لیږلو مقصد د هغو د جنګي وړتیا ازمایل نه وو، د دفاع وزارت کولای شول خپل پوځونه په غرنیو او بیدیایي سیمو او سختو اقلیمي شرایطو کې د فعالیت لپاره د ننه د ترکستان او منځنۍ اسیا په پوځي حوزو کې وروزي او چمتو کړي. د دغه کار لپاره اصلاً د څلویښتم لښکر جوړولو او بیا افغانستان ته د هغه د لیږلو اړتیا نه لیدل کیده.

خو د دې خبرې ردول هم نه دي په کار چې یو شمېر عصري وسلې ریښتیا هم د لومړي ځل لپاره د افغانستان په خاوره کې، د جګړې په ډګر کې ازمایل شوې دي. له دې سره جوخت د جګړه ییز تخنیک او وسلو بیلابیل ډولونه اصلاح او د افغانستان په شرایطو کې د استعمال لپاره چمتو کړی شول.

څه د پاسه شپیته زره هغه افسران چې د افغاني جګړې په بټۍ کې پاخه شوي، دا نن هم د کنډک له قوماندانۍ نیولې، د روسیې د دفاع وزارت تر مقامه په بیلابیلو څوکیو خدمت ته دوام ورکوي. زه پوره باور لرم چې د غه افغانان* او س وسله وال پوځ د ملاشمزۍ جوړوي.

له بده مرغه د افغانستان دراماتیکې پیښې او په دغه هیواد کې د څلویښتم

دي منعکس شوي. لوستونکوته تل زموږ د پوځونو د تعلیمي ، جګړه ییزو
فعالیتونو او یالوستونو په هکله دلنډو راپورونو په وړاندې کولو بسنه شوې ده.
دافغانستان دجګړې په هکله پته خوله غوره کول، زما په نظر ددې سبب شول چې
ددغې څوکاله وړاندې پای ته رسیدلې جګړې دګډون کوونکو په وړاندې ناسم چال
چلند غوره شي، خو واقعیت دادی چې د پوځ زور په وسلو کې نه بلکه دهغه په
وړاندې دخپل اولس په مینه کې څرګند یږي.

شک نه شته چې دسلګونو زرو پوځیانو په منځ کې جنایتکاران هم پیداکیدل.
په ټوله نړۍ کې اوپه هره دوره کې همداسي شوي دي اوله بده مرغه په افغانستان
کې دشوروي وسله وال پوځ محدود ټولګی هم له دغې قاعدې نه مستثنی نه شول،
خو دڅلویښتم لښکر په هکله ریښتیني قضاوت دهغو سرتیرو او افسرانو له مخې
بایدوشي چې په خبروکې نه، په عمل کې یې خپل پوځي دین، میړانه اوغیرت
څرګند کړی دی.

تقریباً دڅلویښتم لښکر ټولو قطعو اوجزوتامونو په منځ کې دوروګلوی
اومتقابلې مرستې روحیه حاکمه وه. د ۱۹۸۸ کال په مني کې ،لهٔ افغانستان نه
دشوروي پوځونو دوتلو په درشل کې لاندې پیښه دپورتني، ادعابنه ثبوت کیدلی
شي:

سلګونو هغو سرتیرو او دقطعو ورو ضابطانو چې دخدمت دوره یې پوره شوې

عسکرو ژوند له خطر سره مخامخ نه شي. که څه هم هغوی پوهیدل: ګولۍ دانه وینی چې کوم عسکر نوکي او کوم پخواني دی. دهرچادمرګ خطر موجود و.

هرڅوک چې دشوروي محدودو پوځي ټولګیو په باره کې هرڅه وايي، دادهغوی کار دی، خوزما زړه دهغو کسانو په وړاندې ددرناوی له احساسه ډک دی چې په څلوېښتم لښکر کې يې خدمت کړی او په افغانستان کې جنګيدلي دي.

دڅلويښتم لښکر تاريخ دميړاني او اتلولۍ زيات مثالونه لري. څه دپاسه دوه سوه زره سرتيري او افسران ددولتي مډالونو او نښانونو په ورکړه ستايل شوي دي. (۷۲) پوځيان دشوروي اتحاد داتلولۍ دمعتبر لقب په ورکړې وياړل شوي دي. دڅلويښتم لښکر (۲۵) سرتيرو او افسرانو ته په مړينه دغه لقب ورکړ شوی دی دا ډير غيرتمن کسان وو. له دغې ډلې نه مې يوشمير دګډ کار له امله له نږدې پيژندل لکه: دشوروي اتحاد فقيد مارشال س. ف اخرايف سترجنرال وارينيکوف ،جنرال آوشف ،جنرال واستروتين او ډيرنور ،هيواد او وسله وال پوځ ته دهغوی خدمت بې شانه لوړ مقام لري.

دافغاني جګړې ترټولو غم لړلې پاڼه زموږ دسرتيرو او افسرانو مرګ و ۱۹۷۰ - کال ددسمبر له ۲۵ نه د ۱۹۸۹ کال د فبروري ترپنځلسمې پورې دڅلويښتم لښکر ۱۳۸۲۳ منسوبين دجګړې په ډګر کې وژل شوي او يا وروسته دورپيښو شويو ټپونو او ناروغيو له امله مړ شوي دي. ددوی په ډله کې ۱۹۷۹ تنه افسران او جنرالان وو. سربيره پردوی ،دافغانستان په خاوره کې ۵۷۲ تنه د

دغــه راز د ۱٤٥ افـســرانو په گــډون ( ۱۹۰ ) پوځي ســلاکــاران هم وژل شــوي دي. ( ۱۷۲ ) افسرانو دورپيښو شويو ټپونوله امله په وسله وال پوځ کې له خدمت نه لاس واخيست. ( ٦٦٦٩ ) تنه « افغـانان » مـعيـوب شـول چې دهغـو له ډلې نه ۱٤۷۹ تنه د لومړۍ کته گورۍ معيوبين وو.

دسختو اقليمي شرايطوله امله چې دمحدودو پوځي ټولگيو په قطعاتوکې يې دساري ناروغـيـوله خـپـريدوسـره مـرسـتـه کـوله، ( ۱۱٥۳۰۸ ) تنه په زيړي او ( ۳۱۰۸۰ ) تنه سرتيري او افسران په محرقې اخته شوي وو.

ماهم له دغو رنځونوخلاصون ونه مونده او خپله مې دا احساس کړل چې په هغو اخته کيدل يعنې څه.

له افغانستان نه دوتلو په وخت کې مې امروکړ، ټولې هغه يادگاري لوحې دې شوروي اتحاد ته له ځانه سره وليږدول شي چې دڅلويښتم لښکر دسرتيرو او افســرانو دمـرگ په ځـاى کـې درولې شـوې وې. دا ټول هغـه څـه وو چې مـوږ په افغـانسـتـان کـې دخپلو وژل شويوملگرولپاره سرته رسولى شـول. نن ورځ زمـوږ هيواد مـجبوردى، دهغه چاڅارنه اومواظبت وکړي چې دهمده په امرې خپل پوځي اوانترناسيونالستي دين بشپړ سرته ورساوه، دولت دوژل شويو کسانو دکورنيو دغړيو پور وړى دى.

## وړاندې به څه کيږي ؟

حسابه لګنبتونه . . . ایاداټول هسې عبث وو ؟ نه که څه همدا یوتریخ حقیقت دی خو باید اعتراف وشي : دافغانستان پیښو ،زیاتو خلکو او په تیره بیا مور ته په ډاګه و ښودله چې په زور سره دسیاسي لانجو غورځول ناشونی کار دی .

زما په نظر ،هم اوسني او هم راتلونکی سیاستمداران باید داخبره په هیڅ ډول له یاده ونه باسي چې یوه هدف او هغه ته درسیدو دلاروچارو ترمنځ بیلتون راوستل غیرمجاز کاردی . یوازې متقابل توافق ، یوازې خبرې اترې او یوازې روغه جوړه کولی شي ،له خنډونونه دوتلو لارپرانیزي ،ترهرڅه لومړي ، دسختو لانجو دغو ځولولپاره دایوازینۍ سمه لار ده .له دې پرته به ان ډیرښه نیت هم دوسله والو ښبتو په لړکې دسرزیانونو دمخنیوي ضمانت ونه کړای شي .دساري په توګه : دپخواني شوروي جمهوریتودمشرانو له خوا دافغانستان دکورنۍ لانجې دغو ځولو تجربې له پامه غورځول ددې سبب شول چې یوازې د ۱۹۹۲ کال په اوږدوکې دکورنیوملي نفاقونوله امله زمورڅه دپاسه ۱۵۰ زره هیواد دوال ووژل شي . دارقم دافغانستان دجګړې په ټولو نهو کلونوکې له تلفاتو نه لس ځله زیات دی .

په افغانستان کې دجګړې داوربلول ، دشوروي حکومت د ډیروناوړو پریکړو په ډله کې راځي . دافغانستان په کړکیچ کې پوځي لاس وهنه په نړیوال ډګر کې دسیالانوله خوادشوروي اتحاد دبهرني سیاست دسختې غندنې سبب شوه . سربیره پردې دهیواد دننه هم بیابیا داعتراض غږونه پورته کیدل . په پای کې شوروي

دسوسیالیستي کمپ اوورپسې د ۱۹۹۱ کال په دسمبرکې دشوروي اتحاد

ړنګیدل دهغه بحران زیږنده ده چې دهیواد مشران اوپه مجموع کې ټول هیواد یې

راګیرکړی و. په دې توګه نوپه سیاسي ډګرکې دافغاني لوبې بایلل دهغې

بنسټیزې ډبرې له لاسه ورکولوته ورته وو چې په نړیدوېې داویاکلونوپه ترڅ کې

راجوړه شوې ودانۍ له بیخه ونړیده.

## له شورویانوپرته افغانستان

له افغانستان نه دشوروي پوځونو په وتلو سره نه پخلاکیدونکې افغاني

اپوزیسیون خپله اصلي برلاسي یعنې د یوکیدوعامل له لاسه ورکړ. دبیلابیلو

تنظیمونودوسله والو ډلوترمنځ په ټوله نه کلنه دوره کې جګړې رواني وې، خوپه

۱۹۸۹ کال کې یې ډیره پراخه بڼه غوره کړه.

دانتظارونوخلاف، دکابل انقلابي رژیم لکه «له حده زیات پوخ شوی حاصل»

سمدلاسه ونه پاشل شو او اوږده موده یې دخپلې بقاپاره لاس اوپښې ووهل.

دخوست دفاع او دجلال اباد ساتنې، چې یوکال اوږدوه شوه، دملرغوندې

روښانه کړه چې دځلویښتم لښکر له جزوتامونوسره اوږده په اوږده جنګیدلی

حکومتي پوځ ریښتیني قوت دی. دافغانستان دبهرنیو چاروو وزارت په حواله،

مجاهدینو یوازې په ۱۹۸۹ کال کې څه دپاسه ۳۶ زرد تنه له لاسه ورکړل. په داسې

حال کې چې ۱۹ زرد نور یې ټپیان شوي و. په دې ډله کې داپوزیسیون نږدې دوه

سوه بهرني سلاکاران او (۵۰) قوماندانان هم راځي خوبیاهم دافغانستان پوره

دړنگیدو مخه ونیسي.

# پل

داپریل په ۱٤ نیټه لکه دتل په څیر دسهار په پنځه نیمو بجوله خوبه جگ شوم. تراوسه لاغرنیو سرو دخپلې ځواکمنې سندرې بللې ، خوداسې احساسیدله چې سرې دورځې له خواکولی شي له تاوده جمپر پرته بهرووځي. روحي حالت مې ډیرښه و. تقریباً ټول لښکر موخپلې خاورې ته وراړولی و. په افغانستان کې یوازې دکشف دوه کنډکه لاپاتې وو چې سبا ته باید دکوشکاو ترمزپه دووسیموکې له دولتي پولې نه پښه ورواړوي.

دجنورۍ له نیمايي راهیسې دڅلویښتم لښکر دقوماندانۍ وروستی مرکز په تاشقرغان کې دیوه موتوریزه غنډپه قرارگاه کې ځای پرځای شوی و. داښار دموټر په سپرلۍ ، له پولې نه تقریباً دیوساعت په واټن لیرې دکابل ، مزارشریف لویې لارې ته څیرمه پروت دی. دازموږ لپاره ترهرڅه لومړی له دې امله مناسب کاروچې څنگ ته موهغه هوايي اډه پرته وه چې دلښکر هوايي ځواکونو ترې کار اخیست.

لس کاله وړاندې دشورويانو له راتگ مخکې دتاشقرغان شاوخواسیمې یوې برېنډې اوغیـــرمســکونې زمکې ته ورته وې. اوس دادی افـــغـانان «دکوردخاوندانو» په توگه دغنډپه پخوانۍ قرارگاه کې تیرېږي ، راتیرېږي او په لوړ آوازپه خپل منځ کې دورپاتې شویو تشوکاغوشنو دارزښت اوبیې په هکله غږ

کې ایله ۲۵ تنه پاتې وو. عمدتاً دا دلښکر دسر، سر خلک وو. لکه دځانګومشران اودپوځ دبیلابیلو برخو آمرین. دسهار په لسو بجو زموږ کوچنو ټی قطار پولې ته نږدې دحیراتانو ښارته وخوځیده. دلته دکشف کنډک زموږ انتظار ایسته.

دځوکلونو په اوږدوکې داښار زموږ اصلي اکمالاتي زیرمه ګڼل کیده: حیرتان له شوروي ترمزنه دیوه کوچني پله په مرسته جداکیده. ځواکونوله دې سیمې سره پوره بلدتیا حاصله کړې وه، نوځکه دځای پرځای کیدو په برخه کې موستونزې ونه لیدنې. زه مخکې هم ځوواره دلته راغلی اودلویې لارې دانضباط په کنډک کې پاتې شوی وم. دوه میاشتې مخکې دلته سخت شورماشور جوړو، خو اوس ایله دری سوه سرتیری پاتې دي.

دقطعاتو دویستلو ددقیق مهال ویش دجوړولو په وخت کې مومخکې له مخکې په نظرکې نیولې وه چې دپولې په خوله کې دځای پرځای کیدونوې سیمې ته له رارسیدووروسته به دوتلو له وروستۍ نیتې یوه ورځ مخکې ان دهغو قطعو په ګډون چې پخوادشوروي اتحاد په خاوره کې ځای پرځای شوي دي، دټولو قطعو دقوماندانانو درپوټونو جاج اخلم. موږ مجبور وویو ځل بیا ځان په دې ډاډه کړو چې دافغانستان په خاوره دځلویښتم لښکر له منسوبینو څخه هیڅوک نه دي پاتې.

دورځې په دویمه نیمایي کې دګرجنرال ایوان فوژینکو تلفون وکړ. موږ دواړوه دجنوري په نیمایي کې دپوځې حوزو دقوماندانانو په توګه ټاکل شوي وو. هغه

په افغانستان کې وم او هغه دادي پرخپله څوکۍ ناست و. ماهغه ته وویل چې د پوځونو دراویستلو کار عملاً پای ته رسیدلی دی. سباسهار به وروستۍ قطعه یعنې د کشف کنډک دافغانستان خاوره خوشې کړي. زه به په سیمه کې یو وخت سباسهار په لسو بجو د پله پرسر ولاړیم.

همدغه ورځ مې د دفاع له وزیر مارشال د. یازوف سره هم لنډې خبرې کړې وې. له هماغو لومړیو خبرو یې بریښیده چې څه وار خطا غوندې دی. معلومه شوه چې د بهرنیو چارو په وزارت کې شورماشور جوړ شوی دی: خبره په دې کې وه چې د دغه وزارت کوم کارکوونکي په تصادفي توگه کاغذونه لاندې باندې کړي، او ناڅاپه یې پام شوی چې د ژنیو توافقات له افغانستان نه د فبرورۍ تر ۱۵ د ځواکونو د ویستلو حکم کوي. په بل عبارت، که څوک غواړي دغه تړونونه ټکی په ټکی عملي کړي، نو باید د فبرورۍ په ۱٤ ټول لښکر د افغانستان له خاورې نه د شوروي اتحاد خاورې ته وراوښتی وای. په مسکو کې ریښتیا هم اندیښنې پیدا شوې وې. ښایي په ټولو دفترونو کې له دغه تخریشوونکي حالت نه د خلاصون لپاره سختې هلې ځلې پیل شوې وې.

موږ په خپل وار د دغو تړونونو د متن د تحلیل په وخت کې یوه، یوه نیمه اوونۍ مخکې د خپل پوځ په قرارگاه کې له دغې نیټې سره ټکر وکړ. سمدلاسه مو په کابل کې د ملگرو ملتو د څارونکو په گډون له بېلابېلو مراجعو سره سلا، مشورې وکړې. د څارونکي ډلې مشر په نیویارک - کې د ملگرو ملتو له مقر سره تماس ونیوه. داسې

دغسې يوې جزئي خبرې ته ارزښت نه ورکول کيږي : د ۱۵ عدد موږ ته اجازه راکوله چې دفبرورۍ تر ۱۵ او دهمدې ورځې په ګډون له افغانستان نه دوتلو بهير بشپړ کړو.

مادملګرو ملتو دڅارونکو ددريځ په هکله يازوف ته بشپړ معلومات ورکړل ، زياته مې کړه چې دلته داندېښنې هيڅ ځای نه شته ،خوداسې برېښنده چې وزير پوره قانع شوی نه دی او له ماسره ترخبرو وروسته به خامخا دخپلوکانالانوله لارې يوځل بيا داهرڅه راسپړي. وروسته ماهغه ته وويل چې دپوځونو دوتلو په ختيځ او لويديځ بهير کې اوس يويوکندک له ديرشو ،ديرشوجنګي ګاډوسره پاتې دی اوبس.

يازوف وپوښتل چې په افغانستان کې دپاتې جزوتامونوامنيت څنګه تامينيدلی شي. هغه ته ما معلومات ورکړي وو چې دښمنان غواړي دشوروی پوځونو پر وروستيو ټولګيو (دحشرډګر) جوړکړي او په هغه زيرموکې چې همدا لږه موده وړاندې حکومتي ځواکونو ته سپارل شوي ، دورانکاری عملونه سر ته ورسوي.

موږ هم دحالاتو دپرمختګ دغه بڼه له احتمال نه لېرې نه ګڼله . که څه هم موږ تر وروستی شيبې خپلو استخباراتو ته دوام ورکاوه خو په دې هکله مو کوم شواهد نه وو ترلاسه کړي ، خو بيا مو هم وپتيله چې دځان محافظه پياوړې کړو. د کشف کندک مو تر هر څه لومړی

اوباید دهغه څه پیښیدو ته یې اجازه نه وای ورکړې چې یازوف ورته ګوته نیولې وه.

دخبرواترو په پای کې هغه (یازوف) ناڅاپه وپوښتل: ولې تاسوله ټولو وروسته راوځئ اولکه هسې چې قوماندان ته ښایي ،دقطعې په سرکې نه راځئ؟ ما ځواب ورکړ: داپریکړه ماپه خپله دلښکر دقوماندان په توګه کړې اوداګنم چې په افغانستان کې پنځه نیم کاله خدمت داحق راکوي چې له پوځې دود نه سروغړوم. خویازوف زما خبره نه تاييد اونه رد کړه ،غلی پاتې شو ،خوکه هغه له دغه کاره منع کړی هم وای ،بیابه هم زه له افغانستان نه وروستی راوتلم.

څو دقیقې له هغه وروسته چې یازوف دټلفون غوږی کیښوده ، دسترجنرال نیکلوی ایوانوویچ پاپوف زنګ راغی. هغه اوږده موده دترکستان دپوځي حوزې دقوماندانۍ دنده په غاړه درلوده. له افغانستا ن نه دپوځونو له راوتلو تقریباً شپږمیاشتې وړاندې، هغه دجنوبي برخې دځواکونو دلوی قوماندان په توګه ټاکل شوی و. هغه له باکونه په دې غرض راغلی وچې دڅلویښتم لښکر دراوتلو په وروستي پړاوکې دهغه دهرکلي مسوولیت په غاړه واخلي.

دوتلو په اړوند ټول کارونه تقریباً پای ته رسیدلی وو. له پهره دارانو پرته دکشف کنډک نورټول سرتیري دوروستي مارش لپاره چمتو کیدل. چاتخنیکی وسایل معاینه کول او چادخپل کمیس لاندې پسیني ټوټې ګنډلې. ډیر سرتیري

ولې ، خوداسې په نظرراغله چې د کشف کنډک ډیر غړي په دې حقیقت باندې په پوهیدوسره چې سهارته به ددوی له پاره جګړه بیخي پای ته رسیږي ، په افغانستان کې دا یسار شوی وروستي پوځي ټولګی دغړیو په توګه له خپل حالت نه خوند اخیست. . که دهغوی په زړه وای نوپه دغه حالت کې به یې څوورځې نورهم دغلته استوګنې ته دوام ورکړی وای.

دورځې پاتې برخه ناټاکلې اوځنډنۍ تیریده. ان دغرمې ډوډۍ مې خواته نه کیده: ښوروامې ونه خوړه ، وروسته د تل په څیر اوربشینه شوله اوچای راوړل شول.

حیرتان په افغانستان کې زموږ دحضور په ټوله موده کې ستره اکمالاتی زیرمه وه. ټول نه کلونه بې ځنډه دې لورته په جنګي او غیر جنګي تخنیک ، خوراکي موادو او درو ، درملو باردا ورګاډي واګونونه (ډبې) راسروو. مخکې مې هیڅکله دغسې زیرمه نه وه لیدلې. په دې وروستیو شیبو کې مې پریکړه وکړه ، راځه وګورو چې کوم شیان په څه ډول خوندي اوزیرمه شوي دي. د زیرمې له افغاني آمر سره مې دیوه « علمي سیر » خبره غوټه کړه.

دحیرتان زیرمې په دومره لویه سیمه کې ځای پرځای دي چې یوه اوونۍ یې یوازې دکتلو لپاره نه بس کیږي. زیرمې په دوو ، نظامي او غیر نظامي برخو ویشتل شوې وې ، څه نه ووچې دلته نه پیدا کیدل. په یادمې دي چې موږ یې دیوه بیخي ترلې واګون مخې ته ودرولو. زموږ دلاري ملګری افغان په ښه روانه روسي ژبه

۱۹۷۹ کال راپه دې خواهلته خواړه خوراکي شيان پاتې دي. په دغه ټوله موده کې دغه خواړه شيان چې دچالاس ورته نه وغزيدلی، د ترمزپه گاونډ کې، دتودوخې له قطب نه څوکيلومتره وړاندې هسې په خوشې ويلي کيدل. څنگ ته يې ټراکتورونه اودباغواني داړتيا وړکراچۍ گانې چې نه پوهيږم دڅه لپاره افغانستان ته ليږل شوې وې اودغه رازدبرينې تختې، سمنټ، بوره او اوړه خوندي شوي وو. دلته دهغو شيانولسگونه نه، بلکه سلگونه زره ټنه راټول شوي ووچې زموږ هيواد ورته خپله ډيره سخته اړتيا لرله.

دغه افغان له تدبيره ډک سړی وبريښيد. هغه دزړه له کومې زموږ په وتلو خوابدی و. په دابله ورځ به دکابل خوا ته غزيدلې لويه لار وتړل شي. داسې بريښي چې ان زموږ دشته والي په وخت کې هم هغوی ته گرانه ود. له دغه ځايه څه شی وليږدوي: وگوره څومره څيزونه کوټه پراته دي: اوس به هرڅه تالاترغی کيږي: دزيرمې دساتنې چارې دافغانستان حکومتي پوځونوته سپارل کيږي، خوداچې هغوی د «ساتنې چارې» څنگه سرته رسوي، هغه ته هم پوره روښانه وداوموږ ته هم.

کله چې بيرته دکنډک داستوگنې ځای ته راستانه شو، امرمې وکړ چې ټول وزگارسرتيري اوافسران دې په ليکه ودرول شي، غوښتل مې ووينم چې هغوی دوروستي ورځې لپاره څنگه چمتو شوي دي. کنډک دسهارپه نه نيمو بجو زما په امر حرکت پيل کاوه، ترپولې پورې، زموږ ددېرد کيدو له وروستي سيمې نه له يود

لوی تعلیمي ډگر ته ځان ورسوي، په لیکه ودریږي او زما انتظار وباسي.

زه په زغره وال گاډي کې چې دمخابرې ځانگړي وسایل یې درلودل، ترټولو وروسته له پولې نه تیریدونکی وم. له هغه وروسته چې له افسرانو او سرتیرو سره مې خبرې پای ته ورسیدې، امر مې وکړ زما زغره وال گاډی دې یوځل بیا په غورو کتل شي چې خدای مه کړه د پله پرسرې انجن له کاره ونه غورځیږي. د ماښام ډوډۍ په خپل وخت تیاره شو، د یوې کوچنۍ راډیو ترهیاهو لاندې د قابونو مخې ته کښیناستو چې په کې سره کړي ماهیان پراته وو. چرتونه مووهل او خبرې مو سره وکړې. ټول شیان بې ماناغوندې وبریښیدل، لږ ترلږه زما په نظر داسې راغله. د وروستیو ورځو شورماشور کښیناست، مخې ته تیاره لرلیدا او شا ته هسې یوه تشه، یوه ماتې په نظر راغله.

د کنډک دا وسیدو په سیمه کې له موقتي موادو جوړ څوکورگي او عادي قاشونوولاړ وو. په دغسې یوقاغوش کې چې د قوماندان لپاره جوړ شوی و، ما د افغانستان په خاوره کې خپله وروستۍ شپه تېره کړه. خوب نه راته. نه مې غوښتل، دهغه څه په باره کې فکر وکړم چې دلته مې لیدلي او رابانديې تیر شوي، خو زما له ارادې پرته، په ذهن کې راته بیلابیلې څېرې راژوندۍ کیدلې. ډېرې زیاتې څېرې، هغه چې لاژوندي وې او هغه چې په دغه هیواد کې یې ساه ختلې وه.

دسمبالتیا اړتیا نیغه مخې ته راته درېدله. ترقیامته له خپلو زامنو جلا او سیدو زړه راخوړلی و: تنکي زلمیان باید دپلار په څنګ کې سترشي، خوزه پوهیدم چې د پوځي حوزې دقوماندان تول ژوند په دنده کې تېرېږي. کشرزوی مې، اندری هغه وخت دښونځی دوهم ټولګي ته تلونکی و.

دسولې په پړاوکې به زما ژوند هله بشپړ برېښیدلی وای چې څنګ ته مې ګران او ترټولونږدې انسان ناست وای. نیکمرغه یم چې دفایینې په وجود کې مې دځان لپاره دغسې انسان وموندہ. هغه ښکلې او هوښیارد ښځه ده. مهربانه زړه او دبچیانو، خپلوانو او ملګرو په وړاندې دپالنې احساس لري. ویلی شم چې یود ورځ فایینې له جګړې وروسته وخت کې زما ژوند وژغوره.

تقریباً دسهار په څلورو بجو دخوب استازی دستر ګومیلمه شو، خوزه بیا هم داپوره خوب نه شم بللی، ما سره تل په څنګ کې زنګ وهونکی ساعت دي، خوپه دغه ورځ دهغه له غبږ مخکې راجګ شوم. په دغه ورځ له خوبه نه جګیدل نا شونې خبره وه، داسې برېښیده چې په کنډک کې نورو هم زما غوندې شپه تېره کړې ده. دسهار په پنځو بجو دانجنو آوازونه پورته شول. تګ راتګ، چیغې او خنداګانې پیل شوې، کوم چانري سندره هم راپیل کړه.

دسهار ترچایو مودپهره داری وروستی پوستې هم راټولې کړې. یوچاپه ټوکوویل: «نورنو په جنوبي لوری کې د محافظتي اقداماتو اړتیا نه شته.»

دنهو بجو په شاوخوا کې مې خپل یاور راوغوښت چې له هر ډیلوډ زما دخیري

وکتل، بیا یې خپل سر کوږ کړ او ویې ویل: هرڅه سم دي.

دغه وخت نو کنډک د تګ لپاره چمتو شوی و جنګي ګاډي یو په بل پسې ولاړ و او ایله دومره پاتې وو چې څنګ ته ځای پرځای شو یو سر تیر و ته دورختلو امر وشي. ما امر وکړ چې کنډک دې په نظام ورېږي. په دې پوهیدم چې بیا مې له دغو پوځیانو سره لیده نه کیږي، له هغو نه مې مننه وکړه. ومې ویل چې د ۲۰۱ لمبر فرقې د کشف کنډک په دې ورځ له افغانستان نه د شوروي پوځونو د وروستي ویستل شوی جزو تام په توګه د تاریخ په پاڼو کې پاتې کیږي. هغه وخت مې په فکر کې هم نه ګرځیدل چې همدا ۲۰۱ لمبر فرقه به څلور کاله وروسته بیا د رانده بارونه خود اخل د تاجکستان په خاوره کې په اوږو اخلي.

موږ یو ځل بیا د رفتار خرنګوالی او چټکتیا په تیره د پله پرسر، وڅیړل. ټاکل شوې وه، د سیند په شوروي څنډه، د ترمز په ښار کې ګڼ خلک، زموږ هرکلی وکړي او په دوی کې د هغو کسانو خپلوان هم وو چې په افغانستان کې وژل شوي دي. ځینو چې د بچیانو د مرګ خبر هم ترلاسه کړی او یا یې د هغو مړي خاورو ته سپارلي وو، خو بیا هم هیله من وو چې کیدای شي، بچیان یې ناڅاپه ژوندي راورځي. د دې لپاره چې د کوم چاد احتمالي زیانمن کولو مخه مونیولي وي، امر مې وکړ چې د پله پرسر دې په ډیر کم سرعت حرکت وشي.

کنډک په جنګي ګاډو کې خپل ځایونه ونیول او ما د دوی ټول قطارپلی معاینه کړ. زما جنګي ګاډي د قطار په سر کې

لیدله اوکه دغسې اړتیامې احساس کړی هم وای ، داکار ځکه نه شو کیدای چې هیڅ ټلفوني رابطه نه وه ، د ټلفوني رابطې ټول ډولونه یعنی« ز . ا . س ». او« و .چ » . ( راټول شوي وو ) اوس مې دلته په افغانستان کې دبیلابیلو ټلفونونوله ډلې نه یوازې دجنګي ګاډي دمخابرې یوه دستګاه په واک کې وه اوبس . یوه مخابره مې درلوده اوټول یو کنډک

زغره وال ګاډي ته له ختو اودمارش لپاره دوروستي چمتووالي له نندارې وروسته مې په خیال کې وګرځیده چې بیابه هیڅکله دڅلوېښتم لښکر په څیر لښکر پیدا نه شي. دغسې بیساری لښکر به بل نه وي ، هغه نه یوازې دخپلو دندوله مخې بیساری و ، ددغسې خلکو راټول هم بیا شوني نه دي ، اوحق زما پرخواو .

دڅلوېښتم لښکرقطعي چې څنګه راوتلې ، هسې هم د شوروي اتحاد پر ټوله خاوره ویشل کیدلې .هغوی بیرته هغو ځایونوته ستنیدلې ، له کومه ځایه چې دافغانستان پرلور خوځیدلې وې .له یوې خوا ، دایوه قانونمنده پایله وه ،له بلې خوا ، موږ په تیره بیا په وروستیو وختو کې چې زموږ دشهرت هنګامه ګرمه وه ، پرله پسې غوښتنه کوله چې ددغه لښکراوسنی نوم دې وساتل شي. ولې دلښکر دستاینې په هکله پریکړه ونه شوه ؟ په زړه کې هیله من وم چې دفبروری په ۱۵ به اعلان کیږي چې دځواکونو د وتلوله امله ، دغه لښکر مثلاً دننبان په ورکړه ستایل

ستایل به غیر عادلانه وي، کله چې مودرک کړه، په دې کار کې کوم پرمختګ نه راځي، نودشوروي اتحاد ددفاع وزیر او جمهوررئیس په نامه مو څو مکتوبونه راواستول، خولکه چې معلومه شوه ،داهسې عبث کارو.

څلوېښتم لښکر غیر معمولي پوځي قطعه وه. هغه څلور فرقې چې درې یې پلې موتوریزه او یوه یې دهوایي دیسانت وې او دغه راز څو مستقل جزوتامونه درلودل.زموږ دوسله وال پوځ په ټول تاریخ کې داسې لښکرنه وچې خپل هوایي ځواکونه دې ولري.دلښکرزیاته ځواکمني ، دیوزیات شمېر ګوزاریزو کنډکونو په شته والي کې وه.دهغو شمیر اتوته رسیده، په دې سربیره ددیسانت اوکشف قطعې هم موجودې وې چې ډیرې ښې روزل شوې وې.

سربیره پردې، دغه لښکر دخپل شمېرله پلوه هم حیرانوونکی و: دهغه دپرسونل اعظمي شمېر (۱۲۰) زرو سرتیرو او افسرانو ته رسیده. د ۱۹۸۸ کال په پیل کې مودیو شمېر قطعو په ویستلو پیل کړی واودژنیو دتړونو نودلاسلیک په وخت کې په افغانستان کې زموږ سل زره پوځیان پاتې وو.

دحرکت له پیله څوشیبې مخکې مې هڅه وکړه ،دوروستیو کنډکونودښه راغلاست مراسم په خپل ذهن کې انځورکړم.هغه به څنګه سرته رسیږي، تریوې اندازې مې دهغو مراسمو په هکله تصور درلود چې تقریباً یوساعت وروسته په ترمزکې جوړیدو نکي وو.ددغې سیمې مشرانوخپله پوره وړتیا وښودله او دڅومیاشتو په اوږدو کې یې دټولو ستنیدونکو قطعو دهرکلي دروند بار

تیریدل. دسرتیرو نه یوازې له خنداډکې خولې ،بلکه داوسیدو لپاره ځای او خواړه هم په کاروو.

ښه، په ترمزکې ټول شیان (سم) پای ته ورسیدل. وړاندې به څه کیږي؟ ما تصورهم نه شو کولی چې په افغانستان کې له نه کلن شته والي وروسته دهیواد او دفاع وزارت دمشرتابه له غړیو نه دې هیڅوک دځلوینبتم لښکرهرکلي ته رانه شی. که مشرانو ترمزته دراتگ لپاره وخت (اوپه لومړي گام کې علاقه) ونه موندله، آیا نه یې شول کولی ،یوه یادوه اوونۍ وروسته لږ ترلږه هغه څوک چې دنهو کلو په لړکې یې دځلوینبتم لښکر دقوماندانۍ دندې په غاړه وې، هسې عادي شان میلمستیا ته ورو غواړي. ددغې میلمستیا دجوړولودنده هم ددفاع وزارت په غاړه نه لویدله، ځکه افغانستان ته د پوځونو دلیږلو پریکړه پوځیانو نه وه کړې.

له یوې خوامې دااوس هم په یاد دي چې خلکومونږ څنگه په غیږکې نیولو ،له موټرو لاندې یې دگلانو ډیرې جوړې کړې وې ،مبارکۍ او ښکلول وو، خوله بلې خوا په مسکوکې میشت یو« آمر » هم ځانته دځلوینبتم لښکر دښه هرکلي دسمبالولو په هکله دفکرکولو زحمت نه وورکړی. موږ خونه شو کولی خپله ځان ته مبارکۍ ووایو. له افغانستان نه دځلوینبتم لښکر دوتلو په هکله پټه خوله پاتې کیدل، دکرملین په « شیش محل » کې دناستو کسانو یوه بله بې نزاکتي وه. فکرکوم دگرباچوف ملگرو غوښتل ،دخپلو اسلافو دتیروتنو پرده په ضمني توگه

وشي، خو دامسکووچې له ځلوېښتم لښکر سره په تماس کې واوهغه ته يې لارښوونه کوله. داامکان خو وچې دحکومت یاد دفاع وزارت دګڼ شمیر لوړرتبه کارکوونکوله ډلې یوڅوک ترمزته زموږ دهرکلي لپاره راولیږل شي. آخرهره ورځ خو له افغانستان نه دپوځونو دراوتلو ورځ نه وي.

ماته خبر راکړشو چې ټول حرکت ته چمتو دی. خپل ساعت ته مې وکتل اوبیامې امروکړ: «واسطې چالان کړئ» زلمو په حرکاتو کې ښه ډیر دقت کاوه، دکشف کنډک غړي لکه دیووجود په څیروخوځیدل اوداداستثنا آتوله ډلې څه ده. ټول قطار زماتر مخې تېرشو. دغه وخت دټولوسترګې له اوښکو ډکې وې ،خوالبته چې عامل یې بادنه و.

مامخکې یادونه کړې چې دپوځونو وتل له دوو لاروسرته رسیدل او زما زيات مرستیالان له قطعاتوسره اوږه په اوږه خوځیدل: څوک مخکې تللي اوڅوک تروروستۍ ورځې پاتې وو. دوتلو په اصلي مسیرکې دلښکر دپوځي شورا غړی او دسیاسي چارو رئیس جنرال الکساندر زاخاروف حاضرو. هغه دوروستي قطار په لومړي سرکې روان و.

مالږ انتظارویوست او دسهار په نهوبجو او پنځه ځلوېښتو دقیقو زما زغرد وال ګاډي ټایرونه دافغانستان دخاورې په وروستیو ټوټو تېرشول پل ته راورسیدم، دلارې په یوه وړوکي کنج کې دیوه خندق دننه زموږ سرحدیان ناست وو،

دپله له پاسه هیڅوک نه لیدل کیدل. اوبیخي تش و. یوازې لږ وړاندې ګڼ شمېر خلک لیدل کیدل. کله چې دپله له نیمای نه تېر او له هغې کر ښې نه چې ددولتي پولې څرګندونه کوي. تیر شو. فکرکوم ترهر چالومړی مې میخاییل لیشسنکي *او دمرکزي تلویزیون.

کمره مین باریس رومانینکوپه نظرراغلل. نږدې اویا متره چې ورنږدې شو، نوله زغره وال ګاډي نه کوز اوپلی روان شوم.

تقریباً یوه اوونۍ مخکې په تاشقرغان کې زما دقوماندانۍ مرکز ته دشوروي اتحاد دځوانانو سازمان (کمسمول) دمرکزي کمیټې دمنشي و. میروننکو په مشرۍ یوه ډله راغلې وه. په هغوکې دکمسمولسکا پراودا ورځپاڼې مسوول مدیر الکساندر فرونین او ځیني ژورنالیستان، دغه رازساشاروزینباوم اویوسف کابزون هم ملګري وو. داله شوروي نه د «کلتوري ډلې» ورستی راتګ و.

دیادونې وړ ده چې دیوسف کابزون* وروستی راتګ، په اصل کې افغانستان ته دهغه نهم سفرو. هغه لومړی ځل د ۱۹۸۰ کال په اپریل کې دمحدودوپوځي ټولګیو قطعاتو ته راغلی و. زه دزړه له کومې له دغه سړي سره مینه لرم. د ملګرو او هسې عادي اشنایانو په وړاندې دهغه مواظبت ماحیرانوي. یوسف یوعجیبه او

---

*- میخاییل لیشنسکي اوږده موده په افغانستان کې دشوروي اتحاد دمرکزي تلویزیون خبریال و اودهیواد په ډیر ویرخوکې یې د شوروي برغلګرلښکر دجګړوله بهیرنه رپوټونه تیارکړي. دشورویانوله وتلووروسته نوموړي

په ډیرو مواردو کې بې ساري انسان دی. په ډیرو سختو حالاتو کې تل دهغه له خوا دملاتړ احساس کوم. له هغه سره یوځای ځلوېښتم لښکر ته داستراد موسیقی نور ډیر هنر مندان هم راغلي دي. هلته والیري لیونتف ،ولادیمیر وینا کور ،لیف لیشنکو اوایدیتا پیخا هم راغلي وو. زه دزړه له کومي ددغو کسانو مننه کوم چې دمحدودو پوځونو سرتیرو او افسرانو ته یې دهنر ریښتینې ډالۍ وړاندې کړې دي.

په کوم ځای کې مې په بې احتیاطۍ سره له خولې نه وتلي وو چې کله له پولې نه واوړم نو بیا به دافغانستان خوا ته مخ اړوم ،دغه پله ته به گورم او ډیر شیان به وایم ،خو داکار به په لوړ اواز نه ،بلکه په زړه کې کوم چې هیڅوک پرې پوه نه شي او دادی فرونین (هماغې خبرې ته په اشارې) پوښتنه کوي: «دمثال په توگه څه وواياست... اوس نه ،وروسته په دې هکله څه لیکل غواړم... څه راته ویلی شئ؟ ماخونه شوکولی هغه ته په ځواب کې وویم چې غواړم هغو کسانو ته دزړه له کومي ښکنځل وکړم چې افغانستان ته یې دسرتیرو دلیږلو پریکړه کړې وه ،دا یوه خبره ،بله دا چې ما صرف غوښتل ، هغه څوک را یاد کړم چې تر دغې ورځې ژوندي را ونه رسیدل او دهغوله میندو نه ، بخښنه وغواړم.

مخکې له دې چې دمیخاییل لیشنسکي څنگ ته وروسیږم ،ما په خپله ژمنه وفاوکړه ،ودریدم او څو ځلې مې په لوړ اواز نه ،خو په روښانه ټکو کې په ژبه جاري

دخوشحالۍ اوله دی امله دارامۍ احساس کوم چې هرڅه پای ته ورسیدل ،هغه ته مې داهم ویلي وو چې دټولو هغو سرتیرو او افسرانو مجسمې جوړول په کاردي چې ددغه دوزخ لمبې یې وزغملې دامې هم زیاته کړې وه چې له مانه (په افغانستان کې ) دڅلوېښتم لښکر هیڅ پوځي نه دی پاتې شوی.

که څه هم زه احساساتي سړی نه یم ، خوهغه وخت دخبروکول گران بریښېدل، ستونی مې له عقدې ډک شو اوکه لږ نوري هم دوام کړی وای ،نو داوښکوداري مې جوړیدلی شوې.

کله چې مولـه هغوی سره خبرې پای ته ورسولې ،زه ترې بیل او دهرکلي کوونکیـولور ته ورغلم، زوی مې ،ماکسیم په نظرراغی چې زما خوا ته راځغلي .هغه په ماپورې ځان څوند کړ ،خوما دهغه دجگولو توان ریښتیا هم په ځان کې ونه لید.

بوریارومانینکوروستـه یادونه وکړه چې ماډیره موده زوی په سینه پورې نیولی و ،خوما صبرکاوه چې دجذباتویرغلیزه څپه تیره شي.

له دې وروستـه زه بیا زغـره وال گـاډي ته وختـم اوتقـریباً تـه سـودمتـره وړاندې ،هغه ځآی ته لاړم چې همدا اوس راوتلی کنډک په کې په نظام ترتیب شوی و .دخلکوگڼه گوڼه وه.ما سترجنرال پاپوف ته رپوټ ورکړ چې له افغانستان نه دپوځونو دراویستلو کاربیخی بشپړ شو.ټول حاضرین خوشحاله وو اوپه تیرد

وویل ،خوهرچادښوشیانوپه هکله خبرې وکړې.

له میټینګ وروسته له افسرانو سره یوځای له لوژنه کوز شوم او یوځل بیا رانه دخبریالانوشپول راچاپیرشو ،ددوی زیات شمېربهرنيي ژورنالستان و. زمونږ خپل خبریالان تقریباً هیڅ نه وو. یاېې هلته ځان نه شوررسولی اویاورته نور هرڅه پوره روښانه نه وو.

له پاپوف سره په یوه «والګا» کې کیناستو اویوې کافي په لور وخوځیدو. دلته دمیلمستیا دسترخوان غوړیدلی و. تراوسه مې له سرنه دااندیښنه نه وځي چې هغه ورځ هرڅه اپوته غوندې بریښیدل. سیمه ییزو واکمنوله موږ سره دیرښه چال چلند کاوه او هرڅه په ښه بڼه ترتیب شوي وو ،خوسوګند دی چې ماغوښتل ان دکشف کنډک دسرتیرو په ګډون هرسړی باید وپوهیږي ې دایوحقیقي جشن دی. زه هیله من وم چې هغوی ته به هم هغسې هرکلی ویل کیږي چې د ۱۹۸۸ کال په مې کې لومړنیوټولګیوته ویل شوی و. هغه وخت همدلته په تعلیمي ډګرکې ،چې دغه لږ مخکې په کې زموږ میټینګ پای ته ورسیده ،میزونه اینښوول شوي وو او لکه چې وروسته ماته نکل وشو ، دخوړو دزیاتوالي له امله هغه دچا خبره میزونه ماتیدل. یوازې شراب نه وو. هغه وخت ټولودفرمان رعایت کاوه*.

---

* دغه وخت دشوروی مشرمیخایل ګرباچوف دشرابو څښل بند کړی وو ،دهغه دامر له مخې دشرابو پلورنه هم دیره محدوده شوی وه دلته ګروموف هماغه فرمان ته اشاره کړې. (د. ژ)

ترکومه ځایه چې معلومه شوه ،مور یې دګوندي ولایتي کمیټې په خوړنځي
کې میلمانه کړی وو. هلته تلفون هم وا وماد هغه له لارې یازوف ته خبر ورکړ چې
دنده سرته ورسیده. ټول پوځیان راووتل. دسرزیان نه شته. هغه پرته له دې چې په
اوازکې یې دخوښۍ کومه نښه پیداشي ،ماته مبارکي وویله ،مننه یې وکړه او غوږۍ
یې کیښوده.

له دې وروسته مې زړه هسې تش ،تش شو.

داکوچنۍ میلمستیا ډیره عادي تیره شوه. زړه مې هیڅ شی نه غوښته. دشرابو
دڅښلو په وخت کې لومړنۍ خبرې د ځلویښتم لښکر په ستاینه کې وشوې. دویم
ځل دقوماندان په ویاړ جامونه پورته شول. دریم ځل خالصې افغاني خبرې وې:
دهغه چاپه یاد چې هلته وژل شوي دي. په بیړه هرڅوک هرې خواته روان شو. ماهم
له ټولو سره مخه ښه وکړه. نه مې غوښتل چې څوک راسره په موټر کې څنګ په
څنګ کښیني.

سبا ورځ داسې پیل شوه چې په ما دزیات خوب له امله غرمه شوې وه او دا په
داسې حال کې چې په افغانستاکې دخدمت په ټوله موده کې هر سهار په هماغه یو
وخت یعنې دسهار په پنځه نیموبجو له خوبه راپاڅیدم. ښکارې چې پرمادسوله ییز
ژوندانه ارامۍ اغیزه کړې وه. د تلفون غوږۍ مې پورته کومه چې فکر راغی. چاته
تلفون وکړم؟ په کوم لمبر زنګ ووهم؟ لنډه داچې ما اوزوی مې ژر ژر مخ او لاس
ومینځل ،خپل کالي مو راټول کړل ومور یو بکس ، یوسپورتي دستکول او کوه

کې تېره کړې وه، راووتلو.

زه د ښخوا په څير لا دلښکر قوماندان وم، خو اوس دا له افغانستانه راوتلی لښکر و. مونږ داسې دود درلود: د حالاتو د پرمختيا له پام کې نيولو پرته مو هر سهار د پوځي وضعې جاج اخيست او د قطعاتو د ندې مومشخصولې، دود همداسې جاري و.

له سبا ناري وروسته مو د لښکر له اداري هيئت سره په ګډه د جزوتامونو داستولو مهال ويش له نظره تيراوه. چا ته په اورګاډي کې تګ مخې ته پروت و، څوک لا پر لاره وو، څوک باريدو ته چمتو وو او څوک ايله اوس د غه کار ته چمتو کيدل. مجبور وم له خبريالانو نه په څنګ تير شم، له افغانستان نه د راوتلو په ورځ مې البته نه شول کولی چې د بيلابيلو موضوعګانو په هکله له هغو سره ونه غږېږم.

اوس نو په کار وه چې خپله ټوله پاملرنه دلښکر د چارو بشپړې سمبالتيا ته واړوم، له يوې لنډې غونډ ې وروسته له پوځي ميلمستون نه ووتم، که ګورم چې د عمومي دروازې خواته د خبريالانو ګڼه ګنه ده. هغوی هم زه وليدم. زړه مې نه غوښتل کارونه پريږم او يو ځل بيا هغه څه تکرار کړم چې په کابل کې د مطبوعاتي کنفرانس په ترڅ کې او پرون مې د پله پرسر ويلی وو، يو د افسر نه مې وغوښتل، خبريالانو ته ووايي چې نه غواړم کيف ته له تګ مخې له چا سره ليده، کاته وکړم.

د فبرورۍ په اتلسمه نيټه په تاشکند کې له يوې لنډې دمې وروسته د کييف د پوځي حوزې د قوماندان په توګه د خپلې نوې دندې پر لور وخوځيدم. هغه وخت مې تصور هم نه شو کولای چې په خپل مورنی هيواد کې، چې تل مو په بحراني اولنډوشپو کې په خوب ليده، ژوند، د افغانستان په اندول د ګړ [illegible] شرايطو په

# په دي کتاب کې ولولی



ربیع الدین لودین کتابتون